# دَ غني کُلیات




غني خان

# دغني کلیات

## دپنجرے چغار، پلوشے او پانوس

ویونکے

خان عبدالغني خان

خپروونکے

دقومونو او قبایلو وزارت

دنشراتو ریاست

۱۳۶۴ ش/ ۱۹۸۵ ع

# سریزه

عبدالغني خان د پښتنو د ستر اجتماعي، سیاسي شخصیت خان عبدالغفار خان مشر زوی دی. غني د هندوستان د نیمې وچې د خلکو د آزادۍ په غورځنګ کې د ماشوموالي څخه د پاکستان تر راپیدا کېدو پورې مخامخ برخه اخیستې او بې شکه د ضد استعماري او ضد امپریالیستي مبارزې د میدان یو بیا وړی مبارز پاتې شوی دی او په دغه لاره کې یې سختۍ او جېلونه ګاللي دي. د دې سره سره د مستعمره هند تر محدود واک لاندې انتخاب شوي مرکزي قانون جوړوونکې اسامبله کې د هند د آزادۍ غوښتونکي ګوند کانګرس له اړخه د پښتنو د صوبې یوازینی منتخب نماینده پاتې شوی و.

د هندوستان د وېش په نتیجه کې د پښتنو لې برخې کېدو غني خان په مړه زړه ادبي تړه ګوزي سیاستونو باندې یې لې یاده کړه، د سیاست د چېغو او نارو له کتارونه راجلا شو او د شعر تېره توره یې د نابیانو شوو حقیقتونو او ناویونکو د کړنو د بیان او رسوا کولو لپاره له تېکي را وایسته. هر څه یې چې زړه او الهام ورته ویل، هغه یې ولیکل او په دې توګه یې هغه لوی عقل چې "شعر" نومیږي صیقل کړ او د رعایتونو او قیودو له ننګ او شرم نه یې آزادي ورکړه.

بله دا چې غني د فلسفي تفکر په لحاظ تخیل کړو او بیا له دې چې دی یو نقاش، مجسمه جوړوونکی او خوږ ژبی هنرمند په توګه یې ځبیري، دی نړموند د دوران یو ډېر لوی شاعر دی چې انسان

په ښکلا او اولس او د هغه په کمزوریو ترلا مړه پښتون شاعر ښه پوهیدلی دی. دا د انسان ټکل غوښتنې او ننګ او ارمانونه د هغه پخپله مذهبي، فلسفي، سیاسي او جغرافي اندېښنو کې شېړلي او آزمویلي دي. غني د دې لپاره چې د شعر ژبه پاکه وساتي او د دې لپاره چې انسان د دودونو له پرځان باندې د بادرۍ ګواو په لومه کې ښکېل نه کړي په تمامو قرار دادي تعد ساتو بازي چېښه بزدي او خلکو ته د رياکارو شیخانو، وطن فروشو اخوندانو کاذبانه لافې او مقدس دروغ بربنډ دي.

ای د لوبیانو نیکه لمونځ ښکاره مستي ښه ده
حسن جوړېدل ښه دي که حسن پرستي ښه ده

په پاکستان کې د پښتو ژبې د زوالي بدمرغۍ او د پښتنو د کم سوادۍ له کبله د عبدالغني خان غني شعر د بیاوال د ده د شعر د پیاوړي سوزیک او د هغه د رنګینو عطرو د ورمولو احساس څخه محروم پاتې دي. زه باور لرم چې پښتانه، افغانان او ښیوال به په لنډه مستقبل کې غني د خپلو نه ښيدونکو شعرونو په محراب کې ورځنۍ او ورښه لمانځي.

د غني اشعار د ژبه بربنډ ده. دی د یو رومانتیک، ریالیست په توګه د ښکلا او د مینې ستاینوګی دی. لیکن په هر څه، هر ځای او هر وخت کې انسان دا د ځمکې خوځنده او هوښيار خاوند نه هیر دي. هغه له خپلو ټولو بدایو او خطو وو سره د ده د شعر په محراب کې ناستي دی او د خپلو ښکلو او بدیو په هنداروان کې د غني شعر ته د لذت او عذاب په زانګو کې د ژوند د دوام لپاره الهام ورکوي.

سلیمان لایق

# یادونه او منّنه

د قومونو او قبایلو د وزارت او همدا رنګه د ښاروالۍ او فرهنګي امورو د ریاست له خوا په درېیو پښتو کلونو کې
څېړنیز کتابونه او رسالې، د مقالو مجموعې او نور ګڼ شمېر فرهنګي، ادبي، تاریخي او علمي کتابونه د حروفي چاپ
آفسیټ او ګستتنر له لارې چاپ او خپاره شوي دي چې د دغو کتابونو له جملې څخه پنځه ویشت علمي
ادبي، تاریخي او کلتوري کتابونه د افغانستان د علومو اکاډیمۍ علمي غړي معاون سرمحقق
زلمي هیوادمل د هیواد له فرهنګ سره د مینې له امله بې حق الزحمې، بې له دې نه کاري او اداري برخه له کوم
رسمي مکلفیت په دریاست د ول صورت ته چاپ کړي دي، د څېړنو کتابونو اډیټ او د مقالو
د دوو مجموعو (د الفت یاد - د ننګرهار شاعر غني یاد او اجمل) تدوین یې هم د ریاست
ترسره کړي دي.

زموږ له کتابونو سره د باچا خان زمانه ژوند او جد وجهد، او د باچا خان لیکونه
هم د ده بې کړي ماړي ګټې په سبب همدغه وخت د ریاست چاپ ته چمتو دي. د ښاروالۍ او فرهنګي امورو ریاست د ده د غه
د ول محرومیت په ډېره ستر ګه ګوري او زړه منه ترې کوي او له دغه په پوهه د هیواد په فرهنګ او کلتور مین
هیوادمل ته په راتلونکي کې هم د هیواد د ښوونیز فرهنګي او علمي مرستو هیله لري

په درناوي

عبدالرزاق زرملي
د ښاروالۍ او فرهنګي امورو رییس

# فهرست

ستا په نوم زما ربه

د

# پنجرې چغار

ګوره بلبل په پنجره کښې چوړ
مست شو صحرا او په خوب کښې ئے

لوے یو جهان د ګلونو که
د ګل تعل جهان د سیند نوکه

دَ غني دَ جیلخانې نوي شعرونه

هریپور - ۱۵ اکتوبر - ۱۹۵۰ ع کښې
ما کتاب شروع کړوم

- غني -

# پیشکش

شاعر دَ خپل ماحول غلام وی، دَ دہ مثال دَ یو داسے حیوان دے چہ دَ هغہ پہ وجود خرمن نہ وی، کہ پو ہے دا زغی ڈوکہ وروریے نو پہ کریکوخانہ وڑنی۔ او کہ پوہے آرام ورشی نو دَ خوشحالئی نہ بے هوشہ کیږی.

او کوره انسان تہ چہ بادشاه دَ خنا ورو دے
دے کہ ډیر زور وکی وے تہ نہ شی دَ خپل ځانہ
دے دَ خپلہ ځانہ دَ جھانہ رد کیدے نہ شی
کلہ دَ کعبے نہ تاوشی کلہ دجانانہ

بنده دَ خپل احساس او بے حسئی پہ قلاکنبے بند دے، او دغے تہ خلق قسمت وائی. خوشپیر کالہ ورانده واقعا تو دَ خپلے لوئے قلانہ راوښکلم او پہ ډیرو ډیرو ډیرو دَ خښتو قلاکانو کنبں بندیوان کرم.

دغہ دَ درد، زور او تیرے ماحول کنبے ماتہ دَ لا دے روښانہ کولو صرف یوه شمع وه، او داخما دَ ځوانئے او مستئے کلونہ

چه په دے تور او تاریک باغ کښې شوی دی او ما تړنه یوه مراړے

گلدسته جوړه کړے ده هغې فرښتے ته پیش کوم، چا چه د حیله آباد د نواب

رستم جنګ محل د غنی د تالا شوے جونګړے د پاره پرینبود. او ماته

دا د غم، د درد او بے سرو سامانی روغې ډیرے په خندا

خوشحالئ او بهادرئ تیرے کړے. زه چه د هغې درد ته ګورم

نو خپل درد رانه ورک شی. زه چه د هغې نزتوب روینم. نو په خپله

بزدلئ ستومانه شم. زه د دیرونزانو نزیم. خو د هغې نه نزنه شوم.

نو ځکه دا کتاب زه په ډیر ادب او ډیره مینه د خپلو بچو

مور ته پیش کوم.

یو خوب د شاعر په جامه انسانی

یو ساز دور، دراز، بنګلے خوږ آسمانی

یو ګل د جنت په خصلت رحمانی

یو جسم ناری یو زړه کے نورانی

شوله دا سے پیدا د غنی دلبرا

په غیرت پښتنه په نهایست ایرانی

هری پور جیل

۱۹۵۳ع



# دُعا

ستړګو دَ جانان کښې زما ښکلې جهانونه دې
وا دِ خله دنیا زه وړې ستا دَ دنیا نه یم
کوړه دَ فقیر کچکول کښې تاج دَ سکندر دې پړوت
زه یم دَ سخیانو دَ شو مانو ګدا نه یم

زه ئې په غرور درنه دَ مینې په نوم غوارمه
زه ملنګ بې نیازه ستا دَ دیر واویلا نه یم
یو دَ سپوږمۍ ښاخکې درنه تیک له دَ یار غوارم
زه یم دَ خوبونو دَ لالونو ګدا نه یم
هغه مستي غوارم چه ئې مرګ نشي وژلې
زه دِ دَ غمونو دَ بیګا او سبا نه یم
او تشه دنیا ګڼې که دِ بخښې نوا ے امیره!
ستا شوه ستا دنیا۔ زه وړې ستا دَ دنیا نه یم

غني



# ثنا

توره شپه دې کله کله دَ غمونو انبار راوړي
کله شمع ساقي راشي او خیام او ستار راوړي
کله توره شپه لحد شي مرګه روک کړي پیاره کښې
کله رنګ او خمار راوړي کله شرنګ او دلدار راوړي
کله ډوب او بې قراره یو ده رباب دَ اسویلو شي
کله مست دَ رنګ محل شي بې خودي او خمار راوړي
دا زما بې خودي واړه یو نظر ستا دَ قرار دے
دا زما ده رباب دَ حسن ستا یو څاڅکے دخمار دے

غني



# ژوند

چه خمار مستي تې وزي    شراب شي ترخې او به وي
چه سرور غرور ئې نه وي    دا ژوندانه ورزندان دَ دخه وي

چه دَ مينې زره شي پاتې    لکه کل وي ورژيدلې
يا شغله يوه دَ نور وه    يا يو موټې دَ خزلې

چه په ژوند کښې سختنه وي    لکه بې مالګې طعام
چه په خوله کښې خندانه وي    لکه ډک دَ خاورو جام

چه خواني کښې تکليف نه وي    لکه پته ميان کښې توره
نه ئې پوڅ شي نه ئې شرنګ شي    په زنګو نو شي زخوره

چه آرام وي او سمام وي    او يا زې په جايداد وي
خو بانو هم شيرينې وي    هر ترو پرو فرهاد وي

چه پې سر په خند اداوشي    هله خوږ راز و نياز شي
چه دَ سپينو تورو جنګ شي    ښکاره هلته کښې اياز شي

ژوند که تش نيرني خشتل شي    دا خو سپي هم شي ختلې
که تش نسل زياتول وي    دا غوټې هم شي ښه کولې

ژوند نه خېښته نه ماڼۍ دی   نه ډېرۍ د سرو لالونو

نه یاران نه معشوقې دي   نه باغونه د ګلونو

---

ژوند خو تله دي یو په مخه

غُرزیدل او پاڅیدل دي

ټکے سوز او ټکے ساز دے

څه خندل دي څه ژړل دي

ژوند په سترګو د عاشق کښې

پلوشه ده د خمار

په صحرا کښې لټول دي

د آشنا د کوڅې لار

غني

حیدرآباد جیل

۱۳۴۹-۹-۱۱



هری پور ۱۴ مارچ ۱۹۵۰ع

# ګواه

یو ټکی د رنګ کښے دریاب رنګا رنګ

یو ښاخکی د ساز کښے هم سوز او هم شرنګ

د ژوند یوه لمحه کښے سوونه عمرونه

یو چونګ کښے د خاورے مستی او غمونه

په لپه ایرو کښے ښارونه د نور

د هر ګل په شونډو رازونه د طور

خاورینه خرمن کښے خندا او غرور

تیارے د شهوت او رڼا او سرور

دے بت کښے د خاورو دا تال د ابد

د ښاخلی په مخ کښے جمال د ابد

ثبوت مانه لوئ ستا د خان کوم دے

ګواه مانه سبه ستا د شان کوم دے

خانپور



خان پور

# خومره؟

خومره مینه مستی د کرم ادب خومره؟
خومره تا دلدار جانان کرم رب خومره

نه زه ستا په حد دخان په حساب پوه شوم
ستا پوهیږی پخپل هنګ او طرب خومره

تورانئی په ساز سرود ترکومے رسی
ګلاب پوه دے دخایشت(*) په مطاب خومره

داسپوږمۍ چه کل جهان حیران حیران کړی
داپوهیږی دخپل نور په سبب خومره

رنګ رنګ دخپل خیګر پرِ خو رونه
دومره خیشت وی چه زماوی طلب خومره

داچه شوندے اورسرور روښان کړی
معشوق پوهیږی د عاشق په مطلب خومره

خامینه ده ادب د پنجرے اوزی
وایه خومره دجانان کرم رب خومره

(*) خائست، ښایست.

# بل څه

په نظر کښې مې — د باغونو خیال
په نصیب کښې مې — لاره د غرونو
عجیبه اچار — مې اچولې دې:
د کلونو — او دغمونو
په غوږونو کښې — شرهار د ساز
د ګنګرو پېزیب — او خندا آواز
ډوب مې زړلتمئ — بل څه نوې ساز
بل څه نوې سوز — بل څه نوې راز
خکه خیال کښې مې — د باغونو رنګ
او نصیب کښې لاره — د غرونو
ما د تورو هیرو (*) — جوړ کړې دې
ځان له بنګلې تخت
د خوبونو

مرهب پور

(*) هیرو : ایرو

# تش جام

هغه څه ساقي وي — چې تش شراب وي جام کښې
نه ورکې خمار د سترګو — رنګ د سرو لبانو
دا د دوزخ اور وي — چې تش سوې رڼا نه وي
دا هغه کانړ دے — چې خطبې لولي ماښام کښې
دا د ازغو جاړه د کاڼو اب — خو ګلاب نه لري
دا لوګو دهلے میخ — تیکه او کباب نه لري
زهر زهر زهر مردي — شراب چې خمار نه لري
کفر کفر کفر دے — مستي چې قرار نه لري
څه هغه بنده وي — چې جنون او دلدار نه لري
هغه د څ رسینده وي — چې غوټۍ او آبشار نه لري
هغه څه مومن وي — چې مستي د کافر نه لري
څه وي هغه سترګے — چې د مینې نظر نه لري
هغه دعا څه وي — چې شرنګار او ښنا نه لري
زهر زهر زهر دي — شراب چې خمار نه لري

# غم

پټ سن مې ضمیر، روک که قلم تش د سیاهۍ نه
کوټه کښې ئې یخ او تریخ لوګي باهر(*) بخه مې سیلي
دماغ مې پریشانه زړګي پرېوتي د مستۍ نه
خیالات مې روک نوستلي غم وهلي په بدلۍ
دُنیا مې د امید د رڼا نشه تکه توره
د غم د قیصو که ده خندا آوازې میر
هره لمحه د ساه ترخه بې خونده او چپه سپوره
محمد خان لیونے که شوخۍ بسته ایازے میر
داغم نه د طاقت د حکومت، نه د شوکت دے
داغم د تیریدو دے ـ بې مطلبه د ژوندون
لیلۍ محمل صحرا مه تیار دی خو افسوس
د خان لیونی کولو همت ونکړو مجنون

په پېرول
۱۹۵۰ع

(*) باهر: بهره دباندې.

# هوش

شراب هله شی شراب چه څوک[1] وڅکی
څاڅکی سینه کښې شی چه چپه شی یا آبشار شی

ګل چه خوږ کړی په بیا دین د رنګ دوان کا چل
په تیروکښې جوړ عجب د خیښت بازار شی

چه آواز د سمړو اوزی بل نه رنګ شی
چه خوږ د خوږی اوزی نو خمار شی

چه فولاد د مینې مستې اوبه واخلی
نو حیران او پریشان تار د ستار شی

سمړتوب چه لورا چپ شی لیونتوب شی
چه صحرا په رنګ مین شی نو ګلزار شی

چه انسان مالک د حسن او سرور شی
اور او ګودرو رته ګلونه لاله زار شی

د سپوږمۍ حسن روښان شی په شبنم کښې
د غانټول[2] اوښکې ولونه د نبامار شی

د ژوندون مطلب کمال دے د اظهار
یوله اوښکې یوله اخ، یوله سنګار شی

بلخه نشته څان او ژوند پوهه کول دی
قسمتی هغه خوبونه چه بهار شی

بس بنده دے که مجنون دے که مدهوش دے
خرخوونکے اختنونکے د ده هوش دے

که جومات کښې بس الله الله دے
میخانه کښې یو آواز د نوش بنوش دے

دغه خوند کړی چه یو یار شی یو ریبار شی
دغه خیال کله جانان کله بهار شی

تول د هوش کفر که مینه که سوډ دے
د ده سر دی نه شمع ده نه نور دے

---

(۱) څوک: څوک یے. (۲) غانټول: غاټول

عجیبه واکدار که جوړ رب دَ جهان — چه دَ عقل تورکندو ته قانون وائی

دے دَ حُسن بخاری ته لیونے وائی — او دَ خاورو سوداگرو ته قارون وائی

دَ ژوندون احساس ته خبط او سودا وائی — عاشقئ ته دَ بدبختو خرو جنون وائی

دَ دَه هوش دَ دَه دَ مینے تور مینا مار شی

دا عیسئ غریب پخپل بستره دار شی

هوش عمل یو دَ سوُنو منارو دے — لوئے وطن دَ دریابو دَ درو دے

ده گنبے یخے تارخانے دَ طور دَ کتو — دے گنبے خوریو تور دریاب توے په تیرو دے

دے گنبے سپین لوئے محلونه دَ دیناگی — دے گنبے خور خاموش ارمان دَ مقبرو دے

کله کله دَ مستئ سره خمارونه — کله کله تش کچکول ک دَ آسره دے

دا دے شکر چه غم په تور محل کښی — را ښکاره کله یا مینه یا دلدار شی

دا دے شکر چه مرگ په بادشاهئ کښی — کله کله څاڅکی وخاندی آبشار شی

دا نعمت دے چه په لوړو کا نه شوے — خط و خال تالا په سرو شونډو دیار شی

هوش چه ورک شی دَ خپل هوشه نو مستی شی

چه خودی دَ خوده اوزی نو خمار شی

۔ کوسر ۔



# حسن

اوه تپوس دَ حسن مکوه  سمندره شی څوک تللے
څوک سپوږمۍ ته شی رانیولے  څوک زهرا شی ښکلولے

حسن پلار دَ مینے او مور د عشق
پکښے پټ دی ټول سپین او تور دَ عشق
دَ ده خیال نظر همه زور د عشق
په سرو شونډو بلې ښکلے اور دَ عشق
دا بابا دَ سُر او سرور دے
دا تعبیر دَ جلال او نور دے
دا مکه دَ سترګو خندا کښے
دا په هر کوڅه کښے طور دے

دَ آدم دَ نوم بس یو دا سبب  دَ بهار سبب دَ رڼا سبب
دَ حوا دَ ژوند او ارمان قیصه  دَ سرود دَ رقص او دَ ژړا سبب
دا جواب دے لکونو سوالونو دے  نشته هیڅ دَ ژوندون بل جواب
دا صوفی ته محراب او منبر خالی  لیونی ته کباب او شراب

دے دَ خیال او رنګ دنیا کښې دا ۔۔۔ پلوشه دَ مینې دَ یار ده

دا دَ رحم پیغام او وعده دَ وصال ۔۔۔ را لیږلے غلام له دلداره ده

دا دَ مرګ سبب

دا دَ ژوند ضرور

دا د ګناه تعریف

او معنی د نور

دا دَ عشق وجود

دا د مینې راز

دا دَ سوز خوند

دا مستی د ساز

هر نظر ئے شراب دَ مستئ ده ۔۔۔ دا د روح لیونے میخانه ده

دَ بنده او آقا دَ زړه راز دے ۔۔۔ د ژوندون او جنت افسانه ده

خان پور
۱۹۵۰ء



# اور کښې

دَ وول دَ لړے خوږ دے دَ هند کیانو دا مثل دے
هره فلسفه دَ لړے سبه او پوره ښکاري

زره دَ بنده نه دے عجیبه بے چله چل دے
دوبه په ارمان کښې چوارې ام حوره ښکاري

عقل له دهوکه ورکوي حسن که دلدار دے
خان ته تبتیدل دي عبادت دے که خمار دے

دا مسته رنا دا مینه حورے او ما بنام
څه رنګین سراب دے دَ لیدلو پوهیدلو

دا چه ورته ګورے بل څه نه وینے نه ګورے
دا عجیبه دام چا دے جوړ کړے دَ لیدلو

دا یوه قصه ده دَ ډک جام دَ توئیدلو
دغه فلسفه ده دَ دریاب دَ بهیدلو

رحم نه انصاف دے یو تدبیر دے دَ دوام
هر څوک ئے پکار دي که خیتو دے که خیام

شړنګ وي دَ نېزدے نه او دولګې دَ لړے لړے

دواړو غږې یو شانے او یو رنګے خبرے

ډک دَ ظلمه زوره دَ طاقته دَ باز پرے

جوړے دَ مهین او رنګین بوی دَ ګل وزرے

کومه لاره چه اخلے خو مقام ئے بس یو دے

دلته زړه جوماته دی امام ئے بس یو دے

ځکه لیونے کړے مرور شی ځکله کله

بل خواته ورتا وګوري دا دَ هوش تتقه شله

پریوزی په پړاو کړی بتخانه کښے دیوه بله

خپے سپینے پولۍ طمغے تاقتی دَ منزله

تاته اور سرور دے یو ماو لے وژنے اور کښے

اے د سپین او تور مالګه څه مزه ده تور کښے

ولے زما لال وی پروت په خُلے کښے دَ منا مار

ولے دے ګلاب له نه او ربل او نه بهار

ولے دِ بندی که ځا ځکے تن کښے دَ ډنډ وکی

غوار ے ترچپے دَ سیند سازونه دَ ابشار

ماله مرګ او ژوند دے تاله تش دَ ځنے ول دے

اور کښے دے بل کړے ولے حسن الوول دے

اور تہ دے نیولے یم فولاد جوړے زمانہ
سبنہ۔ چہ زہ فولاد شمہ نو ځہ زما جانانہ
جسولہ فولادو لہ جوهرو لہ کمال لہ
بس خاورے کیدہ دی روکیږدی کڼ دنیا ئہ

ولے دِ ورانولو لہ جوړ کړے سور محل دے
اور کینے دے بل کړے ولے حسن الوول دے

غنی
ډیرۀ اسمٰعیل خان
۱۹۵۰ع



# حساب

يو خواليونے دے دَ تيكرو جام په لاس
غوا ړى دَ عطار نه روح دَ ګل-خمار دَ ګل
بلخوا - او بنيار شاه - دَ بوے په ګته په لباس
پوښے نے كه خوراك له هم - پيغى - لهم بلبل
تله په لاس نا ست دے خرخوى مينه خمار
بس دَ ده ايمان دغه جنت دے نشته بل
بے خماره مينه لكه بے نشے شراب
زمونږ نے خكل حرام حرام وى ته كتل
بے مينے ژوندُن دے . لكه بے سُره ستار
تنګ ترے نه او بنكل دَ جنت حورو ته ګنزل
روكه كړه مجنون ليلىٰ محل كښے دَ ايران
ده ته سُرمحل شو دَ غمونو بيابان
تول جهان ته اور دے ده ته مينه دَ جانان
وه دَ ده خندا پته ژړا كښے دَ جهان

دہ تہ درد او چغو کښې وناست مستي ژړلون
دہ لہ وے دوہ لارے یو مرګے، او یو مجنون

ښہ۔ یو خوا خو دغہ بلخوا بلہ تماشہ دہ
ناست خان لہ، نمرود دے او دَ بل درد نشہ دہ

داخہ عجیبہ شانتے انصاف دے دَ فطرت
ګل لہ ښکلے بوی دے او د نبر خوار لہ ګشہ دہ

داخہ عجیبہ خیشت پرستي دہ دَ رحمن
مرہ پرتہ بلبلہ دہ او نښتے پے بابنہ دہ

خہ وکړي شاباز یا بہ روکیږي یا بہ زور وکړي
خہ و وی جرس چہ وی دَ وند ہلہ چہ شور وکړي

دغہ دَ جہان، دغہ ئے چل، دغہ ئے راز دے
دغہ دَ ساقي، د غہ محمود، دغہ ایاز دے

دغہ، وائی، دَ غم او دغہ، وخ، دَ ممہ ساز دے
دغہ دَ، خیام، او د، بلال، دَ خُلے آواز دے

خان مستول مینہ او خمار زیا تول
دے دَ ژوند تنور کښې سور انګار زیا تول

یو دیار دَ خُلے وربہ او بل ئے دَ دولت
یو دَ، خان، پہ سترګو روک او بل ئے پہ شوکت

یو ئے مست په شرنګ او په خندا او په سرور

بل ئے په غضب دَ غورزنګونو دَ شهوت

یو ئے په تیرو دَ غم په لړو دَ ماښام

بل ئے په سیلئ او په باران او په قوت

یو ئے په پَستو پُستو سوالونو دارمان

بل ئے په باهوا او په جلال او په شوکت

یوله تیز نیلے، ستړے سړے سره توره په لاس

بل له تښهائی، رنګین ملګونه د حیرت

یوله دَ الماسو محل، سپین او روڼ او پاک

دوی سره حساب خو لږ ګران شان دے

ستا په هر جنت کښے لږ عذاب شان دے

غني

ډیره اسمٰعیل خان



# غزل

هله یار وته نزدے شوم — چه دَ یاره شومه لرے

هَلَے(*) پوئے شوم په خبره — چه ئے نا ورمه خبرے

چه ملنګ شومه جانانه — خزانه م ومُنتله

په زړګی کښې م پرتے وے — ښکلے ښکلے ملغلرے

چه م کل بُستان قربان که — نو د کل بُستان مالک شوم

چل م هله دَ بر زده که — چه م وسوے وززے

چه په جام کښې دَ ساقی م — دَ ځوانئ وینه کړه ګډه

هله پوره شو محفل کښې — د خمار خمار بخرے

چه په شوق او مستے م — د واړه سترګے ورلوګے کړے

هله هله راته اوکړے — دَ ساقی سترګو خبرے

چه پرے مستے ځوانئ داوکړے — چه پرے ښکلے سرکړی خاورے

د مغوری دی لیونیه!

دَ جانان شونډو شکرے

غني
حیدرآباد جیل

(*) هلے = هله ئي۔

# قسمت

چه ښوک سوال دَ پلاؤ وو کړي ورکړے دال
اکثر خور کړي په ښکاري دَ ښکاري جال

چا ته جام کښنے دَ سره خاورے شکے واچئے[1]
چا له ورکړے دَ ايرو په دَ ڈهير[*] کښے لال

يو وبال چه ښوک په صبر صبر تير کړي
ورله راولے دَ هغے لوئے وبال

ښو مره بار چه ښوک وړي دومره ورآچے
دَ زمري خطرے نه تيري شغال

چه کوم کال خلق زاري دَ باران وکړي
په باران پسے[2] راندۀ کړے هغه کال

ليونى نه خفه مشے دۀ قربان شم
اکثرو داغے دَ خره په ځائے کلال

غني

حيدر آباد جيل

---

(۱) واچلے ، واچوے . (۲) پسے ، پسے بے .
(*) ڈهير : انبار ، ډلئ

# دَ فریدون دَ مور خط

ځما دَ وادہ پہ دولسم کال پہ ۱۵ تاریخ دجون دمیاشتے ۱۹۵۱ع ځما صرف یو او یوازے زوئے فریدون • رستم جنگ • پیدا شو. دعغہ مور دَ پښاور پہ هسپتال کښے وہ ، او زہ لرے پہ مزارہ کښے ناجوړہ پروت وم. ھم دغہ هم دَ کوټے دَ دروازے پہ ځنګښے یو تور بلا رنګہ توپک او سنګین پہ لاس پولیس ولاړ وو. ټول جہان تور او تاریک وو، دَ وجود دَ ناجوړتیا سرہ ھم روح ھم دَ مایوسئ آخری مقام تہ رسیدلے وو چہ ناګھانہ خبر راغے چہ زوئے دِ وشو، ما ورے سبہ دہ غنی روک خوئے خرمیرات خونہ ئے.

دَ دغے ورځے دَ درد او دخوشحالی بیان نہ شم کولے. خو درد او خوشحالی دوارہ انسان ډیر ستومانہ کوی ، او چہ آخر ھم ستڑے دَ هوش دنیا تہ سپتے کړے ، نو ګورم چہ دفریدون مور راغلہ

او ماته ئې یو خط په لاس کښې کینبود

دا هغه خط دے :

ماد دوو لپو خاورے تاله ژوند او جهان جوړ که

خپلے مینے دا سے یو دم بل م تاله جانان جوړ که

دا چه زه د وفا ډکه د جنون جهان له لاړم

دام لال هغه لته وموت[*] د همه لالونو ښکلے

دا زما د غرور خنبه د هغو کیلو جواب دے

چه به تا په ما بنامے کښې ماته کوله غلے غلے

دا ثبوت زما د مینے د ایمان او د وفا دے

دا زما روح چه روښان شو د ده ستړے کړے کړے بلے

دا تصویر زما د ژوند دے خه خندده خه ژړاده

د شهباز د وزر شغ دے پوست سرو د بلبلے

دا ثبوت د شاه د مینے ، دا زاری ده د غلام

دا انعام د تولو ښکلے د هما ونښکین جام

دا تعبیر ستا د خوبونو او زما خ د ارمان دے

ما جوړ کړے د خپل ځانه ښکلے عکس ستا دځان دے

په صحرا م وو خور کړے سور ځاده د ګلستان دے

هر ساه کښے م لیکلے نوم د مینے د جانان دے

---

(*) وموت : وموند .

داچه زه ستا دَ خوبونو دَ جنون تالاش کښې لارم
ستاخانئے له م جوړ کړے ستانه ښه غوندې بوځان کړے

داچه ماستاوزرونوکښې ارمان دَ عقاب وليد
داعقاب م ستانه جوړ که، م عقاب م نه ارمان دے

داسې سره دَ ساقي شونډه شه مستي او خيام
داپه سوز کښې رنګ د ساز دے دَ ممبر دَ پاسه جام

داد نيشت، په شاملات کښې ما اجل ته کيبود ځلے
داخوما دَ صبا طمع کړے پرون سره بدلے

داچه زه يو رنګين خوب شم دَ تالاش او دَ آرمان
ستا په تورتاريک محل کښې سپينے شمع شو لے بلے

مادَ درولوخاور تاله ژوند او جهان جوړ که
ځپلے مينے دا سره يورم بل م تاله جانان جوړ که

ماکه داؤ په يو آرمان ستاځپل ژوندون تمام تمام
ماځپل هوش کلال له ورکه چه ترتاله جوړ کړي جام

چه ته قول مجنون مجنون شوے. زه همه ليلې ليلې شوم
چه ته رنګ شوے او خيام شوے، ده شراب زه ګل اندام

چه ته طور شوے او موسیٰ شوے، زه دَ نور برق او رڼا شوم
چه ته شور شوے او ارمان شوے زه د وصل ګل سمام

ته چه شوې دَ اور بځرې زه هم سره لمبه د اور شوم
چه مستا زړه په تالاش سهٔ شو، زه شوم لاړهٔ. زړهٔ مام
داچه مستاسوندهٔ شوې تږې دَ مستئ دَ سرو شرابو

داخو خکه زه جانانه هم شراب شومه هم جام
تاچه سوال دَ رنا وُکه، دَ بهار صبح صادق شوم
تهٔ مئين چه په تياره شوې، زه دَ دژمي شوم ماښام
چه تانوم دَ غُزا (۱)، واغښت (۲) ماکړه مرګ ته ډيوه ملبه
چه تانيت دَ طواف اوکه، نوما وتړو احرام
مادَ دوو لپو خاورې، تاله نور او بُستان جوړ که
خپلې مينې دا سې يوړم، بل مې تاله جانان جوړ که

بهګنوتر
۱۹۵۰ع



---

(۱) غُزا دمکې. دَ عربو د جنګ بت خدائے وو. دَ اسلام نه اول. (۲) واخيست

آرزو

# «اول سترگے ستا د لید و خورا»

زه خو ساز او سرور او خمار پیژنم یا لیلیٰ پیژنم یا ایاز
زه خو غم او اور او دلدار پیژنم یا رقیب پیژنم یا غماز

دې نسکورو شمکورو(۱) ته د نورو قصے د جنت قصے د جلال قصے
منږ کوری(۲) ته د نورو قصے د مابنام قصے د ملال قصے

زه خو گل او چمن او شراب پیژنم او بهار پیژنم او خزان
زه خو شرنګ او رنګ او کباب پیژنم نه ګناه پیژنم نه شیطان

دې ملا هوش ته بے هوش ته د خو طمع ته به ظلم د رتبه زور دے
دلیکو ته ستا د مال تو طمع او کیکر غریب له اور دے

دې شمکورو ته ستا د لید و طمع، دے نسکورو ته تا ته د تلو طمع
اول سترګے ستا د لید و خورا، بیا کوه د منډو طمع

زه خو ساز او سرور او خمار پیژنم هغه څرنګ ته به چے ګڼلے شم
زه خو شرنګ او غورزنګ او ستار پیژنم او جانان هغه چے لیدے شم

زه خو ناز او مکیز مسغرو پیژنم بنګلے خط پیژنم بنګلے خال
زه خو شونډے پستے او خله سره پیژنم، او رنګینه خنده د وصال

---

(۱) شب کور۔ مشوکور۔ (۲) منږ کوري، د موږک چرچي۔

زه خو سترګے خوبږے په ارمان پیږنم . او نرۍ ترمکۍ(۱) د ملنګام

زه خوست او منت دَ جانان پیږنم ، د ساقی په سرو کتو کښے جام

دَ ملهوش بے هوش ته دَ نور قیصے دَ جنت قیصے دَ جلال قیصے

دا کو نکتے ته دَ باتور قیصے ، دَ پرواز دَ خیشت(۲) او کمال قیصے

* * *

چه پتنګ دَ نمر رڼا نه شی لیدلے

ګناګار(۴) شو چه په شمع شو شیدا

زړه کښے چونګ لپه هیله دَ خاورے جای شی

څرنګه کرم پکښے دا دَ نور دریا

څنګه څنګه په یو کوټ کښے دا جهان او آسمان واچوم ؟

دَ شبنم څاڅکی کښے څنګه دَ سیندونو دوران واچوم ؟

او بیا لا ـ دا ـ ددے دَ پاسه به حساب او کتاب هم وی !

دَ رندو سترګو بادشاه له به سزا او عذاب هم وی !

دغه سترګے بے ستا دی جوړے ماله ولے شو عذاب

چه خوارے پرے باندے لګی دَ شکرونه شراب

دغه سترګے چا کړے جوړے خیشت ته وګے او حیرانه

په کلونو کښے چا خورکه دا خاښت دَ ، لامکانه ،

چا که جوړ ځان له مکان خپل روک(۳) زما دَ کل امکانه

زه په څاڅکی کښے ډوبیږم ـ سمندر بے پایانه

(۱) ترمکے ، تورو پوټی تیلو . (۲) خیشت ، خاښت ، بنایست . (۳) روک ، ویګ . (۴) ګناګار ، ګنهګار .

زه یو نور د تیرے سورے، نه د زمکے آسمان نور(۱)

بے کناره دریاب د رنګ نه زه یو څاڅکے د سرور

نه ځوندون د کل ځوندون ئے زه د مرګ لمحه ناکام

سمندر نه د مستئے ئے زه یو مات او سوړے جام

ستا په رحم دیر نیاز بیږم ځکه یم وره نه ګویا نه

د غلام ګیله هم واوره د سپورږ مئے او ستوروځا نه

زه خو ساز او سرور او خمار بیږنم، هغه خودم ږه په ځکلے شم

زه خوشرنګ او غږ رنګ او ستا ربیږنم او جانان هغه چے لیدلے شم

زه خوناز او مکیز مسخره بیږنم ښکلے خط بیږنم ښکلے خال

زه خو شونډے بسته او خله سره بیږنم او رنګینه خندا د وصال

زه خو ستر ګے خوږے په ارمان پیږنم او نوی ترمکئے د ما بنام

زه خوست او منت د جانان پیږنم د ساقی په سره کوتو کښ جام

که شکور نه ستا د لید و طمع، دے نسکور نه تا نه د تلو طمع

او ل ستر ګے ستا د لیدو خوړا، بیا کوه د مینیدو طمع



---

(۱) اللّٰهُ نُورُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ .

# توقع

ما به شمع شمع کوله
تا که جوړ رانه پتنګ

تا مې ښکار له د کبوترو
تا ور پېښ کړم په غمنګ

ما د قصې ملنګ یم
تا ښتیا کړمه ملنګ

ما پېښې کړې، د تورزنو
تا م کوله را ورو جنګ

زه خوغړ کولې نه شم
په کیلو ته خفه کیږې

خو حقه داده لویه خدایه
ته په توقع نه پوهېږې

غني

حیدرآباد جیل

# دڼ کښې

ګوره بلبل په پنجره کښې جوړ
لوئے یو جهان د ګلونو که
مست شو صحرا او په خوب کښې ئے
د کهول جهان د سیند وتو که

دا روحانی کارخانه زما — زور او ستم نه خمار جوړی
دالیونے شان ځیګر زما — او نه پیسئ ترنه هار جوړی
دا مصور په خپل رنګ مسرور — ټول جهان مست او سرشار وینی
دڼ کښې چپې او خندا د سیند — ښاخکی کښې مخ د آبشار وینی

ګوره بلبل پنجره کښې جوړ
لوئے یو جهان د ګلونو که
مست شو صحرا او په خوب کښې ئے
د کل جهان د سیند وتو که

* * *

وته سپرلے او ځوانی شو ځکه کښې — لیونی روح او رنګین ماښام
خوا کښې ګلاب ئے په مستئے تیر شو — شونډه وکښې رنګ او ګوتو کښې جام

وړه چینه شوه چرته روان — ډرونډ او مرګ ئې شروع که ساز

ډرونډو ډرونډے شو عشق ئې راز نغوتو — خیښت پټ که شال کښې د مینې راز

بیا خزان راغے ګلونه لا رل — مستان شو غلي او شراب کم

ځوانی رخصت شوه خندا نا پایه — دعا او زده شوه او رباب کم

زړه خپل تخت وکړه سر او سودا له — رخت شو بادشاه او ډرونډن شو مرینې

مستې جنګ بیله توره ئے کینوه — سرور غلام شو جنون مرئے شو

واړه رنګونه تیرے کښې ډوب شو — سبا رخصت شو او ما نام راغے

او میخانه شوه د جرا ډکه — ساقی رخصت شو او امام راغے

خوناکها نه وړه لولکه — په خوب بوده شو او خوب وئې لید

نوے سپرو او سره ګلونه — د عشق ایمان او نر توب ئې ولید

د خپلې مینې جواب ئې ولید — نوے لولکے نوے ګلونه

روښان ئې ولید یو نوی رنګ کښې — خپل ارمانونه، خپل امید ونه

مصور په خپل رنګ مسرور — تول جهان مست او سرشار ولید

دلکښې [1] چپے او خندا د سیند — شا خلګ کښې مخ د آبشار ولید

ګوره بلبل په پنجره کښې جوړ — لوے یو جهان د ګلونو که

مست شو صحرا او په خوب کښې ئې

د یو تول جهان د سیند ونو که

تهنډ باني حبل



(۱) ډن ـ ډنډ ـ

# جنّت (۱)

ستا دَ جنت څه حد هم شته دے؟ اے بے حسابه ابے پایانه
ستا خیشت او مینه څوک شي تللے، دَ دستر کو پته روک دَ ارمانه

د ملا ستر کے دَ تهمرِ د کے راته قیصے کوی دَ دهر داور زور
دَ جانان شونډے دَ کوکو وړے وی (۲) راشه او گوره جنت کښے اور

مرگ بلے ستر کے او خورے پنځے راته خوزی (۳) لحد، نیست او علم
شیطان، ملا، دواړه په یو آواز وی، ستا گناه ډیره ده او رحمت کم

مشکلار صا په لاس، قبا په اوُلی دستار په سر
لاړو وزرے د بلبل اینبے، بنا ئی شهباز ته دَ الم سر

بنا پیرک مشهرے د کاروان، دَ دنیا خیشت او سنگار لتی
سامې ژارې دَ زړو بت کښے ژوندون مستی او خمار لتی

---

(۱) په جنت ما نورهم دوه درے اوږده اوږده نظمونه لیکلی دی، ځکه چه په دلشی دانسان په دماغ کښے د جنت تصور ډیر عجیبه او لطیف دے. خو عام انسانانو دَ یو تصور د پاره هم دومره دمهد نه دے هضم کړے لکه دَ جنت دَ پاره. (غنی)
(۲) وی: واپی. (۳) خوزای: خوځوی.

کو نکت دَ سوتو په ډېرۍ پورته ، زېړے لاړکے ته دَ نوبیان کئ

چینجي دَ خاورے په ممبر برہ ، قیصے دَ حورو او دَ آسمان کئ

څکه په چغوزه دَ جماته لاړم په لوړی دمیخانے

دے خپلو سترګو دوب کړم ډله کړم هم شرابي کړم هم لیونے

خو چه په بلدو او بد رنګو خپل لګه دسکورلو کے او د اورشمه

چه سُر او تال م تیاره فنا کړي دَ بے وسئے فریاد ژړا او شورشمه

نو ځان ته دایم تاته واوړوم دا دَ مجبوره زړګي بهانه

ستا خیشت او مینه څوک شي تللے اے بے حسابه اے بے پایانه

غني

خانپور جیل



# سپرلے

بیا سپرلے راغے بیا ئے پیغام راوړه
د رنګونو ـ ګلونو ـ او ـ رڼا
شو ساقی مسکے ډک ئے جام راوړه
د مستئے ـ خوا ننے او خندا

یو سبا راغے ـ یوه شپه لاړه
د تیرو ـ یریدو ـ او ارمان
یو زیړے ګل مې ماښام ولیده
سلامونه ئے کول د جانان

دا دماغ زما چرے نه منی
چه د ګل خالق به سقر کړی جوړ
خنک خوږے به ئے زما کړیکے لګی
چا چه ماله نرګس او دلبر کړه جوړ

دا شینکے چمن ـ دا ګلونه سره
دا مست مست ښامستانه ماښام

دا ثبوت دَ ساقي دَ مينې دے

دا دَ سرو شرابو بر پوره جام

دساقي چه سترګې خمارې دي

دا خمارئ ماته جوړ کړے دے

دجانان چه شونډې دلدارې دے

دا سينګارے ماته جوړ کړے دے

دا سپوږمۍ اوستورې اومست ماښام

مشغولا(۱) زما دغمونو ده

دا په ماميّن دے مالک زما

ځکه ډکه دنيا د ښکلونو ده

سپرلے څه دجانان مست شوے

هر ساه اوزړه کښې خپل نور خوري

په ګلونو کښې خپله رڼا خوري

په نسيم کښې رنګونه دَ طور خوري

چه ترڅو يوه نظاره دَ رنګ

دَ غرزنګ دَ مستۍ په انسان کښې کي

ترڅو به دا زه وُ نه منم

چه اورونه به هغه جهان کښې وي

---

(۱) مشغولا . مشغول .

زه جور کړے نه یم سزا له یار

زه ئے جور کړے یارانے له یم

مانه مینه. خندا او مستی غواړی

که جمات که بتخانے کښے یم

بیا سپرلے راغے بیائے پیغام راوړو

دَ رنګونو، ګلونو، او رڼا

بیا ساقی راغے ډک ئے جام راوړو

دَ مستئ. خولئ او خندا

بیائے سرو ګوتو کښے ونیوه

لیونی ته جام دغمونو ډک

دَ ژوندونه ډک، دَ فراق نه ډک

دَ وصال دَ رنګونو خوبونو ډک

فروری

۱۹۵۰ء



# ژوندون

لکه کال کښې سپرلې او خزان — لکه روح کښې سبا او ماښام
لکه سیند کښې چپې او غلې شتې — لکه ژوند د مرګی دې غلام
لکه تله. خلاصیدل د مستۍ شته — تښیدل. ماتیدل. د هر جام
ژوندون څه دی یو سیند دی روان — اول لوی لوی موجونه کښتو نه
بیا تش شی چپې نې ورې شی — غلې لګې شی ډیر شی ډوبونه
اول هر یو غورځنګ کښې ورانې کړی — ورانوی غورزوی کوی لوی غرونه
اول هر څوک روکی یو دی ځای خان — بیا د بل شی روان کړی نهرونه
دریابونه لوټ لوټ کړی فنا کړی — غورځنګونه لښتی کړی تالا کړی
یا نې هر څوک د خپل ځان د ل وی — یا مرګی شی خدمت د هر چا کړی
ځان کړی روک خو ګلابو نرګس کښې — په زرګونو سیندونو پیدا کړی
ژوندون څه دی یو باغ دی لویږی *** — رنګ رنګ ګلونه دی د خیښت[1] زیاتیدوله
خپل ژوندون خپل سنګار ورکول دی — سوزیدل دی ژوندون خوریدوله
د انګور په شان روک فنا شه — چه خمار شې د چا سترګو سره له
د منصور په شان او خېژه دار ته — څه بهانه لټوه رسیدوله

---

(۱) خیښت: ښایست. (*) روکی: ورکوی.

څوندن دخه دي يو خوب د ليدي شي  دخندا او ژړا واک د بل دے

يو دوران د صحرا او ماښام دے  د ماښام او سبا واک د بل دے

يو رنګين شان محل د هوا دے  د مرګ و ژوند د هوا واک د بل دے

باغ د بل په ګلونو زه پريم  غم زما د خندا واک د بل دے

***

څوندون خه دے يو ساز دے عجيبي

کله پوست، کله زير۔ کله بم

کله اور سوزيد، شور غوغا شي

کله غلے، قلار، شو مه دم

کله شرنګ د ګنګروشي خارشي

کله يخ اسويلي او ماتم

کله تال مستانه د خيام شي

کله سپور ماښامونه د غم

که وي ترخ۔ که وي خوږ تيريدے شي

څوندون خه دے يو خوب د ليدے شي

غني

دار الامان

په ميرول



# بله لار

رحم فقیر له روا ، بادشاه له حرام دے

شاعر له گوټ د زمزم د میو جام دے

بنبل د مینے کمال خون د انصاف دے

سخاوت شان د خان مرګ د صراف دے

رقیب له شور او ماتم یار له وصال دے

یو له د وینے څاڅکے او بل له لال دے

ماله د ګندکندا ۔ لا له ته بام دے

یو له د مرګ پیغام بل ته دوام دے

د عجیبه ژوندون عجب کاروان دے

دے کوز دوکان کښے کښته کښې زیان دے

یونا ست محل کښے غمګین حیران دے

بل ته ایږو کښے وږیږ پروت ایران دے

دا روک کاروان کوم خوا روان دے

روند نه نظر دے اوچ نه ایمان دے

ظالم ـ جابر ته ـ سجده ـ دُعا ده
میرے دَ عُمره رحیم رحمٰن کړ

دَ زور او یَرے (۱) بت ته نه کو ـ بنه
روک ترے دَ مینے ـ د نور مکان دے

دَ بل دَ وینو لاس کښے جام دے
تنګ ئے جمات دے رونړ ئے مام دے

خوږه خو کړم چه دینم په تیرو کښے رنګ دَ یار
د ګلو نور ژَید و کښے امید و نه دَ بهار

دَ تاوان قلا کښے پته د جنون ناوے مستانه
رنګ محل ته نه شم تلے دَ صحرانه دَ جانانه

ماله غم ماتم دَ یار نه دَ غم دَ غم تعویذ دے
ماله بل کل ته کښته بے شی د شوق دَ بیزدے

هغه غم چه مستول کړی دَ نامبا (۲) تو نه لذیذ دے
زلیخ ته تور خنکل دے د سوی محل که دَ عزیز دے

ماله بله لاره نشته دَ جنون او دَ جانانه
کنی غوسه م خندا ده ، دیره دیره دَ ژړانه

غني
د غرسر
دیره اسمٰعیل خان

---

(۱) یرے : ویرے . (۲) نامبات : نبات.

# قسمت

زه نو مه خته یم لاس د کولال کښې

یا به د میو جام شم او یا کوزه د جمات

یا د یو کټې د زیارت د میخانې فانوس

یا د ویران تیکرے سرے او مات

ځواني مستي ړندو ته د بل د لاسه دي

ځانه وس شته او نه م واک

شیخ په باغ کښې د یار د کور ره

کوم گل پلیت کړمه او کوم پاک

ښکه ملامته زه په گناه شم          چه وس قسمت او تدبیر د بل دے

ښکه ستوماني زه په خندا شم          خوب د بل او تعبیر د بل دے

هم گناه ده مین په گل یم !

نه زه د گل آغا نه د نظر

نه م د واک دي خمارې سترګې

نه اوږے شونډے مل شوس

ما نه دی اېښې دَ يار نظر کښې	سپرلی ګلونه او سوڅار
ما دَ چېل نوره نه دی جوړ کړے	شرنګ او غورځنګ او رنګ د بار
ما دَ سبا په پسته دنيا کښې	نه دے خور کړے دَ جا دو ساز
چا شيرينئ وو فرهاد ته خوله	چا جوړ په محمود کړے خان د اياز

زه نه پوهېږم چه چا رو ښانه
دَ زهرا نور که په مخ دَ لال کښې
زه تصويرېم دبل دَ کوټو
بے جبانه (*) خته لاس دَ کولال کښې

يا به قسمت وی يا به دوزخ وی
او که وی دوا ره نو ته رحمن نے؟
نه شم زغملے . نه شم منلے
چه ته جلا دَ ے او هم جانان نے

غنی . خانپور



---

(*) جبانه: زبانه

# قاړغان مارغان

تراوسه پورې مو دَ ژوند د مړینې مسئلے وارو وارو لے . د کومې ورځې نه چه آدم له قامته هوش ورکړے دے . دا سوالونه دَ مغز ورځې راروان دي . هر سړي وله دَ خپل طاقت او توکې په مناسبت جوابونه کړي . انسانانو دَ مړ سوال جواب نشته وله دَ مرګ جواب نه لري . دَ جهان اکثرے فلسفے او تول مذهبونه دَ عزرائیل دَ شاهنشاهیت برخلاف بغاوت دے . تول ددغو نه ترے ګندے نه تښتي . خوک یو ګز خوک یو میل او خوک نیم میله ، خو دَغه چغه یې ، لکه ما چه پخوانی کښے یو ورځ ویلې وه .

## خاورے

چغه وي (۱) اَجل مُلا ته اورے که نه اورے
تشه خاوره نه دے غنی ښکله به شي خاورے



او یا بله ورځ چه دَ لحد په تور درز م دَ مستے سوړ شال
ویړ کړے وو .

(۱) ورنی ، دهلی .

# مرگے

مرگے دِ راشی — چه کله ئے وس وی
گل به مِ لاس کښې وے — او یا به اَس وی
یا به تو پک وی — یا به قلم وی
دوب به خندا کښې — دَ دنیا غم وی
په څه مو بخت وی — دومره به بس وی
مرگے دِ راشی — چه کله ئے وس وی

ولے آخر سرے سترے شی ، او دا اومنی چه ،

چه جام کښې گوټ گوټ — شراب ختمیږی
سپرلے خلاصیږی — گلاب کمیږی
رڼا دَ شمع کښې — دَ سحر نور راغے
سکور دَ بلبلو ته — نوےَ باتور راغے
ستار کښې شرنګ هغه — دَ ماښام نشته دے
سرور په سترګو کښې — دَ خیام نشته دے

دَ ښکلے نه ښکلے ، دَ مست نه مست ، دَ سُور نه سُور ، گل آخر خپلے خبرانے

او غمجنې ستر ګې دَ غزان یخو او بې رحمو بادونو پرته کړې
او دَ خپل ژوند دَ شروع او خلاصیدو تپوس ترې وکړی او
دَ غې ته وایو مونږ فلسفه .

زه مرګ یوه ورځ په مخه کړم . او دَ خپلې مور دَ سینې نه
نې دَ خاوره جهغه ډیرې ئ له بوتلم ، کوم ځاے چه په
یو دشت او بیابان کښې دَ هغې هډوکي پراته وو ، ماچار -
چاپیره او عقل . ستغ دښب ، سره خاوره او شنه کاڼي
وو . دلته نه دَ ګلونو چمن وو ، نه دَ بلبلو باغ ، دَ دَ بده ګئ
په سمنله کښې دَ حسن یوه قطره هم نه وه . زه دَ خاورے
دَ یو ډیرې ځوا کښې او درېدم یوه ماته شنه خازه وه
مثل ډیرش کاڼي بنکته پراته وو . نوره توپې او چې
تږې وږې خاورے وے . مرګ هم را ورسید او شا ته
م دَ آسمانه او چت ولاړ وو ، خوما سر او چت که او
دَ مرګ خالق ته م اووے ،

زه دَ هغې لال زه دَ هغې دستر ګو تورومه
زه به دَ هغې په سینه تل ودہ نسکوره مه
اوس لې بنکته بنکته دَ مزار سکانو ته ګورمه

خاورو کښې هغه ده چه نه زه دَ زړه هلال ومه
هغه لال شو خاورے چه نه زه وړو کے لال ومه

لا زمه آسمان ته ماوراے دَ جهان موړ سپوږمۍ
زور دمرګي زیات دے که دے زیات دَ مینې نو سپوږمۍ
اوري په لحد کښې څوک دَ سوي زړګي شو سپوږمۍ

موتے خاورے ښکلے پټ دَ حُسن یو جهان کړي
یو پوکے دَ باد دا چمن ښکلے بیابان کړي

خول م نه جوړیږي چه ظالم ووایم رحمن ته
خو مړګ چه دَ جهان بادشاه کړم څه ووایم خان ته
ولے دېرواز دعلم لړ(۱) نه شوه انسان ته
سیال نه دَ خان ولے کړم چه نه دَ خاورو سیال ومه
هغه لال م څه شو چه نه زه وړو کے لال ومه



خود ژوند خایشت دا دے چه تول عمر انسان سره دَدے دَ خلاصیدو فکر نه وي، کله کله نے دا تورے غښتے هیرے شي، او په خپل ماحول کښې دوره وړو خیزونو په تماشه شي او دوره وړو شمعو په تلاش کښې ځان دَ هغې لوئے تاریکۍ نه اوتښتوي.

(۱) لړ = لړي = پراختي

دَ حیدر آباد سندھ پہ جیل کښې زما دَ تو تې تو تې

مستقبل نه علاوه ډیر نور څه هم وو، د چکنې دَ دروازې په خوا کښې

د میرو جالې وې، کله نا کله به زهوبن د احاطې په کیکر کښې کمترې[1]

کیناستې، کله به مونیمه شپه کښې دَ تارو چرچق وا ورید

کله به تور قارغه لکه دَ یو جمهوریت وزیر اعظم دَ شور او

چل نه ډک په دیوال کیناست. دَ ډیبې خواله به ما ښام کښې

چینله څه راغله. دَ دیوال دَ پاسه به دَ اوبس بربر راغې

او په دغه ورځو کښې زه ډیر وږې تږې اویوازې وم، نوما

دې تولو سره خبرې کولې. میږوته به م خپل دَ تیلو

پوخ ساک[2] غورزو، او کمترو ته به م خپله دَ باجرې دوډۍ

چورې[3] کوله. دا روان شعرونه ما دَ هغوی په مجلس

کښې لیکلي دي که زه دَ هغوی په طبیعت نه یم پوهې شوې

نو معاني غوارم زه دَ انسان هم دګی لرم. او دَ چینلې

په خرمن نه شم ننوتې.



(۱) کمترې: کوترې. (۲) ساک: ساګه. (۳) چورې: مالیده.

# چینلخ

غځ دِ دَ شیخنو په شان نه خاندی او نیاردے
ښنګلے دِ آواز لکه دَ ژړندے دَ غرار دے

سترګے بتے بتے، بغے بغے تښے تښے
چغه دوه منے غریبه، توره دوه اور ښے
خُله کږه وږه لویه او زړده او وازه ویته
زړ دِ زړے کے خوږشي دنګا چه کړے راپلیته
خیته دِ چیټه، لویه او پلنه دَ لاله په شان
لنګهے دِ پاپے، ارتے سپینے دَ منتولا په شان

توپ وهے تُل نه کے څه بد رنګه دِ رفتار دے
ښنګلے دِ آواز لکه دَ ژړندے دَ غرار دے

او سے په او بوکښے دَ تیخ او دَ ملنۍ په شان
کښ دِ دَ سرې مسے کاته دمار ګمې په شان
ګرزے په پټو کښے دَ نولي او دَ لومبړ مسے
توپ دِ د ملغ په شان، غټے دباکو کړ مسے

څه اوبه څه خاورهٔ شوې څه مېږ څه کبوړې

کله دِ په سترګو کښې چېچې وی کله دوړې

رنګ دِ بې نمکه دَ خزان نه دَ بهار دے

ښکلے دِ آواز لکه دَ ژړندے دغرار دے

شړپ کله ښانګ کښې کله شړپ دَ لښتی غاړه کښې

چې ما شے چه پېښ شی خیل خانه ورله دیجاړ کړے

خوب کوے په خاورو خومستی یاری او بو کښې کړے

او سے په تیراه (۱) کښې خوبچې راوړه پېوړ (۲) کښې کړے

ښخې دِ دَ بتے او لینګی دَ چړګوټے په شان

چیت او لنډ او پلن، راغونډ وجود دَ مړهتی پښان

مخ دِ دَ دله دے رنګ روغن دِ دَ ښامار دے

ښکلے دِ آواز لکه دَ ژړندے دَ غرار دے



---

(۱) تیراه دافریدو وطن.

(۲) دَ پښاور خوا کښې کلے دے. پکښې مشهور زیارت دے.

# مرۀ

اوسے په کند وکښې يا ړه غلے پلار دِ غل وو
مور دِ غلچکۀ وه، ستا بنيکه دَ بدو مل وو

قوم دِ حرام خور دے قبيله دِ حرام خوړه ده
مړ شوے په غورو پسے لگئے توره دِ سپوره ده

سترگے دِ کاسيرے دی، چلبازدی بے شرمے دی
کلک دِ دی غابنونه او پا پئ دِ نرمے نرمے دی

خيته دِ کوهئ ده دعدو باد شنانه ځے
سر دِ دَ نولی او بريتوکی دَ تره باز ځے

غلا کے دَ غريبه غلا دَ خانه، دَ بنهيا نه کے[٥]
سيد او مُلا نه پيژنے، بوته دَ هرچانه کے

ستا داړو کے[١] خيته دے همه جهان مړه نه کړه
ستا کاسيره تنده دَ عمرونو غلا سره نه کړه

ذات دِ خُناور دے خوخوراک کے[٢] دَ انسان ځے
اوسے په سخسوري کښې نيرنی ښتے دَ خان ځے

---

(١) ړو کے ـ ډيوکے. ډېره (٥) کی: کوی. (٢) کے: کوټ.

زړه دِ دَ یزید دے طبیعت دِ دَ شیطان غوندے
چین دِ دَ منت دے خوګمت دَ پهلوان غوندے
خو ورشے چه پیشوله نوبولاو پیتی دِ هیره شی
پس به خیته مورشی په تاکیاړه ـ باړه تیره شی
غل تر هغے غل وی چه ترے بره غل پیدا نه دی
چل تر هغے چل وی چه ترے بره چل پیدا نه دی
دوه دانے ترے او خورے دوه درئی خاورے ایرے کړے
اوبے خوله دِ خاورے شه انبار ذرے ذرے کړے
خوئے دِ دَ خنزیرد ے او فطرت دِ دَ ښامار دے
خوله کښے دِ آفت دے او په شونډو کښے آزار دے
خوغو ته چه شی سخته آخر سینه نے چاړه شی
ته شے په جوارو پیشو ګان په تاماړه شی
او سے چه کوم کور کښے حرام خوړه هغه کورلوټے
دا سے حرامی نے خپل بابا او خپله مورلوټے
خو ورشے چه پیشوله نو بولاو پیتی دِ هیره شی
پس به خیته مورشی په تاکیاره باړه تیره شی



# بازيګر کمتر

چاله لوړه چاله ټنډه | چاله نور چاله نظر

څوک بندي دَ خپل ځان ګڼي | څوک غلام دَ خپل ځيګر

يو جوړ کړې دَ سقر نه | سره ګلونه ماريګر

بل دَ حورو دَ غلمانو | نه جوړ کړے دے سقر

په نيکرۍ پسې ژاړي | يو خوا مست په تخت قارون

بل خوا زړه رنګه وصال دے | او لګيا قسمه بيلتون

چرته سپي ته خپله لوړه | هم ليلیٰ شي هم مجنون

کله خر ته خپل خرتوب شي | مست جادو رنګين افسون

دلته رنګ بله رنګي دوله | دَ احساس کتوګل يو جام دے

زما سترګو پيدا کړے | سپين ساقي او تور الهام دے

شپه او ورځ زما نظر دے | روند له نمر او ماښام نشته

زه عاشق ځکه دَ رب يم | چه انسان له دوام نشته

رَبّه دے هرڅه، او هغه چه زما هوش پے نه پوهیږي

رَبّه زما دَ روکیدو نه بَرَه ، لوړے ، سپین مقام

رَبّه زما دَ هوش صحراله یو محل دے دَ کمال

رَبّه زما دے ستړي سرله دَ مستۍ بر پوره جام

دا دَ روکو په وطن کښے یو ارمان دے دَ دوام

دا په توره توره شپه کښے محبوبا ماه تمام

چه امید دَ هوش یاغي شو

چه مدهوشه شو نظر

خپل طاقت ورته سرهږ شو

په سیل ووت بازیګر



# کوچے

"کوچے" زما یو ډیر زبر دست سپین سپے
ما قسم قسم سپي ساتلي دي ـ انګریزي
جرمني، لغړ او ببر، ولې د کوچي
په شان بهادر، ښایسته
او هوښیار سپے
نه پیدا شوے
دے او نه به پیدا
شي، زما د بند په دوران
کښې مړ شو.

زما کوچیه! زما کوچیه — ته خو سپے نه وې زما آشنا وې
په تنه نر وې تر زمریه — قصه د مینې نوم د وفا وې
چه زه اوچت وم د کل جهانه — په لکها سرو م دا سړي بره
ستا سترګې زړه د مینې ډکې — تیر د ژوند د ځان او سره
چه زه آسمان نه خاورو له راغلم — تاج م راکوز که اختیار ل م واخست

شال او دستار او خلعت مې دې که | کندم به سر که او جبول مې دې خست
مانه زه هغه شان د ملک پادشاه دم | هم هغه ستړې هم هغه مینه
چه ټول جهان غیل دار ل کړل | تار د قوله لکی ډ مینه

ته خو اشنا وې زما د ستر کو

نه مې د زور وې او نه د زرو
د تقدیر ټول که د ل و ملا که سپک شو
ستا بس یو ټول وا دیو نظر و

ته زما یار وې د بد وو ځو | د بد وو ځو یار نه هیریږی
چه ټول جهان یو تور صحرا شی | د سرو گلو نو خار نه هیریږی

هائے چه د ژوند په ز ما تیلې
ستر ګې روښانه ستا د وفا وې

زما کوچینه : زما کوچینه !
ته خو سپینه ( ؟ ) زما اشنا وې

( ممند بابا )



# توانائي

دا مې ټکي په پښتو ژبه کښې نشته
توانائي چه پرې زه دوايم ثنا ستا

دې دَ خاورو جوړو شوندو کښې ځنګ ځائې کړم
خوشحالي، مستي، ځواني او خندا ستا

دَ غوږو ځنګ په تولو کښې منګاره کړم
ځنګه کیږده کړم مښپوني دې درته دام کښې

ځنګه د نسیم په کوټو کښې سرو ستا
ځنګه واچوم دَ نور دريابه جام کښې

ځنګه خوب دَ ځوانئ کړم بندي دَ خاورې
په خم او تَلم رنګونه د وصال

ځنګه نور دَ يار دَ سترګو لاس کښې واخلم
څرنګ او ترم پنډ وکي کښې هلال

نا دیده غلام د دربار کښې دَ سلطان
دا مې زه ولاړ ستا حُسن ته حیران

داده بس چه مجبوري م خپله او منو
توانائي نه شم کولې ستايان

خو چه ستا پيغام دَ نوي صبا واوړم
لکه ګل چه دَ سپرلي واوري پيغام
تياره هيره کړم په طمع دَ رڼا شم
په لحد کښې او ځکم دَ مستي جام
اميد وي بنښي ژوند ته بل خيشته مثال کړي
دَ مرګي دَ مخه تاو دَ ژوندون شال کړي

# مُلاچرک

زیږ دِ قمیص دے　　خرد دِ خنبتک دے
شمله دِ نیغه ده　　او کوټ دِ برګ دے
تولہ ورځ ګنے ګنے　　په ځان مینه
چا خوار چینجی پیے　　کنډه کوینه
نمایشی شان نے　　کړے دَ غرور الوته
دَ مشرو تو نه دک　　ستا قدمونه، کاته
بڅے بڅے دِ ستر کے　　دی دَ "پښتو"(۱) په شان
په دریخبه دریخبه تله　　دے دَ تتو په شان
دَ سلیمانؑ دَ لالی !　　نوم او صافه دَ امام؟
یو خوا قبا او تسپے !　　بل خوا پیاله او خیام !
یو خوا سپین روژے ملک　　مَریئے درسم او قانون ؟
بل خوا د مینے دلال　　بندی دَ رسم او افسون !

---

(۱) "پښتو" زما معزز او محترم دوست مهردل خان دَ صوتی -
خان خیل ،ټندے وړو کے دے ،خو دماغ ئے ډیر اوچت دے.
او مونږ وړته دَ قهر او محبته - "پښتو" وئیل .

یو خوا تنګی تاریکي | د بل د خیال سودا
د مال او بیع سودا | د خان او مال سودا
بل خوا د بل په سینه | خان او ناموس ورکول
پټ شاباسی له د زړه | د خار جلوس ورکول
یو خوا د بل سترګو کښې | د ډېرو تالاش
بل خوا د ماتو شانګو | د الوتو تالاش
زیرک او معقول پښتنه | پګړه په سر ملا
تا کښې ښکاریږي ماته | د ژوند عجیبه قصه
چې کله ته والوزې | ملکه سبا وینم
او سلیمان ته خاورې | تو له دنیا وینم
د بحر و بر بادشاه | وړے شان جوړے ته
قربانوې خوشحالي | د غم میر منې ته
د ګل خندا وینم | د لولکۍ پرواز
د محمود اوږ سترګې | معصومه ګله د ایاز
زه د آدم د جوړښت | په وجه راز پوې شم
په خپل انجام پوې شم | په خپل آغاز پوې شم



# بورا

تورہ بورا تورہ — ته مهمند ئې که خټکې (*)

نۀ پوهېږې د ګوڼ نکت — دا ارمانونه دلولکې

مور دې د ګل اندامهٔ — بابا دې ګُرابان (۱)

رنګ دې دَ شاخیل — او طبیعت دَ شاهجهان

بنګ دې دَ دمبر دے — فلسفه دې دَ خیام ده

تورګوګنته تاکوم خانې — څکلے خواد جام ده

تا دَ رنګ او حُسن ساز — دَ چا په ستار واورېدۀ

تا د چا دَ خُلې داستان — د مینې اویار واورېده

اے تورې دیچکیه تاکښې دَ شیرازولے

اے خپه ماښامَ : تاکښې نور او ګلاز ولې

خو بیاره تاکښې م ! — یو صفت بَدی شي

ستا کوخه د ښاپانِ ! — م عادت بَدی شي

اے هرجائي عاشق — دَ یو ګل یار نه یې

---

(۱) ګُرابان هغه دیو وو چه په ګل اندامه ښاپېرۍ مئین وو.

(*) خټکې : خټک یې.

دَ مینې نوم دِ سپک که — دَ یو دلدار نه ئې

هره لمحه لحظه کښې — نوے خمار لټه ئې

او په مذهب دِ مینې ئې ته بې وفا — پرون دِ بل وې او نن زما ئې

په رنګ او بوئ مینه — جانان دِ هیر دے

خوانی مستی ننګلوے — خزان دِ هیر دے

دَ فراق تور غمونه — ژړا افسوس او ماتم

هیر دِ دی اوچ سیلونه — زړه خوانی، نوے غم

دَ زیړو ګلو شان کښې — مرګ روکیږي دِ دی هیر

دَ نن په شوق مسته — سبا ارتله دِ دی هیر

داسے بې توله ته ئې — خنک بې پایان چه نه یم

ته دَ هغه ئې بورا — دَ چا انسان چه نه وم

تا کښې رڼا او تیاره

سپین شته او تور شته

چه ته ښکاره شے نه ویم

زما هم رور شته



# تارو

ځګوړه یو ونځې تور تارو په سجده پریوته
وې کړله رب ته عجیبه غوندې دعا

وې تور ولې تنها یې د اوخړو د زمانه ؟
ولې یو - باتور - یوه ګنځې - یوه هما !

زه په تل حسینؓ یم او ښکاري په تل یزیدي ؟
لا مې ګڼې علۀ دام - کله توپک - کله لینده ؟

پرې دې بورا یو سې تور بورا د ګلو مینځ له
پرې دې ګنځې غریبه بوي له او دیران له

پرې دې لولکه ، لکه باد د ګلو پاسه
پرې دې پتنګ د ناله ، سوز له ، او تاوان له

پرې دې مینې دتورانئ بنار دمنبوکې له
پرې دې کرګوره د شهباز او ښکري نوکې له

پَرَ قارغه په گَند، پتنگ وروا چوی په اور

پَرَ عقاب له غرور او تهوس له شی بیغور

پَرَ یَو په باغچه کښې د صحرا د دړو لیواله کړی

بل له جام دَ ژوند شی، جام دَ زهرو دَ منګوړ

پردَ عقاب لوئی شو رتبه وے دَ تنزرو!

وے هر مارغه کښې نشته تله دَ توتکرو

وے هغه ملک دِ دَ شهباز دَ شکرے کور که

کوم ځائے چه درانه ګوزی سیلونه دَ کمترو

یو تنزرے بس دو ستا کمال ښکاره کولو له

ښکلے دَ طاؤسه خوش زبانه دَ کمترو

بس چه یو مارغه وے، یو ئے پرے اوږدے او یو ته وے

بس چه تل باجره وے، خاورے دوړے دَ وا ښه وے

بس چه تل سپرلے وے، زیړ کلونه وے، سبا وے

بس چه بس یو ته وے، یو ارمان وے، او یو نه وے

* * *

تول جهان خاموش شو، دَ خپل زړه آوازئے واورید

زیړ لکه غلام، د بادشاهانو رازئے واورید

تول جهان خاموش شُو، یو آدم و وچه ګویا نه شو

مینے دا سے یو رو بے خبره دَ خپل ځانه شو

وے، زر لکھا سوالونہ ژوند جواب یم زہ دَتولو

زہ یوہ قصہ نہ یم، خوباب یمہ د تولو

زہ کلہ مراد، کلہ ارمان، کلہ غرور یمہ

زہ تنک او تکور یم، زہ شراب یمہ دَ تولو

زہ یمہ مخلوق خو دخالق دِ رنگہ ڈک یمہ

زہ کامل کمال، زہ سُر رباب یمہ دَتولو

زہ یم تورے پنجے د باز سترگے دَتنزرو

ما کے پټ ارمان دَحُسن۔ زور دِ دَ وزرو

پھارپور



# کور کوره

خومره ښکلې تصویر دې ستا     خومره ښکلې دې آواز دې

ستا په نظر کېنې سپوږمۍ پټه     ستا په پا پوکېنې ایمان دې

مخ دې نازک د ماشوم په شان

خوږې د غېښته نازنین مې

خیال مستانه د خیام په شان

ملګه د مخمور ما جبین مې

مینه، لوبې، سترګې دې     ناز او نخرې د دلدار کوې

ته د ګلاب او نرګس په شان     ما ته قصې د ګلزار کوې

ښکلې ثبوت د خالق د غېښت

ماله قصه د جنت نې ته

ما ته داستان د کرم کوې

ماله دلیل د رحمت نې ته

ستا د ګوګو، غېښته آواز     ماله اذان د بلال دې

ستا د خنا! د نا وجود     ماله پیغام د وصال دې

# مچ

شغ شي چاپې کښې راغوته شي　　　داد څه خر بښیې رنځ دے
پکښې داسې چوړلک اووے(۱)　　　ته به وے د بنګړي(۲) منځ دے

اوډې ژبه دِ شه خاوړے
نه دِ خوب شته نه قرار
په ترږ سوتو مینه
والے(۳) ئې د چا آزار

د هر چا کره میلمه ئې　　　نا بللے بې عزته!
نه په شرپ باندے جاروزے　　　نه په سوک او نه په لته

تور دوغ بے شرمه ستر ګے
تیارخور ئې مردار خور ئې
بلا دِ خوئې سخا دِ دو دئې ږ
پهر شي د پاسه سور ئې

که نور داوی ته پرے مر ئې　　　که غوړی وي ستا پکار وي
ستا پرے بے صبره غوټے وي　　　که خاشنه وي که انار وي

(۱) اووے: ودمے۔ (۲) بنګړے: اتې ګکې۔ (۳) والے: ولے۔

بې غیرته خوئے د مړه
د مړو روړ وینه څښتې
اے شهیده د کعبا بو
اے غازی د پرا تې

که پښتون خیلوان د مړو شي ته د خپله خوږیه ناؤ رېے
رے دا سر د ښتې زار شه شرپ شي زیړ خیته داد رې

بله بدے د پا پنې دی
د لینګ پور ے لر ے
خُله د زیږو په لاون ده
چې پرون د وو خوړ لے

ستا میوه لیقرے با بویه ستا پولاؤ فیرني حلوا ده
ستا دے خیته کښې دوزخ دے ستا د شونډو کښې بلا ده
تولہ روحے چپه چپه ستا د اخُله اوز کا نه شي
د دنیا ګنډ ونخلاص شي ستا قلمه قلاړ نه شي
خیر دے ژړے را روان دے تور اورو بوز به د چیچر شي
چینګه خُله به چړته پروت ئے دا قلمه به د پا پړ شي

زه به خورمه په قلا ړ
تو د شربت او خوږ نے کړے
دا بو دی نیا به د مړ وی
تور مچه ته بَم (۱) مړے (رحیله آباد جیل)

(۱) بم : به هم.

# شپږ زمري

په ۱۹۲۹ع کال کښې زه په دريم ځل د هري پور جيل ته
راورسيدم. دا زما د بنديدو دريم کال وو. په دے دوو کالو کښے
ما د پېښور او حيدرآباد سنده جيلونو کښے ډيرے بدے
ورځے تيرے کړے وے. موږ ته اېل يادان. د هندستان جيل
خپلوان د پاکستان په ټولو صوبو کښے خواره بنا وو، خو د هري پور
جيل ما ته د کور په شان ښکاريده. ځکه چه دے کښے زما بابا
ډير کلونه تير کړي وو. د هغه د لاس ډيرے ونے دلته کښے
شنے ولاړے وے. زه د حيدرآباد د جهنم نه دلته په کال پس
راغلم او په ډيره موده پس مے يو ورور کے د زيړو ګلونو نه ډک
بوټے وليد. هر سحر چه زه به پاڅيدم نو د هغه سلام له
به لاړم. زه په انګلستان، يورپ او امريکه کښے ډير ګرزيدلے يم
او ډير لوي لوي باغونه مے ليدلي دي، ولے دومره ښايست
او زما په يو بوټي کښے هم نه وه. خومره چه دغه غريب او
ارزان ګل له د خوا د او سپينے توږے پنجرے او چاپيره

تور ماحول ورکړے وه. دے پنجره کښے ماسره نور شپږ ملګری وو:

۱- پیر شاکر الله د کوجړ ګړئ.

۲- خانخیل مهردل خان د هوتی د نواب هوتی ورارہ.

۳- جهان زیب خان د رزړو. زما د ترور زوی.

۴- فردوس د مانیرئ چه مونږ ورته د میتے نه کوګوو ایو.

۵- زرین خان د میاسے د پارلیمنټ ممبر.

۶- یوسف خان بابوخیل.

یوما بنام م دماغ او تبستید، دا د تور توشعرم اولیکه

اردو دئ نه پس م واوروو:

دلته کښے پنجره ده په کښے شپږ دی ازمری
خوګ غټ، خوګ اوږده دی، خوګ ښائسته دی خوګ نری
روره پاکستان عجب جوړ کړے چړیاګړ(۱) دے
بند پکښے، دیوان، پیریان، ازوزی بناپیری

(۱) ورته مخامخ دره پنجره ده د کرکو
مخې اوچ یو بند ے دے په مثل د ماکو

(۱) چړیاګهر: باغ وحش.

رنګ ئې دَ نيرنګ دے خوږ زړهٔ دِ دَ پښتون

تن ئې دَ بلبلې خو همت دَ ملا کړو

ونئ اوکنه، اوکنه، هن کنه هن هن کنه

يارهٔ که رَبّ زهٔ کرم دَ دے توِلو تولوا کړو

زهٔ به دا ځاربه ښتونه کرم يو ځل نړی

دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دی ازمری

اَخوا تے زرين دے دَ وطن نوم ئې ميا سه

(۲) هر ماښام او باسی دَ خبرونو خلاصه

غاښ دَ غريب نشته کښې خوښ ئې دی چرګان

هره ورځ کدو خوری ډیرے خوار له دلاسه

تن ئې د چنجنے دے خو عقل دَ لقمان

خيال کښې انتشار وی او زړهٔ کښې تلوسه

حرص دَ دنيا ته لګوی ډنګ کوری

دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دی ازمری

(۳) بل سر کښې يوسف (۱) دے حاضر دَ غريب ورانه ده

هر رښتيا قصه دَ اد رقو، پوکو، روانه ده

دال ئې هوا بند کړی، الوکان ئې اپنه سيزی

غور ئې زړهٔ له بلد دی مساله پې کړی، دو کرانه ده

---

(۱) يوسف خان آخر معافی او غوښته او کلی ته لاړ۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْن۔

مالکه ئې سترګې زیږې کړې بنوروئې اشونې او چې کړې

دې جیل ته حیران دې، جیلخانه ده ته حیرانه ده

چاڼئې چه دیره او ځکې لګی اِنګی پرې نزې

دلته کښې پنجره ده په کښې شپېږ دی ازمرې

خواکښې ئې دې پیرشاکرالله زمونږ خان

(۴)

مرچا ته رسی، تهیږ، او ځګره، الوکان

دې خوا ته سپې ګل، اخواغورې، اخواصابون

تله به لاس ناست وی د چلونوکې بیان

ځان دلوړې مړکړې خواشناله دالې ولیږی

کاش چه وې دده په شان تول زمونږ پیران

مالګړه راکړې. یاره ولیږی سترې

دلته کښې منجره ده پکښې شپېږ دی ازمرې

(۵)

دیخوا ترې مهردل دې دې زمونږ درو که رور

چرته چه دې نارې هلته وی خندا او شور

یوموتې وجودکښې ئې یوغ دَ نزتوب پروت دې

سل مرګه به واخلی وابه نخلی یو پیغور

تل به پل سورلی کړې پیفطرت پیدا پښتانه د

ترې ئې جورکړې دې غرورکښې ځان له کور

اے بلبله! که ژړا کړے ماله راشه | ګنے خه که خاندے وخندوه نور
سوے لوے لوغړی پتنګ وے خلکه! | واشی نو کوری زه نیم سوے په اور
لاله وشهید شو ستر ګے نے کړے منکته | بورا ولیده راپریواته نسکور
غټے ستر ګے د نرګس او بنکولا هو کړے
په لمبو شو د مو ر و مر شوے اور

لندن

# د تور ے فریاد

چا کړو خرڅ خپل دین ایمان په جینکو | چا په مال چاتش په تمه د ډوډو
چا بدل کړه په هلک چا په شرابو | څوک نا ے د مولخلی په تسپو
مونږ عاصیانه کول په نو مونو لقبو نو | د صاحب د ښو په ځای مو وتپو
او س نو مونه شو خوړ ے نه بنکلو لے
تش شپیلۍ ته لګو او د (۱) لکه د سپو

# جته

بے تعلیمه ښځه غوا ده | سخو کتو له بے بها ده
نه ورانیږی نه سمیږی | بس پوښی یوه بلا ده
خو له ئے ژرندۍ نه و دریږی | د چـړ چنو مشغو لا ده

---

(۱) وهو.

زوړې وران لوړې ناوې — خود غواړې څه پروا ده

پروا ده د خدای رحمت دی — یو طاعون دی یو وبا ده

په کالو نه ښکلې کیږی — دا به خویه دلبر باده

په کیلو نه سترې کیږی — تل ویروونه دی غوغا ده

فلانې داسې فلانې داسې — دانې کار دانې سودا ده

وائی غټ مین په غوا
چه دروغ دے که رښتیا

# خرمستی

هسام شوله ماته نیمه لاره کښې شوم پاتې — خوانی مې شوله مراد د یوې یارې پرې شوم پاتې

یما به خندو جونې ښکلې سپرې بلبلې — بودا شا خیل شوم ویم(*) شلیلې تبل ته غږې

ستار شوتار په ورد لوے دیارې پرې شوم پاتې — هسام شوله ماتمیه لاره کښې شوم پاتې

وه لویم سینیخ م اینه سکر چلبانے
اوس سترې مسافر په لوی سفر څه پوازے

ستی شه د مستی کرد کاره پرې شوم پاتې — هسام شوله ماتمیه لاره کښې شوم پاتې

یا ټلمه الوتمه پرقیمه مسه اوردوم اور
سپیره وپا ایرے شوم په زړه سوے په یخ تور

شه ورک دا بود اتوریغ د یارې پرې شوم پاتې — هسام شوله ماتمیه لاره کښې شوم پاتې

---

(*) دیم، دایم

# ترانه

کړم به خپل وطن د ټول جهان د ننداړو رو ملک به کړم آزاد

نه جوړېږي بې نما د وینې دا دارو تل به وي نابناد

یا چه ځان قربان کړو په وینو ئے سم ودان کړو

یا چه ئے سم جوړ کړو یا چه ئے سم وران کړو

څو چه بیائے ونیس دا انقلاب کړو په نارورو هسې شو برباد

کړم به خپل وطن د ټول جهـــان د ننداړو رو هسې شو برباد

واچوئ منهیستموردئ (۱) سر په وینو سره ور دئ

کوړې مونږ تېر خپل پړ دئ نن به نشي ننګا لېمر دي

ځان د خند ننګ ئے بې تر ملاوړو (۲) را وخت دی د مراد

کړم به خپل وطن د ټول جهـان د ننداړو رو ملک به کړم آزاد

څه به کړم بې ننګه قام څه بکړم بې جنګه قام

وینو کښې د ننګ بنګه قام څه دی د بې ننګه قام

یا به پړې لوګې شم یا به ئے جوړ کړم بې دار و رو دا وطن بربـاد

کړم به خپل وطن د ټول جهـان د ننداړو رو ملک به کړم آزاد



---

(۱) لباس، دریشي. (۲) مخفف د ملاورو.

# دعا

خدایه! ستا ونه دنیام نه ده خوښه — ماله راکړه بخښل لوی جهان کښې برخه

چه کوم ځای کښې بې ګناه ګناهګار نه وی — چه کوم ځای کښې زنځیرونه د اغیار نه وی

چه کوم ځای کښې وی بې حسه نه احساس — چه کوم ځای صبر زړګی وی لوټ نه لاس

چه کوم ځای کښې فریاد نه اورم د کوندو — ماشومان یا پتو کړه په پسې په منډه

چه کوم ځای کښې نهمزه شته نه قانون — نه عشق شته نه وصل نه نه بیلتون

چه کوم ځای کښې وازې سترګې نابینا وی — چه کوم ځای کښې یو شان نن پرون سباوی

چه کوم ځای کښې که بادشاه وی که ملنګ — یو تخت او یو تاج یوئې پالنګ

چه کوم ځای کښې د اولاد دوستی بیکاوی — چه کوم ځای کښې ننګ اروان شته او نه لاره

سترګې سترګې م کړې پټې یا الله

زما خوښه نه ده ستا وره دنیا

# زړه او سر

نن بادشاه سره په جنګ شو لوو زیر — غصه عقل شو په لارو د ضمیر

وې عشق مه کوه دا پیغام دې د مرګی — زړګی وې نه! عشق آرام دې د زړګی

دا د پاک الله صفت دې — د ده نور د ده رحمت دې

دا په دې مځکه جنت دې — د هغې جنت نعمت دې

دا له تولو لوی دولت دے      دا بانی د شجاعت دے

بے له دے به جهان سپور وی

بے نه مکه لکه کور وی

## سر:

چوپ شه چوپ شه آ نوکره د بتانو!      ئے غلام د تورو زلفو سرو لبانو

تورے زلفے دے دیار د غم تیارے کړی      سره لبان ئے د دوزخ کوره د شیطانانو

د کنا مار پټ په دے کلو کښے ناست دی      له جنته غور ځولے دی انسانو (۱)

لیونی دے کړ مجنون فرهاد دے ورک کړو      ښارونه ئے دے کړے تباه د بادشاهانو

دے بد نام آ زلیخا په ټول جهان کړه      د مغولو کور د دے دلاسه ورانو

چه زما سره څوک مل وی تل یادیږی      څوک سقراط د حکیم څوک بقراط و څوک لقمانو

عمر څوک ؤ هارون څوک ؤ مامون څوک ؤ      له ما سره چا ولی باشاه لوے سلیمانو؟ (۲)

عالمان پیغمبران زما دوستان دی

عشق دے کار د لیونو یا ملنګانو

## زلمے:

مکره لا پے د ځان نه م دی په کار      عطر وائی چل قیمت چوپ وی د عطار

راته ښکاره شه ته ئے روند په بینا سترګو      پاڼه پو هیږه خو کړے مکر ئے مکار

ته انسان ته ښیئے لار؟ په جهان کښے؛      د جنت انسان ته مینه ښیئے لار

---

(۱) د قافیے په لحاظ د جمع او مفرد املا په یو شکل د لیکل شوه. (۲) باشا: پاچا، بادشاه.

د آدم نه دې راز پو نه ښتنه وکړه	تول جنت ئې کړ په ده باندې نثار

یا تپوس ده ارني موسیٰ نه وکړه	لا نه شه ورپوښتنه یو ورځ د حرا غار

د مجنون یاد فرهاد نه سلا واخله	یا منصور ته وایه ولې شوې په دار

منصور ځان کښې موسیٰ طور کښې نور لیدلو	پښه کوم لیلیٰ مجنون کړ بې اختیار

یو معشوق په بل بل رنګ په بل بل باس کښې	خندوي او ژړوي هزار هزار

جلال یو دې جمال یو دې کمال یو دې	هر عاشق ئې وینی ځ کښې د خپل یار

لکه ځنګ د نور په زور سپوږمۍ بلیږي	دا ښېښې معشوق نور د رب غفار

څه که خلک لیوني غني ته وائي

دیر ښه پیر غني خپل یار م نور دیار

(اتمانزی)

# کونډه

کونډه ناسته په ژړا سر ټکوي	چې زما سر ئې په کولو شو شهیدان

کورئې کور شو تیار دې دیو ئې سره شوې	کور ځا نو کړل فنا نیسته ځوانان

د ذرې ذرې بچي سر ته ده ناسته	په ویرونو لړزوي ځمکه آسمان

آې زما د کونډې ملګرو خدایه!

آې منصفه زما د انصاف ځایه!

زړم وکړه په سپین سر تا ته ژړېږم	دا زما د وستي ګلاب رانه مه بیایه

دا یوه ښانګه زما د تالا باغ ده	دا لالې زما مه بیایه له دې ځایه

نور دې ورک کړل په کولو د کوڼکانو — دا زما وروستې بچي پرېږدا ې خلاً

دا زما د سوي زړه يو قلار دې

که نې اخلي نو جهان خان ته مه وايه

دا زما د کړنې ملايوه مسادې — که نې بيا ماتم لا ر د کورونه بنايه

الله رحم په سپين سر د بوډۍ وکړه — مړکې راغې خلاصې کړو له کريان

د بچي په سينه ساړه کړه عاجزې — بوې ترې لاړ تش کال شو پاتې په ميدان

په آسمان کښې فرښتې په ژړا سره شوې — په سجدو پريواته ټول پيغمبران

# د عشق نور

د آسمان د سوري لاندې — او د ستورو مشغولا کښې

د يغ سينه په غاړه نه لست دي — د ده ياران مشغول سلا کښې

د سپوږمۍ زړه شو خوشحاله — په خندا نې لاس کړ پورې

د عشق نور نې مرخوا خود کړ — په بلبل کښې په لا لا کښې

خوشحالي وزرې وکړې — چې د زړه د باغ سيل وکړي

او دا د واره ياران بنکل کړي

د سرو ستورو مشغولا کښې



( اتمانزی )

# اے زړه

اے زما د زړه بلبله ولے ژاړے؟! ولے خپه پسے خپه ځے غواړے؟

څه د پلار دے د بوستان د عشرت پرېښو څه د یار دے د غمونو لټے (۱) چاړے

دا ته ښکاري جوړ بیا ئے شیدا شوے خکه نه وے مے نغمے کوټ کښے ولاړے

دا ته څه وے؟ چه یورپ کښے دلبرے د رقیب یاري کړه جوړ چه ته لاړے

دا یورپ دے جینکو کښے وفا نشته

بے وقوفه! ته د مړو نه مستي غواړے؟

(اتمانزی)

# ته او زه

ته د مړه وُخوبند و کشره ئے او زه د خپلو مشرورو یمه

خو په ښایست د ټولو مشره ئے خکه همیش زه پروت نسکور یمه

ته ئے ګلاب په شکل او فطرت او بل رنګ کیکر ازغے یمه زه

خوږ د ګبین نه خوږ دی ستا لذت همسے بیخونده مزے یمه زه

لکه د ستوري ته ئے ګل د آسمان د جهان ډنډ کښے د زړه عکس نه یم

د شپیلۍ ساز پسے یم ګله روان ګله په ژړګو کښے ستا رقص نه یم

ته د سحر په شان ښیسته او ځځه زه د ماښام په شان غمګین او ستړے

---

(۱) لټوے.

نشه په ژوند د شراب ستا ډېر خه | زه په وسواس خوړلے شوے مزے
ته د سپوږمۍ په شان موسکۍ هوښیارۍ | او زه د لمر په شان سوزېږمه تل
ته د لوړۍ په شان د ګلو یاره | زه د بلبل په شان ژړېږمه تل
ته ئے نسیم رازدار د ښکلو ګلو | زه کوګنګټ یار د رژېدلو ګلو
ته ئے شبنم بے بے د نوو ګلو | او زه زوړ ګلشن وطن د سوړ ګلو
ستا په خوږ دمړو غزل دے ښکلے | ادمړو ویر زما د زړه وتلے
سهېلے تا نه ده خندا زده کړے | شپیلۍ زما سلګۍ دی اورېدلے
زه مقتدی یمه او ته یم امام | ته ئے مالک زما او زه دے غلام
ستا د ښو ځاے زما سر دے مقام | ستا ښکلے تن دے ما ته بیت الحرام
زما جونګړه یوه ده ویجاړه | ګلے ! راځه چه ورله ورشو دواړه
ستا په ښو یت به زما بدشي واړه | ازغی م ښه ښکاري د ګل پیجاړه

(اتمانزی)

## بابا ته (۱)

ستا خط نه تول زما ته پراته دي | زه ئے لولمه شپه دوبار دوباره
کله خاندم کله ژاړم لیونے یم | اے زما په بند کښې پروت غریبه پلاره
نه ته نه ئے غریب ته دیر لوے ادچت ئے | مصیبت دے ستا غربت ته غربت داره

(۱) دا یو منظوم خط دی چه غنی باچا خان ته دلندن نه د خوی دیر شکایت آمیز مکتوب په جواب کښې لیکلے دی. باچا خان دغه وخت په جیل کښې ؤ.

خدای به رحم ؤ په تابانده لوړ کړے		بل به نه زوے به ؤ کتلی ستا د پاره
چه په تا کښے کوم جوهر د ے ماکښے نشته		ستا نیکئ زما بدئ دواړه بے شماره
ته سالار ئے د کاروان په نیغ لاره ځے		زه کوزږ ځغلم لکه او ښه بے مهاره
ستا د زړه فوارد ے کے دی د مینے		زما زړه وچ کوهے نه لری یو داره
وهم منده ے تا پسے خو ته هم لرے		وینم ستا ایله ایله د پښو غباره

پروا نشته که په منډه ومنډه ومر شم
فقط ستا او د خپل تمام د نوم د پاره

(لندن)

# خانصاحب

پیسه تنګ خان زما لوے یار د ے زما خوښ ډیر د ے
کوی لمونځونه په روژو کښے له هر چا تیر د ے

ابله ورځ م په یو ځا ے کښے ډیر دلګیر ولید ه
ماوے کاکا ولے خفه ئے جومات د ے هم میر د ے

وئے وے بچیه! بیکا وورا کړه غله را غلے
اوس دانه مسے د خفګانه روکود ه هیر دی

خوشحاله زه کښے شوم خو مخ م له خپګانه کړه د ک
په یو کوټ میخ نه کیږی کور د بود الوے نیر(۱) دی

---

(۱) نیره ویاله، نهر.

بیام تپوس په عمله د ئ ترڅې د نقصان وکړو

بود اپه سر د ستړګو په خوږ زړه دابیان وکړو

وي بچیه: ماته هر څوک مالدار وائی

تول پولیسان استا غاصب یا نمبردار وائی

او اماماران تپوس د زکات نو کوی

زما پښتانه سی ئ بل نشته څوک دیندار وائی

مولوی وائی په چانانو کښې یو خان یمه نه

عبث زما لغ کښې بیا ظالمه څوک هوښیار وائی

غلا په تمه د ردو پو نه ما کوه راغلي

ماته خپله استنت صیب د سرکار وائی

خوږم خپه چیپه تش لاس لو نه څست موزدان

اوس به قصه زما د کور په هر بازار وائی

چه منځ کان پکښې د شپې نیزه بازی کوینه

دیو جوار په دانه هم چتر تینډ ک نه خورینه

ما وی کاکا: نن ورځ هر څوک د غمه کار نه کوی

پخپله مړی د لوږې بل نه خیرات نه کوی

محکمه کا نه کړی یا پېسو مال د بنیانه خلی

بیا په زمری بلا له دعا بوکوی ښځا تو نه کوی

بریشتو نه غور کړی چه تندم م اوس تو ده خوړه

یا تمانچه په ترخ کښې واچینی (۱) فسادو نه کوی

دا ئې هسته بهر بوه پیسه کښې تلی نشی

کوڅی نمر د جمعه ادته به بستو نه کوی

نشه دده دا نلمو خرڅی (۵) د پلار مال کی

مرځی هم د کوره تښتی مجرتونه کوی

خدای دې د پخپله وته وکړی هدایت د لار

غني که وائی څه وته وائی تم (۲) د کومه پلار دئ؟



---

(۱) واچوی. (۲) تم = تمه. (۵) خرڅی = خرڅوی.



# مورې

گرچه خاورو کښې دې پټ وجود ستا مورې! / ما ته یادې د هغه شان ستا سترګې تورې

مورې: ستا لاسونه ما نه نه دي هېر / چې تکلیف کښې به زما نه و چاپېر

ستا د خولې قیصې یادومه هر ماښام / د ګنجې د مړا مونږ د بهرام

ستا ومل د بل د مینې نه خوارېدو / ستا کتل زړه ته د بل زړه غانه منبه وو

یا چې ما به دېر خراب وکړل کارونه / او بابا به لړزول څکې آسمانونه

ته به وې زما ملګرې زما مل / او زما سلګو سره به تا ژړل

مورې یادې دې ما ته آورو کې تمال / چې تا زړه به ژړ نګولم کال په کال

ستا جونې سندرې ار خندا / چې به نوئې سپک لکه د باد کړو زړه زما

یا چې ما ته به له قیسته شوے په قار / زما اوښکې به دې بوتلې په زار زار

مورې یادې دې ما ته وارې اخترونه / چې به تا په ښکلي مخ کېښول خالونه

په جګرو به دې زړه کړمه پاک ښیسته / ما به ځان کړلو په ختوابته

تا به وو هلم بیا به دې کړم ښکل / په خندا به دې زما کغل نه غمل

ما ته یادې د هغه شان ستا موسکې شونډې / ما ته یادې د هغه شان میلو ته منډې

چې ماښام به ستړې کور ته راغلم زه / ستا په غیږ به الله هو به شوم ویده

مورې: ما ته یاده شپه ده یوه توره / چې زما د جود کړم له سره اوره

زما سر ته کښې و شغار د جهازونو / او غوږونه م کانه په آوازونو

زما ځن مورې! ته تا به وے قربان
زما ځن ونی ته به تا کاوه ګریان

مورې! ما ته یوه بله ورځ ده یاده
چه زمونږ کورلږ زیل لوله فریاده

وه دیر یخ شان ستا آوده لاس نازنین
ګلابي ننګی ستا وه بے رنګه سپین

ته موسکی په خوب ویده وے پانه خیدے نه
ما ژړل د ته او ته را وینیدے نه

ما وے مورے: مورے! تا ته قربان ونه وے
وے پړ ته خاموشه ګل په خزان سوے

ما ژړل او ته ویده وے خندیدے
ما ژړل او تا پوښتنه نکړه چه ولے؟

ګرچه خلو روکښے دی پټ وجود ستا مورے!
ما ته یاد دے هغه شان ستا سترګے تورے؟

## ګل که یار

اے زما د سترګو توره!
اے زما د زړه قراره!

اے زما د سر ګلابه!
اے زما ښایسته یاره

په زارۍ د رته ولاړ یم
یو نظر را بانده وکړه

ستا زیارت له یم راغلے
مسافر یمه په لاره

مال دے حسن ته امیره
او زه خوار و زار فقیره

د ښایست زکات دے راکړه
اے زما مهر نګاره

ته بلبل ته منبسته ګل ئے
او پتنګ ته رڼا وے

خوله دے وسپړه ګله!
تول پر تا دی بیقراره

ستا په پانو دا شبنم — دي زما په سترګو نم

ژړوي مام هر دم — ستا ازغي تېره بېشماره

درکوم زه د زړه وینې — چه ستا پاڼې شي رنګینې

دا ستا سرې شونډې ښکېنې

شوې دې وینو په داره

# لیلیٰ

په پالنګ ناسته لیلیٰ په لاس کښې او په غېږ کښې ستار

سترګې دې د پرسان او انتظار نه دیار

د مړاوي ګل په شان ئې مخ زیړے زیړے شان دے

ول ول ئې زلفې ترې چاپېرې لکه تور ښامار

واره واره ښیسته لاسونه د خفګانه مړه دي

په څوپه خوله د عشق ساز ئې نه وهي هر یو تار

لیونۍ نمر په زیړو سترګو دے سترګې لټي

ورو ستو ئې سلګۍ کړي رو رو مري لکه د غم بیمار

خوږ دے سترګې د بل چا د سترګو نور غواړي

نه زیړے لمر وینې او نه دده د سترګو خمار

سرزرګۍ غوږ کړو ځان ئې غرق په خپلو وینو کښې کړ

سپوږمۍ سر تور کړو ورپسې ژاړي په زار زار زار

په پالنګ ناسته لیلی هغه شان سره تاو غوږ وي
او خانۍ خبر عشق په کله بیا زړه کښې دیار خوږ وي

# سوال

خدایه ! وګړم د غنچې سره خندا ؟ که د خوار غریب بلبل سره ژړا کړیان
خدایه ! وګورم د خپل یار ښکلي مخ ته که د خپل سوي زړګي شم تماشان
خدایه ! وویرېږم ستا د لوی دوزخه یا که تمه کړم د شروع د حور غلمان
ته مې پوه کړه ته مې پوه کړه نه پوهېږم
چه زه تا کړمه خوشحاله او که خان ؟

# لیونتوب

یا زه جوړ یم دا خلق لیوني دي یا دوی جوړ دي بس یوازې یم لیونی
ما ته محتاج وه ستا دوزخ جنت څه په بله دبلو نو ځان ده رسی (۱)
ورک داستا به نهاجها ورنې نام شه ورک داستا عشق کړي زړونه کوانی (۲)
دا شه لوی ناز د خیال جهان ته چه خپل جهان شي ورک پښیمانی
نه نیته لوري نه غم نه وږخ نه لوږه تل پسورنی شباب بیا د جان جانی
د سینا نګ دچیو په شانې دانګي خوشحالي نې بې پروا جاروړانی

---

(۱) ده رسي . (۲) کوانی . مګر د ته وشنګه هرڅ زکه بابه پیلنه (یا) ، ولاستل شي ، وه پینو ، مصنف یم زغتې دی .

زما الهام ستا دلبر په شان خلیږي
خو دښمن دی نه ډکال نه د خوانے

زما خلک هم ستا د خلکو په شان سوځي
خو په عشق کښے نه د خېټې په خاطرے

زه هم کړمه زلزلے عالم تباه کړم
چه موسکی کړم خوږ لبنی به بخښانے

زه هم وژنم عالم ځاے نے تو لحد کړم
چه بیا توانه شي د مینے د توانے

زم (۵) دوزخ جنت لرم ورو کے نه یم
دوزخیان کړم ستا د ملک په کامرانے

جنتیان کړم بوراګان په باغچه ګرځي
یا الولي چه د ګلو نو غښتني خوانے

زما ملک کښے دولت نشته خوشحالي ده
دی زمزم زما شراب سره فغانے

وی باران زما په ملک زما په اوښکو
په خندا نے تازه کړمه زه نے خوانے

مست رنګین شیرین جهان دلیونی دے
ورته خاندی ډک د مینے لیونے

## توبه

په نیټی د خیال اوچت شوم له جهانه
نو د عقل فانوس لاس کښے مے روښانه

له ورځو چه شوم تیر فانوس مے پرېښو
په تیاره هم مے بیلے لاره تر نیم آسمانه

د فلک شهزادګی ناستے وو باغچه کښے
ما له نے راکړیل فانوس ښکلے روښانه

د سپوږمۍ په رڼا ټولم مخمور عاشق شوم
خو تیاره راغلے شو پټ مثال د زمانه

چه دستور د زمانه هم اوچت شوم
ما کړه قدر په دے شغاله له خیال ایمانه

مادرے په رڼا خپل غلیظ خان ولید
په ژړا م سر کړه پورته له ګریوانه

---

(۵) زم : زه هم .

# سیل

ما لیدلي د فرنګ ښکلي جېزونه (۱) — چه د الانده تر غوږ نږنګ وم سینه نه

ما لیدلي محلونه د لنډن — جینکۍ مستې ازادې ګل بدن

ما لیدلي د اټلي ښیسته ښارونه — سرې انګورې سرې شرابې او سرې ګلونه

ما لیدلي د پیرس ښاپیرۍ ښکلې — په کردار ګفتار خوږې لکه بلبلې

ما لیدلي امریکه کښې دې ښارونه — چه ورځ ګوته نه رسي مکانونه

ما لیدلي تاج محل غوټۍ د ګلو — د دهلي ښکلي ښارونه د مغولو

خو چه وینم زه خپل د ختو کوړه — رانه هیر شي محلونه ښیسته نور

دا نړۍ تنګې کوڅې زما د کلي — ورته څه دي د دنیا ښار ښه ښکلي

چه خړ مخي ورور پښتون سینې لمدې شي — د ښه هیر به قول ښایست د ښجر و بر شي

خدایه شکر چه پیدا دې له د قام کړم — د پښتون د نر وجود دې یو اندام کړم

څه به کړم زه د لندن لوې محلونه — د پیرس جونې ښیسته ړومي ګلونه

په والله چه له جنته به شم ستون
که کنګل یکښې وانوړم د پښتون



---

(۱) جهازونه.

# ګلے

ته چه بنګلے بے بهائے! زما دین زما دنیا
ګلے! ته ګل لالائے زما ستورے د سبا
ګلے! ګل د ګر ګلزار ستا د مخه پرے بهار
که چینه ده که ابشار ستا خبره ستا خندا
شو حیران بخپل کردار چه ستا بت ئے کړ تیار
هغه لوے پروردګار ستا په سترګو شو شیدا
ته ئے جوړه کړے حسینه ګل بدنه ګل رنګینه
بیائے کړه ستا په جبینه
د سپوږمۍ سپینه رڼا

# بهانه

چه ئے عمر په صحراوی له خزانه کیده نه که
دومره وسومه غوټه چه اوس مے هو سینه نه که
تا وے ماله دالئ راکړه ما غریب ته! څه وینے
څونګ ازغی مے دی ټول کړی په د لاسے ستا په څڼکه
زما ورځے شکوے په چینی ګل لاله تر زړه غوړن نه شو
په ما ئے دام میرزه شو بیاله خوا ده نه کیده که

زه به څه ستا ما! وکړم په څه ستا سترګې رڼې کړم

زه ولاړ کچکول په لاس کښې پکښې بوسے زړسے او به که

چه ځواني نے ورژیبیږي او د ننه ! غوټئ شي مراوے

د تاتار کوه قاف حورے بخوا خته کړ او خوږ کښه که

لیونی ورو ورو ورکیږي خان پښپلو ګوتو وژنی

ستا فراق عشق نے بهانه کړم او هر څه کا او س هر څه که

## پلوشه

| | |
|---|---|
| چه ځواني ورځه وزیران | وے به زیږے لوئی لوئی بچان (۱) |
| قدرت لوبے دا د خدای شان | چه نیم لغړ دی او نیم کنجیان |

## غرور

| | |
|---|---|
| که زه بلبل نه یم نه دی څوک ؟ | چه زه ونه شم څه دی څوک ؟ |
| که هر ګل باغچه کښې خاندي | په دې ویران پراته دي څوک ؟ |
| دا چه تے لوګی ته ژاړے | په دی اور وراته دي څوک ؟ |
| هم ګورے عشق هم ګورے ویره ونه | د بونیر داخره دي څوک ؟ |
| غني او هر څه ګوري لوبے | خو خبر ترے نه دي څوک |

(۱) لنډی بریت .

# پلوشه

ووتو نه راغله پیسه سر پښتو ایمان خرڅیږي
پخوا به جونې خرڅیدلې اوس ځوانان خرڅیږي
ژړا به نه کړم چه غنم جوار ارزان خرڅیږي
پروسکال کورې خرڅیدې سږ بیوپاریان خرڅیږي

# آ د خاورو کله

په تکلیف کښې دي دوه ست ټکره آواز
دې لټولو خوږ لمدا رو ښکلې ساز
سوې زړه مې یو ځل اوه آسمان تو کړه
فرښتو ترینه چل نه ده کړې د پرواز
بې پروا زما له عشقه په خندا ځې
آ د خاورو کله ته به څه کړې ناز

# ګړې وړې

چه بې ننګه شي پښتون په سر نې دا ننګه
تښتېدله د سخاتي ملا د بانګه
چه په طمع د دنیا کوي وعظونه
خدای دې وچه کړي د دې خبیث غړانګه
په والله که وصال یو ړي دې پرېږدي
که وېرېږي په دېبېن د پېښور پرانګه
کله کله د غني هم قصه اوره
دا هم ده ورور د دلونې ونې ښانګه

# پلوشه

د جهان خبرې کوره | بیل به نکړې سپین له توره
اې غني! کیله ترې مه کړه | شو به نه د دنیا شبکوره

# لوبه

دلرې لرې خلک راغلل تمام | دیدن له ستا دلرې لرې
زما یا دیږي ستا وږې وږې خبرې | دلبرې دلرې لرې
***
خوله دې مسکۍ سترګې غمازې | په لچک لچک په هوا ځې
باغ کښې بلبلې سترګې نې وازې | ستا د دیدن شولې موتازې (*)
خدا یږ وکه حورې ستا د نوک وي برابرې
جانان دلبرې دلرې لرې

زما په خوا کښې هم غمرې کړې | چه د نه تبسم هم نعرې کړې
کله خندا کله سپیرې کړې | زما ځوان زړه درې درې کړې
فرښتې ماتې د شیطان ګوړې وزرې
ارمان دلبرې دلرې لرې

کله دې هو! کله دې نا وي | کله دې نن کله سبا وي
په ټوله سرې سترګې زما وي | موسکۍ رنګینې شونډې ستا دي
کله سور ګل شې کله شې داور غمرې
جانان دلبرې دلرې لرې

(*) موتازې : محتاجې

# ګله وړے

د سپینسو تار کښے لعلونه زه پیمه — په پښتو کښے کړم خبرے عجیبه

د آسمان سیل کړم په ماتو وزرونو — بے جانانه یووزرے عجیبه

تل ملال م په زړګي کښے جانان ناست وي — خوشحال زنده له مانه لرے عجیبه

چه م یو تکے ترے لرے کړ حیران شوم — خزے (۱) خرے شوے برابرے عجیبه

نه خوشحال د ناز ورځے نه د نیاز — د غني حتیے دلبرے عجیبه

لیونی د ختولو تو په ډیرۍ کښے

اکثر توے کړے ملغلرے عجیبه

# پلوشے

جومات ته لاړ په میخانه کوړه — په زیان کښے سودے د شان جانانه کوړه

نیته ده لنا؟ او کاروانه ډیر دی — پوره م بے نکوړے خان له بانه کوړم

# انصاف

تورے زلفے ئے خورے شوے ولے په غونډلو — عبادت م هو لا هغو شو جومات او خاے م بلوده (۲)

د تقسیم په لوټونو ئے خوږه کوړه هغه لوے ویشونکي — مالے عشق د شلور، اکو بالړه بنایست د سلو

---

(۱) ښخے. (۲) بل ځو.

# په کار دی

لوئې د زړه کې لري چه اسرې لوئې لري      چه څوک ماتیان ساتي دروازې لوئې لري
مه شاړه مه ژاړه دا به هم تېر شي      هر څوک که مل شو کوي کوټې به سړې لري

# زور

خدای چه پیدا کړو د خان نه زور      کړل ئې ترې لاندې خیزونه نور
سړی ئې اوچت کړو ترنیم آسمانه      بادشاه د هر څه وُ بے سړی زور

الله مو که شو حسن پیدا شو
طاقت په څکه پرېوت نسکور

# بادشاه خان ته خط

زما گریوان شلېدلے      ستا شنه قبا مزه کا
زما ډک جام د مېو      او ستا همسا مزه کا
چه شپه خلاصیږي تورې      دنیا وېښه وي نوره
ستا په همو کښې کوره      خندا زما مزه کا
په منګلے خپت د سحر      لړے د ملګه بهر
د سوزي لوی ځیګر      ورو ورو ژړا مزه کا

چه وږروان شي نسیم — ته په سجده په تعظیم
ستا بندګي او تسلیم — مستي زما مزه کا
ته د سبا په ټمه — زه د دنیا بې غمه
سترګې مې سرې پر نمه
لیونتوب دا مزه کا

## نیمې مې سترګې حیرانه وازې

په ډک جهان کښې ګرځمه یوازې — نیمې مې سترګې حیرانه وازې
چه ورځ شي خلاصه ما بنا کړې راشي — تورې د غم ماله ماتم جامې راشي
دا لړ ګستوري سپوږمۍ بې مهره — او ره که د تش ژوند تمامي راشي
کله به بس شي دا راتلل یوازې
نیمې مې سترګې حیرانې وازې

ماوې سپوږمۍ ته د نور میرمنې ؛ — دیار لیدلې دې تا، سترګې خوب ځنې
موسکۍ شوه پټه شوه په وریځو — هیڅ حال ونه وې د ځلیدنې
او زه پرېښودم غمګین یوازې
نیمې مې سترګې حیرانې وازې

ماوې لاله ته د حسن لورې ! — شونډې لیدلې دي تا، م د دلبرې
شرمنده سرې ورو ورو کړ منښکته — ماته یې ونه کړې د یار خبرې

اوه زه نے پرېښودم غمګين يواځې

نيمې مړې سترګې حيرانې وازې

بوراې ولید دغمه توره ډېرپرېشانه ډېر کړو کوړ

ماوتې ديار زلفې دتې تاليدلي څه لتهوې روره ادالود په لوړ

ليونې لا پاواوزه نے پرېښودمه يواځې

نيمې مړې سترګې حيرانه وازې

لړې مې واوريا دمجنون شور لړې مې وليد فرهاد نسکور

دشيرين آه راوړ نسيم غيږ کښې دليلى روح سوې دغم په اور

پوه شوم روان شوم يوا ځې

نيمې مړې سترګې حيرانې وازې

## دفقير انوغزل

وروره ! دى داجهان يو مکان دفنا

ورته مکړه ژړا ورته مکړه ژړا

ما بنام خاورې شې کل چه سحر شي پيدا

ورته مکړه ژړا ورته مکړه ژړا

داچه لا نا بې دپښودې داخاورې ته کورې

وې دچاشونډې سرې اودچاسترګې تورې

دا ایرے معشوقے وې چه تلے په خندا

ورته مکره ژړا ورته مکره ژړا

دا مستي یو ساعت دا پستي یو کړئ

دا سور شال دا امیر د فقیر دا شړئ

دي داواره خیالي بے بنیاده دوکا (۱)

ورته مکره ژړا ورته مکره ژړا

مرد ژړه کړي صلحه چه دنیاده فاني

د پرون ښار یو کینې نن ده ویراني

دے یو خوب دا ژوندون دا ځواني یو نشا (۲)

وے ځے په ژړا وے ځے په ژړا

## خوشحال خان خټک ته

د ختکو لویه خانه (۳)! د همه پښتون سرداره

اې ټنګیره د غمجنو د پریوتو مددګاره!

آجبا چه ته ئې خان وې، آ کاروان چه ته ئې امیر وې

آجبه په ورانیدو ده، آ کاروان دے بے مهاره

(۱) خدعه، فریب. (۲) نشه. (۳) خوشحال خان خټک (۱۰۲۲ - ۱۱۰۰ هـ ق): - قهرمان، مبارز، شاعر او لیکوال د ډیرو مؤلفاتو څښتن.

ستا په اننګو زرغون شوے ستا په وینو پانیاے

صفه باغ او غړی پرورت دے بے بلبله بے بهاره

بیا د ننګ تورې تیره کړه بیا ننګیا له داد یو کړه

شه ځما مړوره خانه شه خوږ لا د لګیږ سالاره

## پاؤشه

لکه مور چه په پړي انغښے خوږے کا
دا پرورت دے په غیږ کښے کل جهان

د غنچه سینه نا که د مور ستر که
که سپوږمۍ د داولاړه په آسمان

## لر شو خمار پیدا

داسه شراب داسه ګلاب د ختے شباب
ساز د رباب ما سره دلبر ایم بے حجاب

لر شو خمار پیدا په ځ دیار پیدا

دا ښکلے خط دا نبیسته خال کچه جمال
لکه هلال جانانه ګړم دے د حلال حلال

چه شو خمار پیدا ستا په خیال پیدا

وخت دے ملنګ د ګل وجود، ما تمام او دی زمو دے
ماته نه زیان هم کړو لکه سود

چه شو خمار پیدا په ځ دیار پیدا

د ژوند کاروان ورې جانان
دغه م دے دغه ارمان

چه شو خمار پیدا ستا په خیال پیدا

# پلوشه

دومره ښکلي دي زما جانان ښيسته | چه دي ټن لوني بايان ښيسته

نوريار م تش په تن بانان ښيسته و | د ده حسن که همه جهان ښيسته

د جاروړ دوه ستر کو مينه ناکو | ليوني ته هم ښکاره شو ځان ښيسته

# ميا جعفر شاه ته خط

بيا را ياد شوي د ملک خوږ خبري | په پنجره کښي که م فرياد لکه تنځري

چرته نوم د ښتين تا چرته ميزري | چرته ته ا چته کوله[1] ، چرته شکري

چي ځوک ماته نن دي زمانه لري | ځکه ماته په يو کوم د خيال وزري

د کوه سادهه خراب د چنو دال کري

په پوا او پسي ستر شوي چغري

# کله مې وړې

زړه م پسي و چاود خو شنام نکړا ئ نه | هغه په موټر کا کښي ې په ستر پتو بانده

کوږ نر اچا ره په ايشو لو تر سکو نيزي | ښخه مر به ته چته ا و وي مزه ا کانده

مالي د وصال په مسبار کو تا نب که ېږ بل | دوره مهذب او ښايسته زما جانان دي

---

(۱) ولئ: کوکرنا تعيه دهندوان په (يو. پي) ولايت کي يو ... نجي ... د ... افغان ...

(٥) ميا جعفر شاه (زوکړه / ۱۹۰۲ ع) د زيارت کاکا صاحب ... سياسي ... [illegible]

صاحب ... دی د سياسي سيرت ... ادبي سيرت هم لري.

نن چه د مسکو ته (۱) د بابا په کور داخل شوم
لستوڼي تا يخ وکړه، ور دار د غني خان دی

## پلوشه

پیالے د جانان سکر دنیا ښیو او ښکوه کے
د ښنګ نے ګلابی شو په وږمه د لو کے
نادانے شیخه! وګه شه شراب دی شراب نه
دا دنیا ښیئے او ښکے چه کړی نوم سینے

## پلوشه

کفتار د لیونو کښے وے کلونه هم ماران
قطار د لیونو کښے دیروال پیغمبران
پروانے غنی نکړے کښے سپک تلی که د ږنی
تف! څه به د لجهان وی څه بود د جهان

## پلوشه

حسن په بازار کښے موتا یو دنج روان و
پوشاک نے مقدس ما نجستر (۲) د مل سپین ساو
ناګاه نے پرے آواز یو د قبلے د ده سو شو
څه سبحان الله ملا. داد کوڅه د لیونانو

## پلوشه

بیګام خوب کښے خان بو جنت کښے ولیدو
پلاس کښے ورونیو دیر پلو ونه د ږوپو
د باران چه لته وکړه د دوزخ تاترین ګوړته
خان خپله کته او ښنه نه خه خبری په پردو

## پلوشه

چاته نے بنایست ورکړو غمګین
چاته نے غم ورکړو بنایسته
زه نے هم مست او هم هوښیار کړم
هم نے په تخت کړم هم په تخته

---

(۱) پیغلو کے (۲) دا نظم د وزن د مراعت نه آزاد دی.

# کارغه او بلبل (۱)

دخزان دوران ؤ نوے — وو یو دوه ګلونه سوے

یو بلبل په مړاوے څانګه — نغمے کړے سوے سوے

خدایه! شوکور د غم ړوکی زړګے زما — شوے شمکورے په غم سترګے خوږے زما

تازه عشق نوے دلبر نوے شباب — د لاله پیاله کښے سره ګلرنګ شراب

د دنیا د وجود سترګو نه په ډډه — یو با غنچه کښے پټ په غاړه د رباب

د نبیسته ستورو په باغ کښے مېوږې مې سینه — کله خاندے کله پټه په نقاب

زه ملشوم وکړه شوی یا رپسے ژړیږم — په جنت کښے د دوزخ خغم عذاب

های شوکور د غم ړوکی زړګے زما

شوے شمکورے په غم سترګے خوږے زما

یو کارغه چرته راوتی ؤ له کوره — په خزلو کښے ګنډه منبوکه توره

د بلبل ژړا نے تیره شوه تر غوږو — وروران شوے وے کم عقله وړوکې

وے صنم صنم وے نعرے د غم

مکره کیله دستم له روزی د ک دی عالم

کوره خیته چه دی وږے نو صنم مړه نه کا — خوږے سترګے به دیار دچرمانډه نه کا

ما به هم داستا په شان په خدائی نهایت شیل دم — زه خو د یو الله کرم خوګم سره نه کا

---

(۱) دا نظم د وزن د مراعت نه آزاد دی.

خوږ د توتان خاندی بلبله دا دنیا د و نشته ملیه    نن نصیب دی کوی غوږ شیله (۱) سبا خوږ نه کا

پر یږده داغم کړینی لکه ما شوم نادان

نه د آسمان دغمه پیغلګه ښځې (۲) توتان

## پلوشه

یاری ممنه مزه کا    چه د داړو سیال وی

ډیرې غم دومره وی    چه خوږ نه خیال وی

ښپه به جنت خدایا    چه دواړه ال وی

خوږ چه زړه و دوه منګلے    دومره جمال وی

دقام به مینه مسته    کوغځ سکه لال وی

دالیو سے به هسله    خدایه خوشحال وی

چه لاس اوږد وی دده

تا روڼ مال وی

## پلوشه

شین زړی شه مدام خوږ د هوسو غوښے    کته بازښه همیش خوږ دسیسو غوښے

یاکوه تن اسانی دغنی بازښه    خوږ هکله بازاری دپیسو غوښے

## پلوشه

لګه بت بینا نبکا پېږه، په وینه شمکوه یم    عشق دا زلبه کا وکړے په ما بانده

(۱) شایاب . (۲) نه دېيے .

غني جام د جلالي مخمور پاکل کړے — که اې پوهیږې د عشق په سر دا ژندے

پاګون شم

د عاشق مخمورے سترګے — که د یار هشکارے نمونه ے

که غوټۍ دی د نرګس — په سرو ګوتو کښے راغونډه ے

# رشته

یا بے جرړو ونه زه وے — او یا بے پرو مارغه وے

یا د نیم آسمان وے ستورے — یا د سیند د مېنځ اوبه وے

یا تنها وے د شبنم زه — نه مې پلار نه مې نیکه وے

نه مې دوست نه مې دښمن وے — نه مې بد وے نه مې ښه وے

دا جهان به لوټ جنت و — که رشته نه وے سرغه وے

خدایه زه به ستا عاشق وم — که ته وے ستا تبه نه وے

عاشقي به بزرګي وه — که عشق وے معشوقه نه وے

زه بښتیا زه وو که خپل مالک وم — یا به زه وم یا به ته وے

مې د غږ د سردا واورېده

که غني وے څه به ښه وے



## پلوشه

ستا فراق به ما قيامت کړ — ياره څه به وي قيامت اوس

ستا په عشق کښې رسوا خو نه يم — ياره څه به وي عزت اوس

د همه جهان بلبلې — ستا يو خال نه دې ستايلې

خو د ګل صفت پوره کړي — د ګل څه به وي صفت اوس

ستا يو خوږ نظر دلبرې — ستا يو دوه پستې خبرې

ماته ملک جنت جنت کړ — ګوره څه به وي جنت اوس

بار (۱) درون جلبل صنمې — ستا د دوو سترګو په غمې

خوار غني لوغړن پروت دے

ستا به څوک کوي صفت اوس

## پلوشه

يو ارمان مې په زړه راشي کله کله — شپې لنبې دا زړه مې خيژي له ګوګله

ناګهان مې د مستۍ چپې لامو کړي — ناګهانه مې سر عقل شي بې کله (۲)

زړه مې ونيسي يو پنجه د فراقا دو — کړي يې ټوټې ريزې د خودۍ عرق يو ځله

زه بې خوده ليونی زړه مې آموشي

نه پوهيږي که نه پوه کړې هزار ځله

---

(۱) بهر، يعنی دننه بيرون.

(۲) کل هندي کلمه ده، يعنی عقل مې بې انتظامه او بې اداره شي.

## پلوشه

مراوے ستڑے کړه راپورته ستړکو ته زما دلبرے

خانۀ و خانده مسکئ شه په ربنستیا زما دلبرے

راشه خوا کښے زما کښینه سر زما په سینه کیږده

د مستئ په خوب ویده شه پریږده دا دنیا دلبرے

داغمونه نه خلاصیږی چه خوږ وند نه وی خلاص شوے

څه چه پټ ترے یو ساعت شو دیو بل په خوا دلبرے

## زه

نه زه فلسفی یم خلکه نه زه لیونے یم

یو غریب چه ځی زه د پښتون د پلار ګنے یم

وار وم یاران دی یو دښمن می چه نښته دے

زه د خان دښمن یم پچل خان دیر ترنے یم

بعضے خائے کښے ترینه بعضے کښے دیر یم خلک لوے کړے

خیال می د سبا دے پیل شوے پرونے یم

خوښ می دی کاو نه هم منکار رونه هم اسونه

خوښ می نو پښتون دی زه را وړی پښتنے یم

نیت می دے طواف ته د وطن د تورو ختو

ستړے د طواف نه د مکے د مدینے یم

زه وم په وطن مین خو تن جلا وطن کړم

زه د سره ګل نه شوم هسې زه تورې سپېلنی یم

زه هسې بېنمه او ایمان په تېپر نه خرڅوم

خکه لیونی یم خلکه خکه لیونی یم

## پلوشه

پهٔ تورو شپه دغم کښې یو څرکې د رڼا — زړغون په ډیوا کښې نه بیسته بود لالا

د وېرې تورو ځنګل کښې یوه زرګه په خندا — یو څاڅکی د امید د ناامید په دنیا

رنګین دبو دی تال د تورو شګو په صحرا

مستی د که خوانی د که دلبری د که الله

## معمیٰ

هم زما خوراک دے هم خوړے بناپیر دے — هم د زړه هم د مینې هم د منزل دے

اوسی په خرمنه کښې راخی په تکلیف — خو بنې د پلنه تاو د ملاحب پرورې دے

## پلوشه

ته زما د مات زړګی دارو د غم تعویذ نے — ستا په مینه مستې سره خوږه دی عزیزه

ستا بنګلو پا بولاے زما د کلا لېښتې ! — پېښې به د خوږ د جنت نه که هم نکریزې

ستا د انځور به د نرګس غوټه ایرے کړم

ښکلی شهزادګۍ به واړه کړمه ستا کنیزې

# لنډۍ چرګ

نن چرګه د انقلاب دهي نعرے - قوقو ؏ جوړه خت شو د سبا

خونه ځي د جومات نه انګازے د الله هو ؏ ویده پروت دی ملا

بېګا د جمعې شپه وه ډېر تالی راغلی وو ؏ خوړه یې پکښې حلوا

خوشحاله شول طالبان چې ما پرون لیدلی وو ؏ که ویښ نه دے ملا

پرون ئے طالبانو ډېر باد رنګ خوړلی وو ؏ توانا ست دی په بېدیا

ور وړکے چینې ځه شو چې هم به کړی داړه ؏ را وینس به کړی ملا

هغه بېګا تیاره کښې ډېر تیپر خوړلی وو ؏ د موکه کښې د حلوا

الله په نس ئے د زړه دوتول پښتیه لګې کړل ۔ او بلو ؏ وه پروت به مصلا

اوس څوک وکړي جومات کښې انګازې د الله هو ؏ جهان کښې شو رنا

لنډ یه چرګه زندو کړه وا نعرے (*) د قو قو ؏ را ویښ به شي ملا

# د مال وزیر ته خط

لویه او بنده ؤ بزیره ورورہ ! او بزه د آمدن لری

صیب ولګاوه د مهو کیل په خوله میتر

دا م یو مشین دے تیز رفتار لکه موټر

---

(*) ها ؛ وهه .

صیب تېکس (۱) به اخلي د بګواښ (*) او د ته تر — زیات به یې غوښي چه د ګړي (+) غوښک دلندان لري

لویه اوږده ږیره ورووه: او ږده آمدن لري

صیبه: مالیه کېږده دچاپو به چاپېنک — لوی به آمدن وي د تېکس نه دبنانک

داتپوس دې نه وي چه خانصیب دې د ملک — اخله تر تېنه تېکسي آزاد لوک د صیب (۲) ددیدن لري

لویه اوږدې ږیره ورووه: او ږدې آمدن لري

کېږدې ډېر تېکس صیبه: په لویو لویو ږیرو — ورنه کړې معافي کلک څوک د سوات آزیا د دیرو

تول عالم به وائي برو ډېر هوښیار وزیر و — خیال دې خپل ډېر دی دغریب ولمن لري

لویه اوږدې ږیره ورووه: او ږده آمدن لري

مانې تحصیلدار کړه صیبه وادره سفارش — ستا به ډېر ټول کېږي زما به لږ دړنش

دک بله رو بو کرم دسرکار خزانه تش — صیبه: تحصیلدار هر چا پولا پالنګ بر ستن لري

لویه اوږدې ږیره ورووه: او ږده آمدن لري

## خرو

یوم خان لالا دې چه دې نږ په سر خپو شانو

یونه ملغرو دې چه تاکو دې دچور یانو

یو معتبر خان دجرګې تاروباسی کور

ده نه خنار ده د ده د بچو مور

---

(۱) مالیه ـ محصول ـ (۲) خلک ـ (*) بګواښ: چیچرے ـ فنډے حیرے ـ

(+) ګړی: شهادتنامه ـ دتحصیل سند

لاس نے ربہ: مات کړے چېرې د پښتون خور

کاشکی دده پوښ کښے دده د خور پېزوان وُ

منبه زما خروے د چه تا کوے د چوړیانو

یو مستانه خان دے تېز رودی کښے لته خیرات کښے

رسی بزیام (۱) ته کړوی دیره کښے کړدی سوات کښے

ماړه او پښکال د مالینے په حوالات کښے

یله د متیز کو مدد کارد بد ماشانو (۲)

منبه زما خروے د چه تا کوے د چوړیانو

پو پیسه تک خان دے خبر له چنګ رباب

مړ نو کړ به قبض کړی د ودیُ و رکمینُی (۳) خرابه

نه څه دی خور ے شی نه ویستے شی بے جولابه

ورو وربه زمانه شی دا وروړګی د ماړ اریانو (۴)

منبه زما خروے چه تا کوے د چوړیانو

یو زوړ پښتون خان دے خوښوی نیزه بازی

خوښی دی ښکاروښه د لغر او د تازی

---

(۱) بزیام پاکستان کښے یو زیارت دی چه کالنی ګرمه په کښے لګی.

(۲) بدمعاشانو. (۳) ورکوی.

(۴) مارواړه د هندوستان د سوراشتر په صوبه کښے دیوغای نوم دی چه خلګ په کړو رپتیانو مشهور دی.

نو زړور ټپي د يوسفزي د محمدزي

هم په قام مين دي هم مين دي پخپلوانو

خوبنې ډېر خوږ دي چه تاكوي د چوړيانو

يرليوني خان دے نه په خان دے نه په بل

نه د ورځې بونه پرے ورله نه د شپې داچل

نر خلمي ته نروانى او غل ته وائى غل

خداى بے پروا جوړ كړ پروا نه كړي د خانانو

خوبنې ډېر خوږ دي چه تاكوي د چوړيانو

## دړے ژوړے

| | |
|---|---|
| سوال: څوک نے ته جناب ! | خان نے كه نواب ! |
| بنګالے د جوسه ده بريتو كښے د وضعدار دے | دا مزے د ننبار دے |
| (۱) بنه انګريزي بوټ | بنګالے نوے سوټ |
| هيبت (۲) دے د قره ناك خو جرابه كښے دے سورے وينم | څټ دے لږ نرے وينم |
| ځواب: چوپ شه بے وقوفه ! | زه يمه مصروفه |
| زه ټيكه كوم او زده بخښونه د چل ول | فيس را اوړه اول |
| مشكر د توپك | تل م جيب وي ډك |

(۱) وكيل دعوا . ډاكټر . بقيا (۲) انګريزي خولۍ.

| | |
|---|---|
| ښه مې دلال هسې د خبرې چنچنک | شکر د توپک |
| سوال: ته څوک یې حضور؟ | سوری لکه ټمور |
| لاس کښې دې انبوه د صیبه ته یې جوړ لوهار؟ | دا مزې د ښار |
| رنګ دې مرخن | غوپ دې بدن |
| پاد سې چشمې د بې خوتوپي کښې دې داغونه دي | زیرې شان د غابونه دي |
| خواب: زه ګوم انګلشن | تشخیص او اپریشن |
| لاس کښې مې شفا ده په تندې کښې مې اجل | فیس را اوره اول |
| پاس که د لندن وي | یا د امریکن وي |
| وارو ما پروکړی زه ډاکټر پیدا شی یمه | شی پوروس دیشي (۱) یمه |
| سوال: ته څوک یې چاتا ! ؟ | دلته که کوا تا ! |
| چڅې د پاپې دي نوره ازګین یې بې مقدار | دا مزې د ښار |
| خوږ مې مهین کلام | غور دې هر مقام |
| (خو:) سترګې د مار دي په لنه خیږې دلسرم | شان شوکت دې کم |
| خواب: ډیر کوی دی د خان | ګوره کښې تاوان |
| لسو بانډې واخیسته او خرڅ یې کړم په شل | خپل ګوره ولو تل |
| دلته چه بیوپار و | یار زمونږ ستا پلار و |
| مونږ بیو دوه کالي هم مغې نه واخیستل | خپل ګوره ولو تل |

---

(۱) وطني.

# پلوشه

دلبر دوارو دلبرانو دے دلدار زما

سردار دوارو سردارانو دے سردار زما

زما پټ کله شغله کښې د سپوږمۍ شي جانان

کله لاله شي کله یا ښایسته لولۍ شي جانان

کله اهیل کله د سور ګلاب غوټۍ شي جانان

ورته به وایم چې بیا ما سره یوځای شي جانان

دلبر دوارو دلبرانو دے دلدار زما

یا لمر خاته کښې ځما هستي را پورته کړي

سپینه سپوږمۍ شي موسکۍ خوله د جانان لوته کړي

ما په خندا خندا د غم له کنده پورته کړي

دلبر دوارو دلبرانو دے دلدار زما

سردار دوارو سردارانو دې سردار زما



## پلوشه

لاړه که ځوانی شی ده ځوانی جانه د تللو شی
لاړ که ښکلی رنګ شی ښکلی رنګ دې د بایللو شی
خکه ژوندون د خلاص شی دی ژوندون د خلاصیدو شی
واره دا فانی دي فنا د عشق سازونه دي
عشق به تل ژوندي وي څو چې څکه آسمانونه دي

## دلربا

نه مې پلار رشته نه مې مور
نه زما په غم څوک پوه شو
دا چې ما ده کومه کړې
دا ګناه ده د فطرت
څو یو کس هم دنیا کښې
تل زما د غمه ژاړي
نصیحت به پسته ژبه
وار خطا لکه د موړ شي

وار ده خونه مې تالا
نه زما په واویلا
څوک دي بیچ له دې ګناه!
دا ګناه نه ده زما
دي هم پلار هم مور زما
سودائې مې ده سودا
شکایت هم په خندا
په پوهې سختۍ زما

پاکیزه لکه سپوږمۍ ده   دغه خوږه و خوږا (۱)

په مناېست دجنت حوره   په خوبونو فرښتا (۲)

ما څخه په مینه پټ کړي   له غمونو د دنیا

دجنت د رنگه زیات   دي رنگین دلبر زما

که دنیا کښې وحدت نه وي   ما لیدلی ده چینا (۳)

دالله د نقش کمال دی

مخ زما د دلربا

# هې هې زما لیلی

ما وې زما لیلی به مېنه کې مسته مسته گرځي   یو باغ کښې په څنډا

ما وې زما لیلی به لکه گل ترو تازا (۴)   د گلونه ښیستا

ما وې لیلی شونډانې به غوټۍ وي د گلاب

ښیسته به پرې سازونه ټنگوي لکه رباب

په سور اور د مستۍ به ئې تنکی وي سره کباب

بې تاجه ملکه به وي د حسن د دنیا

د گلونه ښیستا (۵) هې هې زما لیلی

ما وې د لیلی سترگې به سرې مستې په خمار وي

---

(۱-۲-۳-) د ضرورت شعري له کبله ه په الف لیکلشوا.
(۱) خوږه (۲) فرښته (۳) چینه. (۴) تازه. (۵) ښایسته

ما وے په سپینه غاړه بے (۱) د سرو کلو نو هار وی

په لاس به ئے کوتے تخته چه به د نرګس بمبل قطار وی

ورېښمینه د وپټه کښے ښیست پټ او ښه ښکاره

د ګلونه ښیستا　　مئی مئی زما لیلیٰ

ما ئے زما لیلیٰ ده د لا لا د سترګو تور

بابا ته دیره شکرانه ده نیا ته ښیره ده مور

زما د زړه بی بی لیلیٰ بی بی ده د خپل کور

موسکئ ما ښام ویده شی سحر پاڅی په خندا

د ګلونه ښیستا　　مئی مئی زما لیلیٰ

نشه به د خیالاتو خوبونه په جهان کښے

محل ته د لیلیٰ مجنون روان شو بیابان کښے

نه باغ و نه بنګله وه لیلیٰ ناسته وه دالان کښے

ښیسته سرے تورے وه غوجل کښے لوپټا

مئی مئی زما لیلیٰ　　د ګلونه ښیستا

بمبل د نرګس کوتے د ښپیاسکے نه چاپیره

په صفا، ریمن (۲) کمیس ئے وه هم کیاڼه بارهٔ تیره

لیلیٰ مینځ کښے لوغیږی شین لوګے تر ینه چاپیره

---

(۱) به ئے . (۲) خیرن غوندې.

خلوینبت خوارہ دوستان نےؤ راغلی دلالا

مئی مئی زما الیلیٰ دکلونہ بنیستا

لبنستی نے دخلو دملا پہ تیر بنکتہ روان

پہ زلفو کنبے خو قسمہ غونے وے د دیران

سرے شونڈے سپیرؤ چپے دخندلو پہ ارمان (*)

مئی مئی زما الیلیٰ دکلونہ بنیستا

## پلوشہ

داد وینم دلربا! پہ مخ کنبے ستر کے کہ دحسن ممند کنبے د نور کر کے

داد وینم دلربا! پہ خولہ کنبے شونڈے کہ دؤ حورے د جنت باغ کنبے بر بنڈے

داد وینم دلربا! ستر کو کنبے نم

پہ ننکو کہ د نرکسو دے شبنم

## بہار

بلبل گلزار تہ نن پہ دیر سینکار راغے پہ خمار و ستر کو کنبے نوے خمار راغے

جورے بہار راغے جورے بہار راغے غوتئی شوے پیغلے وخت دبہار راغے

بلبل راپریزی نن نے دلدار راغے خو نے خبر راغاو نہ مِ یار راغے

غوتئی شوے پیغلے وخت دبہار راغے

---

(*) نامکمل.

سپوږمۍ شراب لوني د نبيت په جام ياره — ورته مړې مړې کړه پوره ته ستړيا د ام ياره
چه د ته روانۍ بيا زما سلفام ياره — سپوږمۍ م ونه ليده د ستا په بام ياره
دا خوږ شراب لوني د نبيت په جام ياره

کله د شراب ګښے کړه سپوږمۍ سوران زما — ورو په ښو ولمنه دا د جانان زما
وايه چه ښکته شي اوس دا د آسمان زما — چه خوب کښے ووينې تول رنګين جهان زما
کله دي په شراب ګښے سپوږمۍ سوران زما

خواني له مانه واخله مستي له مانه واخله — دا دوه ګلونه سپوږمۍ له يابانه واخله
په ښو ولونوه وايه جانانه واخله — صدقه د سترګو شونډو د خپل اشنا واخله
خواني له مانه واخله مستي له مانه واخله — بلبل ګلزار ته نن په ډير سينګار راغے
جوړ بهار راغے جوړ بهار راغے — چاته سلام راغے چاته د الله راغے
خونه خبر راغے او نه م يار راغے
په خمار سترګو کښے نوي خمار راغے

## ولے (۱)

خوږ دے ماته روانۍ — خو رنګے شيدا شي خوږ ؟
خوږ چه چاته وخاندي — ولے په خندا شي خوږ ؟
ستورے د غره خوږ کے ته — غلے شان بيکار وے

(۱) دا شعر غني د خپل وادۀ په شپه ليکلے دے.

مینے پہ ژړا وو ے حسن پہ خندا وو ے
مانہ موسکو ستر گو کنے ښکلی دلربا وو ے
ولے خوک زړہ وبایلے ؟ خو رنگے شیدا شی خوک ؟

خوک چہ چاتہ وخاندی
ولے پہ خندا شی خوک ؟

سترگو د مجنون وو ے او ښکو د لیلیٰ وو ے
وو ے پہ نشہ خوائی غم ورو پہ سودا وو ے
مانہ موسکو سترگو کنے ښکلے دلربا وو ے
ولے خوک زړہ وبایلی ؟ خو رنگے شیدا شی خوک ؟

خوک چہ چاتہ وخاندی
ولے پہ خندا شی خوک ؟

## ورو ورو

ورو رو ظالمہ دا چغے ناوړے
ورو رو پرے پښے بزدہ دانہ دی خاورے
داخو مستیٔ دی داخو خوانیٔ دی
سینے دے کوکے لکہ دواوړے



# وړے ته

سر به محکم بانده کیږده — چه به راز پوه د آسمان شے

ستر که ستورو ته کړه پورته — چه به شان پوه د جهان شے

لږ سر ښکته په ژړا کړه — چه مزه د خندا واخلے

د دنیا نه خان راغونډ کړه — چه مزه د دنیا واخلے

د چیلے په کوتکی کښے — یو پیاله د شراب واخله

خوله دے وچه په زوره کړه — بیا مزه د کباب واخله

لیونی زما په شان شه — چه په راز د خودئ پوے شے (۱)

سر او زړه دے ماشوم کړه — لیونیه چه سړے شے (۲)

# مینه او حسن

ستورے ته آسمان کښے یوه ورځ وے ملال

خدائ آدم له مینه ورکړه مونږ له تش جمال

زه به په خندا ورکړم دا خپل ښیست د کمال

ماله که یو ښاغلے مینه راکړی خدائ په سوال

مینه حقیقت حسن سایه د حقیقت ده — حسن له زوال شته مینه نه لری زوال

---

(۱-۲) چه د پوه (ه) او د سړی (ی) په مجهولے تلفظ شی نو قافیه به درسته شی.

# زما د کلو لښتے

خدایه زه به دم خوشحاله د جانخجر په زړه کښې

ستا وفا لا لوګهان کړم بے وفا به وے لا بنه

موسکئ سوځنے د لښتے د عماد ډېرن بیرون ستی کړے

ستا خندا د ښتې کو زار دے په ژړا به وے لا بنه

تجه ژاړے زما غم کښے بل غم هم په ما انبار کړے

ستا سودا زه سودائی کړم بے سودا به وے لا بنه

خان م هم خاورے ایرے کړ ته م هم په اور دستی کړے

اے زما د کلو لښتے بے زما به وے لا بنه

# ځوانی

دا بسم الله خدایه: دا لیونۍ ده

چه ځوانی نښیست دے او نښیست ځوانی ده

بوډا خوشحال بابا سپین سر کړ پوره

وے خانی توره ده او توره خانی ده

د منان خان همسا د منانی دا ملا

دا هم فانی ده

دا هم فانی ده

مسته رنډی زما      روغه مستی زما

خاندانی ده

خاندانی ده

## پلوشه

د مستے جینۍ نښه ده بنګړی دیر ماتوی

چه لږه نوره مسته شی زړګی دیر ماتوی

## ګډے وډے

شوق کښے د وصال      چه د مس خوا ته ورنږدے شومه

خوله کښے ئے سګرټ وو      زما خوله وسوځیدله

راغے د تهذیب باران      په ملک د خوار پښتون

ګم ئے جومات لاهو شو      ګم کوټه ئے ځمځیدله

نوے زمانه ده      که د ګلو وصل غواړے

اوس په انګریزۍ کښے      واویلا کوه بلبله

ماسره دیوے نه کاوه      پیدا شوه بله

بند د لاسے نګریز شوے      ګړۍ وچلیدله

تلے دے لندن ته مجنون      اوس د رایو زده کی (۱)

او ښه لیلی خرڅه کړه      موټر کښے ګرځیدله

---

(۱) کی، کړی.

خو ناست شاعر په کوټ کښې — هغه شان قصې د کل کوي

شمع سره خاندي — ساقي سره محفل کوي

راشه زما ورور ده — دیار ستر کو ته بیتري وايه

ګل و بلبل پرېږده — الجبرا و جومیتري[1] وايه

وايه ستا وجود دے — د دوایټ د زاوېو په شان

ښکلے د آواز — زما د رېډیو په شان

د[2] سترګو کاربولک — او شونډې د کترین

او ښه رنګین دکریم — ستا ښکلے جبین

هیر دے کړه رحمان[3] سعدي[4] — غزے د بایرن وايه

کیټس او شکسپیر دلته — شیلي او تینی سن وايه

او زه لیونے خدایه! — کله خاندم کله ژاړمه

لا ئې پښتو لا هو شوله

نه په ژړه وېته والاړمه

# پلوشه

په غمونو کښې خندا کړه — په خندا کښې غم هیر نه کړے

او د دیر په سودا کښې — په قیمت د کم هیر نه کړے

د وصال په لمحو کښې — د فراق ستم هیر نه کړے

---

(۱) هندسه. (۲) وايه. (۳) صوفي عبد الرحمن مومند (۱۰۴۲-۱۱۲۸ ه ق) (۴) د پارسي ژبې مشهور شاعر او عالم مشرف الدین مصلح بن عبد الله سعدي شیرازي (۶۰۶-۶۹۱ یا ۶۹۵ ه ق)

دا چه ته نے ستړکو ته خاندے — د دے ستړکو غم میړکړے

د الله الله په شور کښے

چه صنم صنم میړکړے

## پلوشه

نه خوشحاله دے وفا کرم — نه خفه دے کرم ستم

ژوندیو تال دے چه غزیږی — کله زیر او کله بم

دا یو دوه کړی ژوندون دے — په خندا خندا ئے تیر کړه

دا جهان خدائی جنجال دے

کله وران او کله سم

## پلوشه

ژوند او ساز واړه د باد دے — ژوند هغه بویه چه ساز وی

ساز هغه چه سا پکښے وی — سا هغه چه پو نیاز وی

## کړے وړے

خوند ورو ورو جانه ډیر کوی خبرے بنوسئی (۱)

دوی وائی ـ لکه شوی ده ـ مونږ وایو ده هوسئ

نوم ئے په کور کوره دی ـ ببو غیه بی بی ـ ایڅی (۲)

زبه خوږه ګران دے راله ئے وکړاوه تریخی

---

(۱) بنوخئ ـ (۲) ایښی ـ د شعری ضرورت له کبله په د خ لیکل شو ؛

د مینا، سره سره، شمشتی خواره، شکرتاتی۔
تتې سره ئې شوق دی نه ئې لګی بنګړیوالی
وانی۔ ورکیږه۔ کیږدنګیه میدونه بیزه بیزه
سرګښنی لوړ دے د ښخومه په ډے پېزه

## ځار در نشمه

| | |
|---|---|
| اے خدایه! عقل راکړه | اے خدایه! پوهه را! |
| زړه کې مضبوط راکړه | او سینه لویه را |
| ستر کې دلمر راکړه | رحم د خان را |
| بیا تول غمونه دی | د دے جهان را |
| ما ته ئې په سر کړه | ځار در نشمه |

زه به ئې وړمه

زه به ئې وړمه

| | |
|---|---|
| یار بهادر را کړه | که همت نه راکوی |
| غیرتی ورور راکړه | که غیرت نه راکوی |
| د سکندر بخت را | د دارا خیال را |
| ست د خالد کښنې | تور د هلال را |
| اسلام دې پرېږدما ته | ځار در نشمه |

زه به ئې ګټمه

زه به ئې ګټمه

د شپې خیمه کښې   د عشق شراب را
پاک مل دلارې   لکه ګلاب را
د سپوږمۍ نور راکړه   لوبو کولو له
د بودۍ تال راکړه   جوتو هلو له
جهان دې پرېږده   خُمار دې نشمه

جنت به ئې کړمه

جنت به ئې کړمه

## پلوشه

مخ ئې و، قبلې ته لیونے ترې خبر نه ؤ
سترګې ئې وې وازې د انسان په تماشا

عکس د سپوږمۍ ئې د شبنم څاڅکي کښې ولید
ځکه په سجده شو د جانان په تماشا

نشته دے د ژوند د خوب تعبیر کتاب کښې نشته دی
سترګې دې کړه پورته د آسمان په تماشا

خدائے مکه کښې نشته د منصور د زړه خوږ وا وریده
لاړ شه لیونیه! مشه د خان په تماشا

# بے پروا لکه لولئ وای

بے پروا لکه لولئ وائے — په کلونو کړ خیدلے

او چه تول عمر ماشوم وے — په بلا نه اوریدلے

د دنیا د وږ وستو کو — بے خبره کړ خیدلے

چه په خوله د جانان نه وے — د فراق وره پیتے غزلے

بے پروا لکه لولئ وے

په کلونو کړ خیدلے

بے خبره چه آدم وی — د رازونو د حوانه

نا آشنا مجنون وریدو وی — د غمونو د لیلی نه

او وه چه حسن خبر نه وو — د خپل حسن د غوره ننګه

راز ماز ره نا آشنا وے

د دے منو بدو د جنګه

# بنباری

ستړے مشے خوار مشے نه: خیر سه را غلے — "دوه: دوه پیسي د کلچے[1]: دوه پیسے دی چاے"

سه ګرځي کښے چا نسکے خانو په بنبار سه دی؟ — نخ سهرت نا جوړه نیبو[2] ماکښے منبه نه دی

---

(۱) په هند کو خپل مزدور ته وائی: منشو کړه د دوه پیسو کلچے او دوه پیسو چای خان له راوړه (۲) نیبو لیمو

ستا قسم دی خان : دودی نمونې سره به نوش کوے
دنا، ونه و ے خان مونږ دغم نه به بے هوش کوے
د اشه لاړه دنبیم تاله زوم (۱)، نره انتظام کوم
خدایږ ونن دمنار کے ریلا متول په تا تمام کوم
شوره هغه کوټ باندے دے پروت دسیټ دوکان
هغه سیټ دوکان پسے دی بل دسیټ دوکان
هغه سیټ د کان پسے یو وړوکی شان مسیت دے (۲)
خواکښے یو پیل دے یونانی (۳) لیسږ شان پلیت دے
اخوا دوه کوټې دی یوراټی او یو ورخې
هلته ناست دی کوټ بانا، دکان یو درزی (۴)
شاته زمونږ کوړ دے مونږ ورځو په بله لاړے
اسی اوتی بیتهی اوسان وینهی دکارے
لاړه که غلطشی کوړه دغه خی دکان دے
دلته بنه تیکه جوړېږی الله مهربان دے



---

(۱) خم. (۲) مسجد. (۳) نالی : لښتے (۴) خیاط.

# حوره

خلاص شراب جنت کښې شو نو لګی راغې د حورې ګلې به خندل شوې با غنچه کښې د انګورې

نه ترې چرته پته شوې د ګل د بوټي خوا کښې څه محبوب تا شو د بلبل په واویلا کښې

راغی د شبنم اشنا ما لیار د باغ غمګین

وې لیدو په ګلو کښې دیو بل ګلاب رنګین

وې ښو کاوه په ښونا د سر کښې دیو په مینه ګېنوده،

راغله لیلی سر ئې د مجنون په سینه ګېنوده

خوب کښې دے جوړ یا چرته د خپلو خوښو ساز واورېده

چرته د باغ کوټ کښې دے د زړه وطن آواز واورېده

وې لړو ستورو ته په مړاو سترګو کورے

د باغ در ته یاد کړلے حورې! باغچې نورے

زور زلا د دره ستورو نه چه ستا د زړو تمالو

پروت چه په د زلفو کښې د منګ په خای هلالو

هغه چه به لړو کښې د ستورو کړ ځیدلے

یا به د سپوږمۍ شغلو کښې پته کړیدلے

حورې: ما هم بوځه د رڼا دغه جهان له

تا سره به زه هم خوا کښې تالاچوم خان له

# غمگینو سترګو

خوب کښې بابا ولیدم — مورِ م پیدا کړم
د سپوږمۍ عکس وې — زه هم رڼا کړم
قسمت خلمی کړې — کله په دنیا
ځوانۍ ویله کړم — راویښ لیلیٰ کړم

غمگینو سترګو
د غم اشنا کړم

مینې شاعر کړم — او غم دانا کړم
یار لیونی کړم — بیا ئې اشنا کړم
مرګی ته خاندم — ژوند ته ژړا کړم
کله موسکې شم — کله ژړا کړم

غمگینو سترګو
د غم اشنا کړم



# علم تشدد

د غضب په نیلي سور شو — د شېرشا[1] لمسی باتور

سترګې یې د پښتون سرې شوې — چه نیم اور دے او نیم نور

خوان ګړل شنه برېتو تاؤ بیا — په مستۍ چټر روان دے

دیاره مستې سترګې وینې — بې خبره د جهان دے

مورنږې دے په سر قرآن بیا — خور دې سترګې کړې لې تورې

د بابا پښتنو سترګو — ور ته وکړې قیصې نورې

اې زما د نیکه خویه ! — اې زما د مینې وروره !

اې د نږ بابا بچیه ! — اې پید الدنږې مورې !

سترګې د ګې درنا ستا — لاس دې تش تېرې د څه شو ؟

د غضب په نیلي سور شوې — فولادي زغره د څه شوه ؟

وې په نوي مستۍ مسته — پاکه وینه د پښتون شوه

وې ګوره که لیلی بیا

تش په مینه د مجنون شو

---

(۱) مرکز شېرشاه (۱۵۴۲ ع م) د هند د بهار د ایالت په سهسرام کې ښخ دی.

# جدائي

جدائي راغله بیا تکه توره

که لوګي وخوت د عشق له اوره    جدائي راغله بیا تکه توره



بې خودي لاړه زړه مستي شو    وریته پخپل اور وریته مستي شوه

بلبل ورور راغی د بوټي خواله    ویل خدای دې مل شه د خاوړ والاله

جدائي راغله بیا تکه توره

تازه پسرلي کښې په ما خزان راغی    ساقي کړه خلاص یو دور د بل دوران راغی

سرې ګړې ښکته بوې د بوستان شو    مجنون شو خاورې روح د جانان شو

جدائي راغله بیا تکه توره

که لوګي وخوت د عشق له اوره

# فلسفه

واوره فلسفه د لیونتوب د لیوني نه    دا آیت خو نه دې خو قرآن کښې ماویلې دې

مرګ او ژوندګي ټول د غم او خوشحالۍ ټول دي    ژوندله چه تېر نه شوې مرګ چاځله لیدلې دې

زړه لګه په چا د خوشحالۍ غم نه شراب دې    تېر نه شې خصت تښتي تا خو غم ته نسکور کړه نه دې

خوند نه جدا کړې د ده نشه یو د دواړو    دواړه کښې خمار نه دې ساقي د سترګو تېلې دې

مرګ کښې پټ دې راز د مرګ ژوندي پرې نه پوهیږي

دا آیات خو نه دي خو قرآن کښې ماویلي دي

# د فقیرانو سوال

سترګو د جانان کښې زما        ښکلې جهانونه دي
وا دے خله دنیا        زه ورځے ستا د دنیا نه یم

ګوره د فقیر لچکول کښې        تاج د سکندر دے پروت
زه یم د سخیانو        د شومانو ګدا نه یم

زه ئې په غرور دړنه        د مینې په نوم غوارم
ږه مانګ بې نیازه        ستا د ویر واویلا نه یم

هغه مستي غوارم        چه ئې مرګ نه شي وژلے
زه دے د غمونو        د بیګا او سبا نه یم

یو د سپوږمۍ خاخکي        ماله تمیک له د جانان را
ږه یم د خوبونو        د لالونو ګدا نه یم

تښته دنیاګۍ که دې ښې        نو اے امیره!
ستا شوه ستا دنیا
زه ورځے د دنیا نه یم

۱۴ جنوري ۱۹۴۱ ع

# جانان

دوه مینو ستر کو کښې ژړکونه په سوو نه

ماته ئې جهان ډک کړ د ګلونو د نورونو

کوټ ئې د ښار ابود جنت په جهان داکړ

خوب کښې ژوندون داغ شو ژوندون د خوږونو

سینې د سپوږمۍ د رڼا لپې ډکې ډکې

ونوستي(*) تا خاورو کښې زما په قدمونو

رب دې راته وښود پټ د مینې په رازونو کښې

وادې چولغولۍ کښې زما ستورې په پلونو

ساز د حورو اورم ستا د حسن په سازونو کښې

ماته دې د رب وښود پټ د مینې په رازونو کښې

# رباعي

که تش په عقل وې په لیاقت وې

نه په نصیب وې نه په قسمت وې

شیطان به نن ولاړې له جبریله

غني به هم لایق د ولایت وې

---

(*) نوستل : شیندل .

## پلوشه

نه په لیونتوب ستړي فلسفې کړله څه جوړه — نه په فلسفه ستړي څه کړه جوړه لیوني

دا کړه وړه دنیا کړه وړه روانه ده — بویه دوام بویه بویه بخت دې خوار غني

دا دستور د شمار د وخت تلل د ساز لیدل

سبه خو نیتولا دي چه دیر و شو کني

## پلوشه

مرتبه تو براق دی کړه سوره د محمد په شان — مرڅېره کعبه که او سیوری د ابراهیم پکښې

مرولاړ مکې ته څي چه نیت دي د مکې وي — مرتیره گلشن دي کړي وږه ورته الکي نسیم پکښې

## لیونی

یو بنا ر روان کړي دنړونړو کو خو دي — یو خیال ورته روان کړی نړیي دی دتلوسو دي

یو سره روان کړه تنکي سوزه او تنکي ساز — یو عشق دحقیقت دجوړه د عشقونو مجاز

یو کوره روان کړه د خوبونو د رنګونو — دتوره تمتړينو کړ بلبل وکو سه نګو نو

او خانګي لیو ستړي دي د کې دمستو نه — وحدت ورته روان کړی د لکها بت پرستو نه

اوکله لیونتوب فلسفه کل او صنم واني

اوکله دمستي خبرې دیرې په غم واني

سره یا گل غوړني مخ د شبنم پرې پتوي

او ورباله مست خورو دي ستړ کو غم پرې پتوي

# سوال خواب د لیونی او ملا

لیونیه: محبت څه ده؟ — ملا: کوږ دیو عاشق دی
کو تښتي دی کښې ډیرې — د ممور رب خالق دی

لیونیه: ایمان څه دی؟ — ملا: دا دې پوخ گمان
دیو خوب په زړه لیږلی دی — د وصلونو د جانان

لیونیه: جنت څه دې؟ — ملا: ستا جنت پیتی ده
او زما جنت وصال دې — یو خمار یوه مستی ده

لیونیه: حوره څه ده؟ — ملا: لهر(۱)، د خمار دې
یوه کرسنه ده شفق ده — د خندا برېښنې ده

لیونیه: نشه څه ده؟ — ملا: دا په سیل واته دی
د مستۍ رنگین محل کښې — دا واته نه واته دی

لیونیه: چه لموغ څه دې؟ — ملا: خاورې سنکلول دی
د جانان کوڅې ته تلل دی — د امید ارمان کیدل دی

لیونیه: سجده څه ده؟ — ملا: خان خاورې کول دی
د مستۍ د سکلو هار — د یار پښو کښې اچول دی

لیونیه: ژوندون څه دی؟ — ملا: زه یمه ژوندون

---

(۱) چپه - موج.

دا زما د خوب لیده دی | د سبا او د پرون

لیونیه! وصال څه دے؟ | ملا! بنیست کښې ویده دی

دا په ستورو کې ویده دی | په سپوږمۍ کښې خوره دی

لیونیه! حسن څه دی؟ | ملا! لهر د خمار دے

یو موسکی موسکے شان خیال دے | یو نړے د رنا تار دے

لیونیه! ته نے څوک؟ | ملا! زه د چا ارمان

زه یو ګل د چا د ګوتو
پروت په پښو کښې د جانان

دار الامان - ۲۵ فروری ۱۹۴۴ ع

## پلوشه

چه بے خودی پیروشي د خودۍ رنګ ورکوي
یا بوډاتوب له هم د ځوانۍ رنګ ورکوي

غم چه ډیر زور ورکړي د خوشحالۍ په شان
د ژوندون تار له رقصانه شه رنګ ورکوي

سترګے چه تشے شي خوبونه ډک وینی
په تش کاغذ مصور مستانه رنګ ورکوي

سحر له شپه ورکوي شپې له سبا ورکوي
د فلسفیانو سره ارنګ دو رنګ ورکوي

# کلے وړے

مچ د زمرے سترګے شکوی ماشی د اوښ وینه
خدایه! ستا دا عجیبه دنیا توره ده که سپینه

مړ لسو ګیدړو ببر شیر په بونډۍ چړګه کړ
سپوږ شغال په پړانګ دے د غږ خوږ ښکاله خینه

پریوځی چوارې ته ځان کاڼه په دتۍ زرو کړی
ښکلے ستا د کوتو جوړه ځوانه نازنینه

ناسته ده د دم دلندن لوړ په سرو وړېښمو کښے
لوړ د لوے شیر شاه لوړے په لاس دے لوله خینه

مست مغرور سر د پښتون ټیټ سترګے ښکته دی
شرم داسی شرم چه شرمونه شرموینه

## پلوشه

که شړنګ دے که ړنګ دے — تول راز و نیاز دے
که ښایست که مستی دے — یو ناز یو انداز دے
که حسن که نور دی — یو سپین سپین سحرے

که ګل که یسین دے
یو سوز او یو ساز دے

# پلوشه

روند به څه قصه د دې رنګين جهان د رنګ وکړي
دا نيمې مړې کوتې به څه ستا د طبعې شرنګ وکړي

وچې سپېرې شونډې به په څه ناز او نياز وکړي
دا غمګينې سترګې به په کومه نشه رنګ وکړي

# د پسرلي شپه

د پسرلي شپه وه مسته مستانه | ستوري ځلېدل ډېر روښان و روښانه

سپوږمۍ ولاړه وه ښکلې حيرانه | لېونۍ سوال کړه د خپل جانانه

د نام پوځ له د لامکانه را | مستي مې سترګو له د خپله ځانه را

د خپله ځانه يار! د خپله خپله ځانه | لېونۍ سوال کړه د خپل جانانه

ناګاهه برق شو د رباب د نوره راغې | څه په مستۍ راغې څه په پېغور راغې

مستي شوه کونګه مستۍ ګويانه | لېونۍ سوال وکړه د خپل جانانه

او لېونۍ چه ورته زړګي کړل لړې | ډېر پېغور ورکه ښکلي ځای شو بېخرې

نور دک د ځانه وه دک د جهانه | لېونۍ سوال وکړه د خپل جانانه

د رباب د نوره لاړه بېبېست او رناله لاړه | او د جانان مستي جانان له بيا لاړه

لېونۍ پاتې شوه څيرې ګرېوانه
د پسرلي شپه وه مسته مستانه

شمله هندوستان - ۷ ستمبر ۱۹۳۴ع

# دعا

دې بې انصافه د زور جهان کښې — دې بې کښېنې د پېغور جهان کښې
دې په غریبو نسکور جهان کښې — سترګې لیدونکې را عقل روښان را

زړه مې مین را رتبه! زړه مې جهان را

دې د مطلب او تکو په دنیا کښې — دې د راهنګو غونډلو سودا کښې
دې خوږ زهر و سنګلې بلا کښې — مینې طمع را زړه بې ارمان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

دې د دروغو او تور جهان کښې — دې بې کښېنې د پېغور جهان کښې
دې د بد نیتو دار جهان کښې — پاک دا ملګي په شان نیت او ایمان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

دې بې همته کمزورې دنیا کښې — دې په نفرت تورې تورې دنیا کښې

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

مرګ چې ترې ډیرېږي داسې ایمان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

سر بې پروا مستانه د منصور را — سترګې خاکسارې مینې د نور را
سنګلې هر خیال ایمان د سرور را — زړه د ملنګ را او شان د سلطان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

# شاعري

لږ خیال کړه لږ تال کړه لږ شان د جانان
لږ ټنګ کړه غږ ټنګ کړه یو آه د ارمان

لږ نور کړه لږ نار کړه لږ سوز کړه لږ ساز
لږ یار د سپوږمۍ شه د ستورو همراز

لږ کوټ د کعبې ګڼې لږ ګل د شیراز
لږ باغ لږ باغچه شه لږ تور بیابان

لږ خیال کړه لږ تال کړه لږ شان د جانان

# جنازه

سر مې لوګی شه له تا سترګې مې
شونډې مې خاورې ستا د دیار شه

قربان خلمي لتا نه قطار قطار شه

ته د خزان ګڼې یو ګل د بهار نې
د تور شپې ګڼې ته یو زیړ د سهار (*) نې

ته د بهار خوب د کلي وران نې
ته یو تصویر د پښتون د ارمان نې

ته د پښتو د ناموس او د ننګ نښه
ته د پښتو د سپین ږیري ملنګ نښه

ته زمونږ د دې صبر د جنګ نښه
ته یو ګواه د پښتون د مړانې

ته یو تصویر د پښتون د ارمان نې

ته د مینې او د زور او طاقت قصه
ته د شهید د مستۍ او د شوکت قصه

ته د پښتون د یو خیال او د نیت قصه
ته یو آواز د مظلوم په آسمان نې

ته د بهار خوب د کلي وران نې

(*) سهار : سبهار .

پاس به دې وي پر قوم زه په حصار ښئ — یا به ته په خیبر یا زه په دار ښئ
سر مې لوګي شه له تا سترګې مې خاړ ښئ — ته د بهار خوب د ګلي وران ئې
ته یو تصویر د پښتون د ارمان ئې

# مور

دا په سترګو د مریم کښې — چه ژړا وه که خندا وه
چه ئې سور په صلیب ولیدو — د عیسیٰ د زلفو ول
دا څه وو دا یمه تاته ؟ — چه رحیم ئې که رحمن ئې
چه په څادر کښې کړې خاورا — د ګلاب ښکلي اوربل
دا مستي وه که معراج و ؟ — دا جهان ئې چه روښان کړ
که د نور دیار د سترګو — دریابونه بهیدل
چه دا کفر که ایمان و — چه دا زه ئې لیونی کړم
چه داغم مې په خندا شو ! — که مستي مې وژړول

# د ښاپیرو شهزادګۍ

د سرو زرو محلونه کښې یو تخت و د لالونو
او چت د غره په سر و یو کمال د کمالونو
چاپېر ترې خندا وه او مستي مشغولا وه — ګلونه وو سرې نه وو رنګونه وو رڼا وه

او ناسته دے محل کښې شهزادګۍ د بنا پیروده

چه جوړه له خوبونو بنا یسته ښوونزی وه

ماوے اپي بی د جنت : زه ستا د ره ملنګ یم

ده تنګ د دے جهانه د غمونونه نے تنګ یمه

لږ پټ م کړه د غم د تود ستر ګونه محل کښې

زړ ورکه دا ذره به شي دستوره په غوبل کښې

او ستونے را پورته کړے پستے د رنا سپینے

نازکے نازنینے په رنګونو کښې رنګینې

ور و غم یکښې را وخوت لکه لوړه د ما بنام

چا ډک کړه له شرابو د سپوږمۍ د رنا جام

وے واخله دا محل دا تخت دا ټول ساز و سامانه

د غم پټېدو نشته خوک پټ به شي له ځانه

څه : پښبوله د جانان دے دا غم د جهان یوسه

څه ځاځکیه : دا دریاب له یو قطره دارمان یوسه

نه غم نے نه خندا نه بهار نے نه خزان

خوماليد لی خوب کښې د ي د حسن يو جهان

چه ډوب به په مستۍ کاندي ستا غم او ستا ارمان

ماوے سر م لوګي شه له تا ستر ګے م قربان

راځه چه دې د نوې جهان له دواړه شور روان

اې مترنګه د کونګرو! درباب تال او سرنګ کښې ډوب شه

او اې اوراورکیه! دلمر په رنګ کښې ډوب شه!

دې رنګ ربا نیولی یم ما دې تلو ته نه پرېږدی (۱)

او ما خپلې وزرې الوتو ته نه پرېږدی

# زه

اې د منطق فلسفو ملا! اې دجنت دقصو ملا!

اې دجزا او قسمت ملا! اې د دوزخ او جنت ملا!

مکره ما ته قصې د ژوند نا ورم ته خه مستا قصې د ژوند

زه نه مالی یم نه خان د باغ ما ته ته خله کړې داستان د باغ

زه خود شا تو مچۍ یمه شاتې پېژنم او ګل پېژنم

زه یو وړه لولکۍ یمه سا ته را تلل او تلل پېژنم

زه یو چپه د نسیم یمه بس یو لمحه د ما بنام پېژنم

زه یو قطره د شرابو یم شونډې پېژنم او جام پېژنم

نو ما ته ته خه لکې داستان د باغ زه نه مالی یم نه خان د باغ

زه خود شا تو یوه مچۍ یمه شاتې پېژنم او ګل پېژنم

---

(۱) دا شعر نامکمل غوندې دی.

زه یوه وره لوکسی یمه          سات له رانلل او تلل پیژنم
زه خوږیشه نک د کونکرو یمه          پښې د رقاصې کښې تال پیژنم
زه یو بخرے دسونه یمه
غم پیژنم او وصال پیژنم

## تول او تال

په سترګه دے پردے دلیونتوب دی لیونیه:
ته نه پیژنے تول، ته تش تال پیژنے

ته سترګے دلیلی وینے لیلی نه وینے
ته زره دسیپئ نه پیژنے لال پیژنے

ته وینے دګلاب سترګو کښے سور د ژوند خمار
نه ئے جال الجهه وینے نه ئے جنجال پیژنے

اوا دادم زویه اے ناز بینه دالله:
د زړه کالو باب کښے ته یو کال پیژنے

زما او ستا خبرے د ماتی ماشی واده دے
زه تول لیلی وینم ته ئے یو خال پیژنے
نه ترک دلوګی ترک یمه د تول د آدم
ته نه پیژنے تول ته تش تال پیژنے

خو خاص د دے د دو لیونو سترګو د پاره
زه جوړ به خپل تصویر کړمه د ټکو د غباره

# خرو

تو تو توخرو: وروته ته

ارمان زمالنه لکه فرنګي شنه جامه کړه کته
خبرې اوس پیسټې کوي شمله نې ده بې بته
یونوې اسلام راغی دخانانو دمحلته
چه خوښ نې دي موټر د اکوري مجرت دجماعته
تیز کرخي په پټرولو کله بره کله ښکته
په بله ډه تماڅه کرخیني (*) ویریږي دپنډه ته

وروته ته خرو! وروته ته

ارمان زمالنه ی نن په اسلام کېنې دے ننګ
ارمان زمالنه ی سبز کال کړلی دی بادرنګ
ارمان زمالنه کېنې دی چالونه رنګ په رنګ
ارمان زمالنه یه: کله پلن شے کله تنګ
ارمان زمالنه وي کله بره کله ښکته

وروته ته خرو! وروته ته

---

(*) کرجني کرځوي ـ

ارمان زما لالہ یه : لوړے ځیته د هاتی
په نسل فتح خان او په خویونو جلاتی (*)

ارمان زما لالہ یے زړه کښے زړه کینه ساتی
ارمان زما لالہ سے نن کړی کاروبه خیراتی
زما لالہ یے حاجی شو نه سوکان ورته ملته

وړه تته تته خرو : وړه تته تته

زما لالہ یے غصه دے نن غیرت د مسلمان گټی
مړو له جنت گټی ژوندو له دا جهان گټی
زوے له نوکری گټی او خان له پاکستان گټی
داستاد رقیب دلال به نن تا له جانان گټی
په بله تمانچه ساتی ویریږی دپنډ ته

وړه تته تته خرو ! وړه تته تته

ارمان زما لالہ یے چه پنجور لکه زمری دے
په لنڈه کښے سنبه د بازے دخوکو بوروږ کښے نری دے
په فکر افلاطون دے په اخلاقو بناپیرے دے
په عقل لږ بخین دی خو په ژبه چرچری دے
ارمان زما لالہ دے ډک د چل او د حکمته

وړه تته تته خرو ! وړه تته تته

---

(*) فتح خان بریخ او د جلات محبوبا د غمی حالات ته اشاره ده .

الله: زمالنا! نن د فرنګ نه ګټي خان

الله: زمالنا! هم ګټي مصر هم ايران

وائي نيت م د کعبې دي خولن ته د روان

هند د فيرنګي ته خوږ نه لګي هندوان

ارمان زمالنه! نن نه کوکرې داونه بته

ووه تته تته خرو! ووه تته تته

پرون زمالنه چيرته ولاړو په ډيران؟

پرون زمالنه چيرته خورل پردي توتان

پرون چه جهان وران و، و زمالنه وودان

پرون د چا په دين و چه دا نن شو مسلمان؟

زما د نبادي مشه! استاوي غم کنبې کومه ته؟

ووه تته تته خرو! ووه تته تته

زمالنه يه: واوره د بوندې نه لګي د خار شم

دښمن ته م دښمن شه نوز ديار به ستا د يار شم

که خپه د جانان کوي ته زه به ستا د پښو غبار شم

ته خار شه په وطن نوز به ستا ستر ګو خار شم

که سم نه شو روان چرته به زه د رومه بنګته

ووه تته تته خرو! ووه تته تته

# اسلام

اے په اسلام مینه! — اے سیاسي مؤمنه!

نن چه اسلام ستائے — ستایه دے خوک پرون!

دا هغه مخ د تپوس — خونړی شنه پرونه

دا د عقاب پنجے — د بنا پیرک دړونه

نن د جنت وعدے — پروني دوزخونه

چار بیته هغه زړه — خونړي دي سرونه

اے په اسلام شیدا!

اے سیاسي مؤمنه!

ستر دے برکے بھرکے — برک دے ایمان دننه

پرون ئے خان نه کاته — نن دے اسلام ګټي

په خرڅ د ننګ د پښتون — خپل ننګ او نام ګټي

زما په وینو چا له — ایران او شام ګټي

او د شرابو تاجر — ساقي او جام ګټي

اے په اسلام مینه!

اے سیاسي مؤمنه!

خه به وي رب ته خپل   چه ئې د کوږ د ننه
تا د پښتون ستر کو ته   د تیاره جال جوړ کړ
او د جناح دخره   د ے خرد جال جوړ کړ
غلاف کعبې له د ے   د روایت ماال جوړ کړ
ماله لندن کښې تا   نوے ملاال جوړ کړ
او د بلا نه د ے   ما ته بلاال جوړ کړ

اے په اسلام شیدا!
اے سیاسي مؤمنه!
ګلاب نیوے نه شي
چرے د زوزونه

او د رقیب نوکر   نن ماله یار ګڼي
زاغ نن بلبل ګڼي   خزان ګلزار ګڼي
مینا پیرک جنګ له وړخي   د شهباز ښکار ګڼي
نن په بورا له ګونګټ   د ګلو مار ګڼي
او د کافر نوکر   کړي د اسلام پالنه
اے د کفرو وطنه!   اے د رندو وطنه!
او کور شرمنې ته   کوي د شپون آواز
نن چه بانګونه کوي   خه ئې کړي پروڼ آواز

د نفرت کړیکو کښے      د سینے سوز او ساز
پرون عمل د یزید      او نن نامه د ایاز
لږ خو پلا ے سوچ وکړه      زما ساده پښتونه !

اصلي مومن کړه بیل
له سیاسي مؤمنه !

څوک د عیسی په شان؟      مستي د دار اخلي ؟
څوک د نمرود کاله کښے؟      د موسی لاره اخلي ؟
څوک د رقیب په محل؟      نوم د دلدار اخلي ؟
څوک تول جهان غور ځوي؟      سترګے د یار اخلي؟
غماز لږ وپیژنه !      ایاز لږ وپیژنه!

اے د کنهو وطنه !
اے درند وطنه !

## سیل

څه چه لږ سیل وکړو      بره آسمان ته ځو
د دے تیاره ے له کوره      د نور جهان ته ځو
څه چه مستئ له ورکړو      د بےخودئ وزرے
څه چه جنت ته ځو      څه چه رضوان ته ځو

دا د خـزان تیار ے کړو په تیارو کښے د ې کے
څه چه بهـار له څو څه چه بوستان له څو
دا د جهـا ن خبرے دا د ملنګ تکورے
تخت تاؤس ته څو ماه تابان لـه څو
او د رقیب دکوځے د ربانی نه کوو
مونږ مستانه لیونی کور د جانان ته څو
مونږ د جانان دشونډو شراب څکلی دی
څکه مست مست مجنونان نن بیابان ته څو
مونږ یو، بخـرے د نور لرے لیدلی دی
د ګل په شان په خندا غیږ د خزان ته څو
را څه چه هیرے کړو د دنیاګۍ قصے
څه چه لږ سیل وکړو
بره آسمان ته څو

۹ جنوری ۱۹۲۶ ع

## ګلـہ ے وړے

د محمود غمکینے ستر کے څان له چل ایاز لټی (*)
که زما بیګانګی نن ستا د زړه نیاز لټی
د لیلی ستر کے ژړیږی د مجنون دستر کو غم کښے

(*) لټی: لټوي.

نرګس مرا وے مراوی ګوری | د بلبل آواز لتهی
را شه وجد خه مستی ده! | چه الله تر آدم جوړ کړے
که معشوق د مینے سازله | د عاشق آواز لتهی
نه دا غم د فلسفی دے | نه دا رنګ د لیونی دے
دکو نکرو شهکار روان دے
حقیقت د ساز لتهی

## مسلمان

مسلمان هغه بنده دے | چه شونډے ئے تل موسکئ وی
سترګے ډکے د رڼا ئے | له خولے یو په پسل موسکئ وی
سپین ایمان ئے لکه تنده | بے د ځانه هر څه سیځی
د جانان د دربار وته ئے | زلفے ول په ول موسکئ کی
چه ئے زړه ډک د آرام وی | لکه بیخ د سمندر وی
خوله ئے ډکه د ګلونو | لکه باغ د صنوبر
راسے مست دا سے سرشار | لکه مینه د کافر
اراده کلکه ئے کړے | لکه څوکه د خنجر
د وجود هر څاڅکی وینه | سره په مینه د دلبر
په سینه کښے ئے رڼا وی | لکه څرکیه د جوهر

په ژړا کښې ئې تاثیر وی — په خندا کښې ئې اثر

مست ئې بر په هر څه بروی — لکه مست د سکندر

د ذرې نور ئې لکه شمع — پرې اور رونه بل موسکی دی

د بلبل د خولې آواز ته

راغوټې د ګل موسکی دی

## رڼا د شمع کښې د سحر نور راغے

تاو د غمے لاړ ماسپښینی شو — لکه د منی یخ باد د سینې شو

سرور د سترګو دیر خو د زړه کم شو — او د فراق استاځی یخ د صنم شو

ساز کښې سرونه نن د خاموشۍ خیږی — د هوش جنګ ئې په کوړ د بیهوشۍ خیږی

بادشاه شهونکی شو د خپله کوره — د شفق سره ئې ګونه شولړه توره

او ستارې کښې شرنګ هغه د مابنام نشته — سرور په سترګو کښې دے د خیام نشته

پښې د رقاصې خوځال ئې هغه نه دے — بانګ د بلال هغه بلال ئې نه دے

په جام کښې ګوټ ګوټ شراب که کمیږی — سپرلے خلاصیږی ګلاب کمیږی

او رڼا د شمع کښې د سحر نور راغے — باغ د بلبلو ته نوم د باتور راغے

د غوټو سترګو له خیال د خزان راغے — لږ مستی لاړه او لږ ارمان راغے

او د فراق سوړے په وصال پریوت

ستوری را ختل او هلال پریوت

۳ مارچ ۱۹۲۹ ع

# پلوشه

زما بخت د شمع بخت دی یا به مړ یا به سوځم
یا به بیخ له د دریاب ځم یا به پاس په چپو ځم

عجب ناز عجیبه لاره عجیبه کاروان روان دے
ما د مستۍ په اوله بیانی که ځمه او که نه ځم

# اګست ۱۹۴۷ء

نن انسان شو د انسان د وینو تږے
نن مجنون شو د جانان د وینو تږے

داسے روند په سترګو روند شو د تندے
چه ترې پورته شو حیوان د وینو تږے

دا محل د چا باچا د شان او شنګ دے
که دا پروت دے د بیابان د وینو تږے

دا قصه د یار د کور او استانے ده
که د ظلم یو داستان د وینو تږے

داسے زهر چه بنا مار د ته پسخیږی
داسے تاو چه کړی جانان د وینو تږے

داسے قهر چه لمبه کړی خپلے سترګے
داسے خان چه وی د خان د وینو تږے

داسے رنګ چه د آدم په وینو مست کړی
داسے شه چه کړی آسمان د وینو تږے

لیونیه! د مستۍ باغ ته ترے تښته
نن د تندے مرګے جهان د وینو تږے

# تول (۱)

جال نه دے دام نه دے تول لګیږی: تول!
یا به په دوخان شے یاره یا به شي پردول

یا به قلم سره یو شے یا حق به د لته (۲) واوړے
جال نه دے دام نه دے تول لګیږی: تول!



---

(۱) د منګے په شان منزل. (۲) هغه آله چه رغنه لګنے نیولے شي، او که مه وي ته دیل کیږي.

# ارمان

ما د ګلو باغ کړې د خزان کښې | د جنت خوب مې لیدلې د جهان کښې
ما د ځمکې په مخ هغه لال کتلو | چه موندلې شي په برجونو د آسمان کښې
او زما په ځوانۍ مست په عشق خوږ زړه | فرق ونه کړه په تصویر او په جانان کښې
زه په خپل ارمان مین دم په تا نه دم | ځکه هیر ومه په ارمان کښې
ته چه را غلې ستا د زلفو ارمان لاړه | ها مستي د مجنون پاتې بیابان کښې
ماله سود د وصال نه یا شو پکښې ورک شو | هغه یار چه مې موندلې و په زیان کښې
زه په غم مست په فراق بانده مدهوشه | مرم د تندې د ګلونو په باران کښې
پتنګ روند شو د لمر سپینې رڼا روند کړه | لوګی ګل پسې ژاړي ګلستان کښې

د ځوانۍ مستي مې شوله ځوانیمرګه
د جنت خوب مې لیدلی د جهان کښې

# بکواس

راځه زما زړګیه یو به ته شې یو به زه | یوه ورځ لولکه او یو ګل د لا لا
یو ښه ننګ د غرور خنک ښکار ننګ د مستۍ | شو سوره په ملغ په خندا خندا
روان شو جانان له پسه او سر هر | په نیاز په خرام په مزا مزا (*)
یا خوب به لې په کټ د لولکۍ کا وه | یا ته به دا ور او ور کو په رڼا
خو ډوب په قطره د شبنم شو کښې | او چت په ملغ په خندا خندا

(*) مزه.

# پلوشه

او د بنده مثال لکه خس دے — تو د شي لوګي وکړي رڼا کړي جوړه
لمبه شي وسوځي خادے ایرے شي — بوره ابي پر ذړا کړي جوړه

# دوه خبرے

نن مې ماته جانان وکړے دوه خبرے د مستئ
د فقیر کچکول کښے ګوره ملغلرے دے مستئ
چه زور د ګه جمال د ماسره پښو کښے کینود
چه به زه ترے ګرځیدمه لړے لړے د مستئ
د فراق سلو صد دلربوه لمحه د دیدن بس دے
د غم زدکاله ایرے کړے یو نخرے د مستئ

# ګډے وډے

څه که نه وینمه سره سترګے خمارے — زړه پیږنم د سرو سترګو خمار
نه کعبه مې ده لیدلے نه پرے پیږنم(۱) — نه خو پیژنم لولئ او لاله زار
نه مې حوره ده لیدلے نه ئے غوارم — زه لیدلے شم سپوږمئ د دنیا تار

---

(۱) پوهیږم۔

غریب خضر شوند لیواله دچینے کړ | ماله کوت راکوی شرنګ دستار
لکه بیخ دسمندر دوب او خاموش دے | دا پروت دے دمستئ بیخ کښے قرار
اوپرته دقرار جرو کښے مستی ده | عجیبه مرګی ته ده عجیبه لار
په نصیب او په تقدیر م برے وکړ | توکل م شو قسمت م د اختیار
په جنت او په دوزخ م څه کار نشته | دے دواړو بره مالیدلے لار
له جزا او دسزا نه بے پروا یم | خو پوهیږم په فراق او په دیدار
که غمونه که فراق وی که دیدار وی | مستول کوی کنځل هم د دلدار

په خندا به شی غنی په لمبو سور
په دی شنو سترګو که ستا پیرزو شو اور

## دنیا کۍ

دنیا کۍ څه ده غم او غوغا څه ده | سوے داور سوز او سودا ده
لیونتوب یاره خره داده | چا جوړ کړے خیال منه مشغولا ده

## دالی

سترګے دے رنګینے دی نیازبینے دی مینے
شونډے دے ترسکونے او خبرے دے حسینے
ستا سینه دساز او دارام بوخزانه ده
څی دمر چا شوند وله ستا کوتے سپینے سپینے

اے د حاتم لورے! خزانه د عشق دې لوټ کړله

چاله لپې دې ډکې چاله پېښې پېښې

دا خو د جانان د سترګو رنګ د زړه مستي ده

دے نه جوړ جنت دې او د حورو خولے ورېښمينې

تا چه باغ تالا کړو د مالیار کوډله به څه یوسے؟

ته چه زړګی تش کړے نو د یار کوډله به څه یوسے؟

۲۹ جولائی ۱۹۴۶ء

## ګلے وړے

پښتنو! تلې جنه! تا ملا بابا دهوکه کړ
راضي شو په پیتي د کل کلو نه خبر نه شو

او سر غړ به جیران د کلي غیب کوري کله کاوان
به يې لاله لاله دا د تلو نه خبر نه شو

منمه د جناح کاکا چه پوخ بنا تنګه راغی
د په دکو تکه د کولو نه خبر نه شو

کوړه لیونی ته په مړه خیته بودا شو

د خولے او د کوالمو د سلسلو نه خبر نه شو

## قصه

توره توره شپه د هجري
توده توده د غم قصه

صبا نه صبینه نشه د خوانی
سپینه سپینه د شبنم قصه

ښکلے ښیسته د امید دنیا
سپوره زړه د ستم قصه

خوږ او مهین دی نوم د یار
ښکلی پسته د صنم قصه

ما ته قصه د پسرلی وکړه
ناورم د دیر او کنشت قصه

ما ته قصه د جانان وکړه
نا ورم د دیر او حرم قصه

ما ته موسکے مخ را واړوه
پریږده د فضل او کرم قصه

وایه د رحم او نور خپل
مکړه د دوران او ستم قصه

زور او اور او شور دا
دا ده ستا د کرم قصه

شرنګ ستا غوږ رنګ د زړه
دا ده زما او صنم قصه

اور او خوږے سوز او ساز
څه د مستی څه د غم قصه

ماله خندا خندا راځی
مه کړه د دوران او ستم قصه

# کړې وړې

د یرنر زما لالو خوچیني (۱) رانه خراب کړه

ملا پیستی ته ټینګ و خوفیرنی رانه خراب کړه

صاحب ښار کړ فتح خونے خیته فتح نه کړه

دے ترشے مسالے هندوستانی رانه خراب کړه

---

(۱) صوبه سرحد کښے بورے ته چیني وائی. یو وخت چه بوره ډیره سخته شوه د بوره خوږو پرمټ لری رشوت او لالچ وُچه دانګریز او د هندوستان دارو له خوا به د قومی تحریک مخکړیته ورانده کیده. غني دے خبرے ته اشاره کوی.

او خان لالا ئ ورک ؤ په اسلام او په ملت

مرید بنه د جناح ؤ خو جینۍ را نه خراب کړ

کوږ لیونی به ډیر بخښې او لوے قاضی ؤ

قصے د آدم خان او د ځانۍ را نه خراب کړ

# ځوانه

وران د گلستان دے اے بلبله : د پښتون د باغ

نوم د رقیب لیک دی په هر بوټی د مجنون د باغ

خوار و زار ځکه دے بے هنره بے کماله دے

غوږ نے دی کانه لا سو نه شل سترگے پر کاله دی

لال د دوب دے اېرو کښے او مرجان پرت دے په خاورو کښے

زوے د شهباز گرځی چرې خوری په سیل د داوړو کښے

پاڅه اخلیه : مستی توره او ایمان واخله

مشرق مشه او مشه تنده مشه او نو مشه خپل جانان واخله

خار د دښمنو بریتو شم غلام د غلام زوے ته

پروت په دوستی کښے نے که زر ځله ځلمے ته

توره دے را واخله ننگ پښتو او اسلام پوره ته کړه

لږ خپلو مستو سترگو دے نامه د غلام بوره ته کړه

پاڅئ ننګیالیو! نن دلبر او جانان وګڼئ

ننګ د پښتون وګڼئ ناموس د افغان وګڼئ

ټول جهان حیران کړئ د خپل شان په تماشا

اې د احمد(*) زویه! بچیه د شیر شاه!

# سلام

| | |
|---|---|
| نه ساز شو نه سوز شو | بس مې ژوند تمام شو |
| نه خوب شو نه شرنګ شو | نه یاد د ګل اندام شو |
| د اتوړ توره شپه راغله | نه ستوري نه سپوږمۍ لري |
| ځواني وه لاړه لاړله | یو کوټ او خالي جام شو |
| یو ستورے د سبا ؤ لاړ | سور ګل یو لاله ؤ لاړ |
| سور لمر زیړے زیړے شولو | نرے نرے ماښام شو |
| قصه د حسن هیره شوه | مزه د مینې تیره شوه |
| ملا بانګ د سباوے | آخر په سول خیام شو |
| مستي بے پروائے د که | په خود کښې بے خودي دے |

(او): کوره لیونۍ هم نن

بادشاه ته په سلام شو



(*) لوی احمد شاه بابا (۱۱۶۰-۱۱۹۶ ق) چې له سیاسي شخصیت سربېره د پښتو صاحب دیوان شاعر

# د ژمي ماښام

اوښ د ژمي ماښام — د جړۍ شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وریږي
غاړه د اور او خيام — شروع قصه ده
د شاعر سر او ستار — ګهين غزیږي
ټنګ او ټکور د ژوند — ناز او مستي د جانان
شرنګ د ځوانۍ کښې پټ — ښاتار د غم ومي
خندا مستي د ساقي — بت پرستي د ساقي
ستينې د(۱) د مرګ سره — د کونګړو شرنګ ومي
اوښ د ژمي ماښام — د جړۍ شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وریږي
يار شروع کړې ماته — د غم قصه ده

کله موسکې شي

کله ژړیږي

---

(۱) ستينې: ستايني هغه ساندې چه د مړي په سر ښځې وائي.

# ژوند

هر څه د رب او هر څه د رب
زه يو ماښام له راغلے يم

باغ او انګور ميخانه ديار
زه خو يو جام له راغلے يم

مينه مستي او خمار د بل
رقص او خندا او سينګار د بل

ګل او نرګس او ګلزار د بل
زه خو تش ديدار له راغلے يم

زه د لوګي وږمے په شان
ګل او غوټۍ او بهار کوم

زه لکه شمع بلېږمه
ښيست او مستي د دلدار کوم

لوے سمندر د مستۍ له ما
څاڅکي د رنګ راوړے دے

زه پرے د لمر رڼا التموم
ما هم مشال بل کړی دے

هر څه د رب او هر څه د رب
زه يو ماښام راغلے يم

باغ او انګور ميخانه ديار
زه خو يو جام له راغلے يم



# رَبّه

اے پہ ښیست مینہ جوړونکی دګلاب ربه!

ستا ښکلے دنیا شوه دخاروی او دقصاب ربه!

اے چه دماشوم سترګے جوړے کړے ګل په شان

ودکی او خوږے خوږے خبرے دبلبل په شان

زړونے پاک دبلو دمسر خیال او دازاره پاک

پاک لکه شبنم د ګناه او د ازاره پاک

تا چه تا ته تهیت دفرښتو ښکلی سر ونه کړل

جوړ چه دچا سترګو له تا ستوري او ګلونه کړل

تا چه دچا حسن له دخپلو سترګو نور ورکړ

تا چه دخپل خانه چاله مینه او سرور ورکړ

هغه محبوبه ستا آدم نه دے آدم خوړ کړے

آ ښیسته ګلاب ستا ګلاب نه دے اور دے اور دے

هغه ستا دلاس ګل پروت په ونو کښے سمسور دے

ستا خلیفه ربه! آدم نه دے آدم خوړ دے

تا چه چاله جوړ کړه د حسن او د ګلزار قصه

د کړه مشغولا له دې د مینې او د دلدار قصه

تا چه چاله ستوري او سپوږمۍ او ماښام جوړ کړه لو

تا چه چاله مینه او مستي او خرام جوړ کړلو

سترګې یې دې پټې هغه نن د زړه د مینې ښيي

ستا په نامه ربه! نن سرې د سهار وینې ښيي

## اول سترګې ستا د لید وخورا !

زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم — زه لیلی پېژنم یا ایاز

زه خو غم او غرور او ژړا پېژنم — زه نه جانان پېژنم او نه نیاز

دې نسکورو شمکورو ته د نور قصې ؟ — د جنت قصې د جلال قصې ؟

منږ کوږې ته د زړګي قصې ؟ — د ماښام قصې د هلال قصې ؟

زه خو ګل او چمن او شراب پېژنم — زه بهار پېژنم او خزان

زه خو شړنګ او رنګ او کباب پېژنم — نه ګناه پېژنم نه شیطان

دې شمکور نه ستا د لید د طمع ؟ — دې نسکورو ته تا ته د تلو طمع ؟

اول سترګې ستا د لید وخورا — بیا کړه د مینې د طمع

زه خو ساز او سروز او خمار پېژنم — هغه خوږم ربه! چه څکلې شم

زه خو شړنګ او غورځنګ او ستا پېژنم — او جانان هغه چه لیدلی شم

زه خو ناز او مکیز مسخره پیژنم | مښکلې خط پیژنم ښکلې خال
زه خو ستر ګې پسې او خوله سره پیژنم | او نګینه خنده د وصال
دې نسکوره شکورته د نورې قصې! | د جنت قصې جلال قصې!

دې ګونګو توته د باتور قصې!
د پرواز د ښیست او کمال قصې!

زه ستر ګې خوږې په ارمان پیژنم | او نوي تروږمۍ د مابنام
د سره شونډو خندا د جانان پیژنم | د ساقي په سره ګوتو ګښې جام
زه خو مست او مست او خندل پیژنم | نه ګناه پیژنم نه شیطان

زه خو غم او صنم او ژړا پیژنم
نه دعا پیژنم نه اذان

# رباعي

که پتنګ د لمر رڼا نه شي لیدلې | ګنهګار شو که په شمع شو شیدا!
زره ګښې چونګه الله د خاورې خلې شي | څه خطا که هم ګښې دا د نور دریا
څکه څکه په یو کوټ کښې دا جهان او آسمان او نجوم دي و شبنم څاڅکو کښې ځکه د سیند ګوړ د نعمتونو د جنت

بیا لا دا ددې پاسه په حساب او کتاب کړي | د رند ستر ګو بادشاه له سزا او عذاب ورکړي

راته زما راته د مستئ او د خزان راته! اے د تنګو د کور کړو د جانان راته!

اے د بنګلو سترګو د خمار او د ارمان راته! اے د کشمالی او خیټور او د ریحان راته!

ښکله ښکلی په یو کوټ کښې د جهان او آسمان واچاو؛

د شبنم ځاځکی کښې ښکله د سیند د نو دوران واچاو؛

۱۳ نومبر ۱۹۴۲ع

## یاد دے دی

اے د پښتو سترګو بنا پیرئ! چه ستا دی یاد که هیر؟

هغه دوزخونه تیر او هغه جنتونه تیر

یو بڅرے نور چه به کړ کل جهان د نوره ډک

یو رنګین نظر به غمګین زړه کړ د سروره ډک

ما ته به سپوږمۍ کړلے د صبر تسلیٰ قصے

ګل به راته کړلے مابنا می کښې د لولیٰ قصے

حسن د ځوانی او سپرلی مینه، سپوږمۍ، زه او ته دویو

وصل او مستی جنت جهان او زه او ته دویو

او ور د جهنم د خوسیخل پاسته د ساز هسے

لاس ئے د جلات د خو ځکاتئے د ایاز هسے

وے په هر نظر کښې د ساز د نو خزانے پرتے

هره اشاره کښې د عمر د نو ترانے پرتے

زړونه پټ په نور نکلېده وي په کاکو کښې پټ
مرګ ؤ په خندا بانګ د ژړګو په نارو کښې پټ

ساز ؤ بېخودي وه سوځېدۀ دو جهان دړک ؤ دړک
زه وومه او ته وې ځلکه مستوري اسمان دړک ؤ دړک

وخت ؤ بې حسابه بې پایانه سمندرونه ژوند
پټ ؤ کښې جهان پروت ؤ بېنيازه قلندرونه ژوند

خیال به د نسیم په شان ګلونو له ما بنام له ته
عقل مرور د حورو سازله او خیام له ته

تن کښې مې زړګي نه ؤ يو لا لړ د شغلونه ګي
سترګې د هر رنګه، هر اندام د ولولونه ګي

واړه دنیا وه ماته باغچه د دلربا د کوړ
هر ستوري به لار ماته ښود له د اشنا د کوړ

اې د پښتو سترګو ښاپیرۍ: چه ستا دي یاد که میر
هغه دوزخونه تیر او هغه جنتونه هیر

۲۷ اکتوبر ۱۹۴۶ ع



# دنیا

ما د ونې پښو کښې شهزاده په ژړا ولید
ما په مړېت ته ژوندون وهیت په ښا ولید

لږ بې نیازه سترګې مستې د بېخودۍ ډکې
وچې تږې مستې شوې شوې د سپي په ګلکي

لا من سکندر هم غځولی په سوال ولید
پرون د منات پښو کښې م په ذکر بلال ولید
ما د ونې پښو کښې شهزاده په ژړا ولید
دا مستانه زړه م د دنیا په سودا ولید

۲۵-اکتوبر-۱۹۴۶ء

# ژوندون

دا ژوندون دے دوه ورځې
خلاص به شي او تېر به شي
دا غنې به خاورے شي
ورک به شي او هېر به شي
دا شونډې تودے خوږے　　دا د غم صنم قصے
دا کاروان روان روان
ځي به په مخ تېر به شي

# جنتي ته

ته چې جنت کښې مزې د دنيا لټې
د حورو سترګو کښې د ډمو خندا لټې

ته په اسمان کښې ورځې د ديران لټې
ته په سپوږمۍ کښې تيارو له مکان لټې

ته د عاشقو عاشقي او مستي نه پېژنې
ليونۍ نه دلربا پرستي نه پېژنې

تا د دنيا د پاره، مينه د جانان ورکړه
مجنون حلوا کښې، بېخودي د بيابان ورکړه

لاس دې ګرا وږد، بادشاهي لا فقير شوې
يا زما خانان، د ډيا دکوندو زړه و پير شوې

تول خيته خيته شوې مستي او جانان نه پېژنې
تول زېږ زېږ شوې، مرګي او ميدان نه پېژنې

زما اميرو، تالي ختهٔ اتقو که خوږ شوې زما
زما سرداره؛ ته مړو ظيفه خوږ شوې زما

قسم په هغه رب، چه نه ئې د خلوت دعوه ګیر
چه ئې د حورو غلمانو، د جنت دعوه ګیر

تو هم را واخله، خيته هيره کړه ميان ته ئې،
ستی پتی شه، په مستئ، کوه د جانان ته ئې

لنې دو هېرې، په پټی کښې به حلوا کښې يار
جنت دې بابلو، د تېر دو به سودا کښې يار

د دې سی کړانه ده، دلو دې نه کا کا جنتی:
تپ زمرې بنه دې، له څرې مرې زما جنتی:

د سامرې له نړه سبنه ده، ملنګی د موسئ
د زر پرست نه، يار پرست سبنه دې زما جنتی:

قسم د حورو په مستئ، او په خندا د يار
قسم په شرنګ او په نسيم، او مشغولا د يار

قسم په ستر کو په بنا يست، او په ځوانئ د دلبر
قسم په ساز او په سرود، او په ثنا د يار

ته سجدې زرو ته کړې، ما ته نوم د يار اخلې
شغوګنه کړې، په بدل کښې د کل خار اخلې

را څخه زه د ته، جنون او مستی د نبيمه
را څه چه زه د ته، محبوب پرستی د نبيمه

سرداري نه کيږي د توبې د مستۍ نه بغير
الله لېدې نه شي، د حسن پرستۍ نه بغير

سکندري قلندري، دواړه سره د غواړي
دواړه مستي او خوانمردي، خندا غرور غواړي

ته خو جنت کښې مزې د دنيا کوې
بربنډې حورې، او ترسکو نه حلوا کوې

د شاتو نهر او کنډول د شرابو ډک
نمکين غلمان او ښائست د کبابو ډک

ياره چه شونډې نيني (*)، نو حورې به په څه ښکلوم؟
چه کوليې خاورې شي، کور کورې به په څه ځغلوم

# واوره جنتي!

جنت يو حال دې، د عشق د مستۍ يو رنګ
جنت يو شرنګ د لنګرو، د ځوانۍ غور ځنګ

جنت نازک دې، د ګل د ارمان سره
جنت ښايسته دې، زما د جانان سره

جنت دريابيږي، د مينې ارشان دې
هره قطره ئې سپوږمۍ، هر څاڅکې جهان دې

---

(*) نيني، ندري.

# شان او شرنګ

**فلسفي:**

داسوز او ساز　　داشان او شرنګ
یو سوی دوخت　　داخیال او رنګ

دا الم بن کاروان　　دا سحر ما بنام
دا کوټې او شونډې　　اوړې او جام
امید او خندا　　او ژړا او خیام

داګل دا ساز　　داشان دا شرنګ
یو سوی دوخت　　داخیال او رنګ

دا زور دا زر　　دتورو پرق
دعا او ژړا　　او دحورو پرق
دا برق دسرو شونډو　　مغرورو پرق

دا چال او جال　　داخیال او رنګ
ارنګ دورنګ　　سپاړی تهنګ

دا ښکلی کاته　　په نیاز کاته
دا ورو نازک　　په انداز کاته

دالرو کښې تا     دسپوږمۍ دمخ
نرګس کښې پټ پټ     د ایاز کاته

دامینه رنګینه     داشان اوشه رنګ
یوسورے دوخت     دخیال او رنګ

داناچ دلولکو     بهار او ګل
ماښام اوخیام     او ستار او ګل
ګلزار او چغار     او خمار او ګل

داسر اوسرور     اوشان او شه رنګ
یوسورے دوخت     دخیال او رنګ

## شاعر:

نامره: ته سترګے دیا نه وینے
دسترګو سره وینے خمار نه وینے

ته تهنګ او تکور     اوس رود وینے
مستي او جنون     د دلدار نه وینے

داسوز اوساز     داشان اوشه رنګ
یوتار د دلدار     دخمار او رنګ

داښکلې کاته     په نیاز کاته
داورو نازک     په انداز کاته

دالرو کښې تاو    د سپوږمۍ د مخ
نرگس کښې پټ پټ    د اياز کاته

دا مينه رنگينه    دا شان او شرنگ
يو تار د دلدار    دا خمار او رنگ

دا ښکلي کاته    په نياز کاته
دا ورو نازک    په انداز کاته

دا ناچ د لونګو    بهار او گل
گلزار او نسيم    او ستار او گل

سرے شونډے د يار    د سپرلي په شان
ژوندې کړي مستي    او بهار او گل

دا سرور او سرور    او شان او شرنگ
يو تار د دلدار    د خمار او رنگ

سپړ دل د گلاب    او خندا د يار
کاږه کاته    په رضا د يار

انداز د مستۍ    او توول د غم
سرہ گلے او شونډے    زما د يار

دا مست مانام کښې    د ژوند غور خنگ
يو تار د دلدار    او خمار او رنگ

دا اوښ کاروان    دا سحر مابنام
دا کوټې او شوندې    او مے او جام

دا تله په امید    په ایمان او زور
دا تله په مستۍ    پرېواته دخیام

دا ګل او ساز    او شان او شرنګ
یو تار د دلبر    دخمار او رنګ

# ترانه

نه ماسره زر نه مرجان شته دے
نه ماسره شته د لالونو ډېر (۱)
جانانه! جانان د ملنګ سره نه
ملنګ سره وی د سوالونو ډېر

ما ټاله د الئ (۲)، راوړے ده
وطنه! مستۍ او خوانۍ نها
سره وینه توده او زړګے مې نر
نر توب او پښتو او خانۍ زما

زه خان او جهان په دلبر دمه
زه پښتو کښې جانان ته خیګر دمه

---

(۱) ډېرۍ . (۲) دالئ: تحفه، سوغات .

زه مست دا سې مست ننګيالی يمه
فقير ته کچکول کښې خپل سر ږدمه

زه مست او سرشار او مجنون يم | زه هم د ننګيالي د پښتون يم
لوګې شه له تا دا ځواني زما | نر توب او پښتو او خاني زما

زه سر او سر صدقه درکوم
دسترګو د نور صدقه درکوم
زه ژوند او ځواني تالاکومه زن
مستي او غرور صدقه درکوم

ماسره خپل جانان ته ښېلې دی | خمار مې د رحمان ته بنیاږدی
خندا په دلبر لوګې کومه زه | ماهوښ بيابان ته ښېلې دی
زه جوش او جنون لوګې کومه په يار | زه تمک او تکور صدقه درکوم
زه ښېست او مستي ستا په ښنو ږدمه | زه مينه او زور صدقه درکوم

زه ورک ليونی د منصور په شان
ليلی له په تمېک کښې قمر ږدم
زه مست دا سې مست ننګيالی
فقير ته کچکول کښې خپل سر ږدم

خو نه ماسره زر نه مې جانان شته دی | نه ماسره شته دلالونو ډېر
جانانه! جانان د ملنګ نه ته | ملنګ سره وي د سوالونو ډېر

# شاعر او لیلی

## شاعر:

دا ژړونه، ورن او مستي او خندا زما
دا خواني او تازه دې یو دوه ورځې
دا مې سترګو کښې ستا د شونډو رنګ
زور د تور پلو دې یو دوه ورځې

اخر تل به نه یې مغرورتیا ورته یم
چه د کومو تیا دونه راغلی یم
اخر خم به بیا مغرورکی تو له
کو مو کوته چه زه غوځلې یم

دا خواني لکه د سپېلي ماښام
یو لمحه د ساز یو قطره د نور
دا خندا امستانه حیوانه ستا
یو جهان د رنګ یو ذره د نور

ستا د سترګو جانان مستي ورخونه
ستا د شونډو خوږې او مغروري ورخونه
ستا د کوڅې تیږې او غمونه ورخونه
کړیکې د شپې او حوري ورخونه

دا دستر کو ښایست او د شوندو خوند
او دا سوز او ساز او ارمان زما
د نسیم چپه او د گل غوټۍ
او مستانه حیرانه جانان زما

دا یو تلونکی تلونکی کاروان دے
یوه قصه ده چه وشوه او تیره شوه
دا یو ښکلے ښکلے تصویر د خیال
یوه تپه ده چه وشوه او هیره شوه

باقي یو مخه د تیارو جهان
باقي یو مخه، د رڼا وطن
باقي یو مخه، خواني داشان
د خوبونو او د خندا وطن

## لیلیٰ :

یوه لپه ترینه واخله ډک دریاب د مینې بهیږي(۱)
دا ته ولے په ژړا وے، چه پیاله یم دریاب نه یم؛
تول جهان د نوره ډک دی کله: خان د نوره ډک کړه
دا ته ولے په سلګو وے چه سپوږمۍ او آفتاب نه یم

---

(۱) بهیږي.

# اے نایکه!(۱)

اے مالیاره د دے چمن! — اے نایکه د دے جهان!

اے د نرګس او نسیم ربه! — اے سرداره د دے مکان

دا خلیفه او مجنون ستا — ستا د شرابو او خوروخان

دا ستا د کوتو جوړ ګلاب — ستا د چشمانو مخموروشان

تا خو جوړ کړے د مینے له — ګل دے کاته بیابان له

ته خود مینے لیواله وے — تا خو عاشق کاته خان له

تا خو بنبلو او رحم له — ستر ګے بنیسته دلید و کتے

تا خو خمار او خوږ والی له — شونډے د پیړند و کتے

تا خو خپل شان او کمال له — ور کړه موقع د کمال او شان

څکه د دے ستر ګو دیدار له — ور کړه رڼا د هلال په شان

تا خو په لي دلربا کړه جوړ — ستوري سپوږمۍ او سباګړه جوړ

تا خوانی مستی ور کړه — تا خو شیرین او لیلی کړه جوړ

خوږ روند او کوڼ شمکو یمه — ګل او بهار او جانان نه ویم

---

(۱) ماډار ـ خښتن.

زه د غضب او سرو اوږو ډک — درنګ او مستۍ او خمار نه ونیم

تاکړ جهان د خندا نه ډک — ماکړ د شور او غوغا نه ډک

تاکړ سرور او مستۍ له جوړ — ماکړ د غم او ژړا نه ډک

ماکړ د ورونو په وینو رنګ — ماکړ د خوار د آزاره ډک

ماکړ د ظلم او زور وطن — ماکړ د مرګ د غاړو ډک

تاکړ خوانۍ او دلدار له جوړ — تاکړ خندا او خمار له جوړ

تاکړ سپوږمۍ او ستورو له — ماله پسرلی او یار له جوړ

خو ماکړ د وینو او چغو ډک — ماکړ د سوز او ارمانه ډک

تاکړ سرور او مستۍ له جوړ — ماکړ د غم او ژړا نه ډک

اے مالیاره د دے چمن! — اے نایکه د دے جهان!

دا دنیاګۍ دے سنبال کړه — دا دنیاګۍ دے په تلو ده خان!

ګوره! علم او زور دے نخوري — ګوره! هنر او شعور دے خوري

نو دے د آدم آدم خور شولو

وګوره! ورور ته ورور دے خوري



# ژوند

چه خمار مستي ترې وځي — شراب بیا ترخې اوبه وي
چه سرور د غرور نه وي — دا ژوندون د ژوندون دغه وي

چه د مینې زړه شي پاتې — لکه ګل وي رژېدلې
یا شغله یوه د نور وه — یا یو موټې د خزلې

چه په ژوند کښې سختۍ نه وي — لکه بې مالګې طعام
چه په خوله کښې خندا نه وي — لکه ډک د خاورو جام

چه ځواني کښې تکلیف نه وي — لکه پټه میان کښې توره
نه ئې برق شي نه ئې شرنګ شي — په زنګونو شي نخوره

چه آرام وي او سامان وي — او یا ئې په جایداد وي
خوبانو م شیرینۍ وي — مرته وي پرو فرهاد وي

چه ئې سر په خندا د وشي — هله خوږ د راز و نیاز شي
چه د سپینو تورو جنګ شي — ننګیالی هلته کښې ایاز شي

ژوند که تش میړني تخل وي — دا خو بې همت شي ځلې
که تش نسل زیاتول وي — دا غوئی هم شي کولې

ژوند نه خېټه نه ماڼۍ دی      نه ډېرۍ د سرو لالونو

نه یاران نه معشوقې دی      نه باغونه نه کلونه

ژوند خو تله دی په یو مخه

غورځېدل او پاڅېدل دی

ټکې سوز او ټکې ساز دے

څه خندل دی څه ژړل دی

ژوند په سترګو د عاشق کښې

پلوشه ده د خمار

په صحرا کښې لټول دی

د آشنا د کوڅې لار

حیدرآباد جیل
۱۱/۹/۱۹۴۷ ع



# غزل

مینه مینه مې کوله خبر نه وم
چې د ورځې مازیګر او ماښام مې شته

لکه زرګه د سپرلي وم په چړ چڼو
خبر نه وم د ښکارۍ سره دام مې شته

دنیا زېبنې بنا پېرۍ په بستر پروت وم
خبر نه وم چې رقیب مې په بام مې شته

د ساقي په سخاوت باندې مدهوش وم
خبر نه وم تشنیدې د جام مې شته

سپینه شمع د محفل په خندا وائی
د رڼا سره د سولو سمام مې شته

دا ویل لیوني ډک د رباب له لاره
آ ورو بل چېرته یو ښکلی مقام مې شته

خو وخو چې د ملا دروغ معلوم کړو
دی وئی هلته مستی انتظام مې شته

حیدرآباد جیل سند

# عبادت

د ملا عبادت کسب — پا خیدل او کیناستل

د حلوا په ارمانو نو — تـــل الله الله کول

د ملا مینه عجیبه — په پیتی مینیدل

او د حور و لمغــرو ته — د خـــر چو کو منیدل

د صوفی عبادت ویرد ے — سو خُیدل او ژړیدل

د رحمن رحیم د نوم نه — رپیدل او ویریدل

د صوفی مینه عجبه — د زړه کل مراو ے کول

بے کنار دریاب د حسن — په کوزه کښے بندول

د زاهد عبادت چر ے — سوال منت ژړا کول

په جنت او د ے دنیا کښے — د فاید ے سودا کول

د زاهد مینه عجبه — په خپل ځان مینیدل

د دریا سپی جو ته کړ ے — دلو بالہ دړکول

د غنی عبادت مینه — ځان جانان کښے دړکول

د مهینو سترګو شړنګ ته — ګډیدل او خندیدل

د غنی مینه عجبه — تول بیلات (*) هیڅ نه ګڼل

د خپل ځان او د جهان واړه — یو خمار کښے ډوبول

(*) بیلات ، باطل.

# دا ایلم توتیان

| | |
|---|---|
| چا بند کړی دی پنجرو کښې | دا ایلم[1] د سر توتیان |



| | |
|---|---|
| چا عقاب په لاس کېنولے | د مرز هسې چغولے |
| چا منصور په سر او سپینو | او خوږ و باند ے غلولے |
| چا قسمت په زور تړلے | د کوډئ هسې لوبولے |
| نن د کومے بادشاهان دی | سکندر او شاه جهان |
| څوک ځیولے[2] شی کوم کښې | سمندر بے پایان |
| سیلاب چا دے منع کړے | په بندونو د شنو شګو |
| د قسمت په کور کښې نشته | شمیر د ډیرو او دلږو |
| بادشاهی لښکرے ارے | تل د وږو او د تږو |
| فقیری چه فقیری وی | بادشاهی ترے شی قربان |
| چا بند کړے دے پنجرو کښې | دا ایلم د سر توتیان |
| چا سرور په لاس کېنولے | څوک مستی شی سو څولے ؟ |

---

(۱) ایلم : د سوات په سیمو کی یو هسک غر دی . (۲) ځیرولے : څاپولی .

د بهار ولولې څوک شي — څوک د پښو لاندې کولې ؟
ګلکونه ژوندي مړه کړي — ژوند څوک نه شي مړ کولې
چا د بوټين منع کړې — خندن ګلونه د ريحان ؟
چا بند کړي دي پنجره کښې — دايلم د سر توتيان
بلبل ناست بندي پنجره کښې — د سپرلي خوبونه وينې
په شبنم زيړ ميدانونه — د نرګس ګلونه وينې
سره ګلاب مست او خندان دي — د لولو پړونه وينې
ولي (۱) ريبارته راشه تو — دا پيغام د غني خان
څوک اچولې شي کوزه کښې — سمندر بې پايان ؟

## سزا او جزا

هيڅ په پته دې پوه نه شو — د سزا او د جزا
تا ته يو دې لويه خدايه! — هم خندا او ژړا
څوک بېنسته خوالي کړي خوارې — په يو خيال باندې مين شي
څوک غمونه وينې وڅښي — چه په مال باندې مين شي
څوک غوټه په رنګ او تال کښې — په يو خال باندې مين شي
څوک مدهوش په حق او نور — په هلال باندې مين شي

---

(۱) وائي .

اخو؛ ستاسپوږمۍ هرچاته خاندی    که ږمری وی که بلا

هیڅ به پته دے پوه نه شُو    د سزا او د جزا

څوک په پښو ستر کو د وب شی    سمندر کښے دغرور

څوک په تخت لکه فرعون    ناست ئی خاندی په سرور

څوک په ځنګله پروت ملنګ دی    یاد وی قیصے دطور

څوک په وینه مور خندانه    څوک په مینه کښے رنځور

رو ند قسمت ئی ذرته نه کړی    د فرعون او د موسیٰ

هیڅ به پته دی پوه نه شُو    د سزا او د جزا

عجیبه ده فرق نشته    د غرور او د نیاز

عجیبه ده بیلتون نشته    د یزید او د ایاز

عجیبه ده انعام یو دی    د تپوس او د شهباز

تا ته واړه چغے یو دی    که د ویر وی که د ساز

تا ته یو دی لویه خدایه!    هم خندا او هم ژړا

هیڅ به پته دے پوه نه شُو    د سزا او د جزا

یو خوا سره ستر کے شاهین    په ځنګل کښے پروت ژړیږی

بلخوا زیړ سترکے شغال    په ځنګلو کښے لوغړیږی

یو خوا ننګ مینه او توره    ورودر سره وخاور کیږی

بلخوا چل د موکه د دروغ    را خوریږی زرغونیږی

آستا غښتې لا په څه شوې؟ — د قسمت او د سزا

ماته یو دې لو یه خدایه؟ — هم خندا او هم ژړا

# ماتم

ذلخونه وې غم له جوړې — ستا د استرګې د غم ډکې

چاتې بړبړه اړئې — د افسوس او ماتم ډکې

په ژړا بانګ چانه دی، سره مانئ آباد کړې

په شېړو بانګ چانه دی، مړ پېړئ آزاد کړې

د استا کوتې د پولا دو — تش دعا زارئ له نه دی

د استا مېتې د مړ اسئے — جوړې دې خوارئ لمنه دي

د استا زور پښتو او توږه، ستا د سر وېښتې غوړ خنک

چه د ا ښکلی سر دې تېت شي څو آئينکا ری وير بد رنګ

پاڅه پاڅه چچه وکړه — ستا د سر وېښتې غوړ خنک

ته آفت ئے ته غضب ئے — د سور تېل يو ګوزار ے

ستا دالاس د قسمت لاس دے، ورانول جوړول دی کا

ستا په سترګو کښې اجل دے، ورکول سوځول دوی کا

د فرعون د کور په شان ئے — د احصار خا دړ ایرے کړه

د امغرور سر تس نس کړه — د اغرور ذرے ذرے کړه

پاغه وښيه دنياته د پښتون د څو ننګ
پاغه واړه شغال ته، د ويستلو تو ړ شړنګ

# پلوشه

زوړ شومه زوړ شومه   مسلمان نه شومه
ارماني ډير شومه
خو پښيمان نه شومه

# شاعري

د سکر تو بيخ مِ وښکه   سر مِ خوږ که په کړ ولو
ډير مسره وېنهٔ مِ را ياد کړه   يو هم نهٔ دی د ياد ولو
نه ټپه شوه نه چاربيته   نه غزل نه نيمکۍ شوه
نه قصه شوه نه بدله   نه ساقي شو نه کوکۍ شوه
شاعري هم يارانه ده   نه په زور نه په زارۍ شي
نه په چل نه په هنر شي   نه په مال نه په خوارۍ شي
شاعري لکه باران دے   کله تند اکړ زهر شي
ناګهانه داسے شړق شي   چه صحرا م سمندر شي
کله نرم نرم پشم   پوست نازک نازک ښينين

د نسیم په شان مستانه
د مخمل مسے مهین
کله سبه دبه شیبه شی
په اوږده صحرا دربنږی
کله تور باران د ژمی
نه کمیږی نه ودریږی
کله شر د پشکال شی
چرته لمر چرته باران
عجیبه لکه د ژوند
خه خفه او خه خندان
کله داسے سو کړه راشی
باغ چمن شی کربلا
لا د خار رو وتی نه وی
چه بیا خاورے شی لالا
کاش چه وی زما په لاس کښے
د وږمے غوفر بښتے
ما به هر وخت بنکلے بنکلے
سپینے لږے راوستے

هره شپه به م جوړولو | په قبله د بوډۍ تپال
---|---
هره ورځ به م ستایلو | د اشنا د زنے خال
ولے څه وکړم جانانه | واک د بل اختیار د بل دے
دا به تا مینے سترګے | د دوی نور خمار د بل دے
دا چه ته پرے راته خاندے | د دے سرے شونډے دے جار شم
د دوی ښیست مستی د بل ده | د دوی سر سینګار د بل دے
(اوبس:) دا دومره وکړم بس دے | چه زه ویم درته غزلے
ته ښیسته یه په پښتو ست زګو | راته ګورے غلے غلے
چه سات ګړۍ مشغول شو | بیا به څو زما بلبلے:

مونږ له تور اوږد د وشپه ده

دی د ما داد یوے بلے

حیدرآباد جیل

۴۔ستمبر ۱۹۳۹ع

# ټک

ماله قصده د دروغو تاته وخوړه قسم

بے وفا ژبے م هسے تاته وے صنم صنم

ستا معصومو سترګو وکړه په تکنی باندے اثار

لکه ونیسی ماشوم چه په خندا خندا بناما

ما چې ستا په سرو لبانو قسم وخوړه ما بنام
د شرابو په نامه مې درکړ دک د خاورو جام

ستا معصومو سترګو نه د لباسي سترګے ليدلے
ځکه زړه پکښے روښانه شو د مينے ډيوے بلے

زه وم غل د دوو څاڅکو تا د حسن درياب راکړو
ما په چل چړنګ د کولو تا د مينے سيلاب راکړو

تا د چل ايمان په زور زه کافر کړم مسلمان
زما زړه کښے دے کړل خاورے د ټکي مه بوتان

ستا د شونډو غلا له لاړ وم خپل ځيګر مې پکښے بايله
د خوارۍ اوښکۍ جمع تول دفتر مې پکښے بايله

جام مې وړے وو کوټ له ډوب درياب کښے د سرور شوم
د منصور پېښو له لاړ وم ليونے شوم زه منصور شوم

ليونے مے زړګی یووړ، ناز نينو، مو سکو شونډو
غلا له ته په ډاکه واوريد زړه نے وچاوډ په منډه



حيدرآباد جيل
۱۲ ستمبر ۱۹۴۸ ع

## ګډ وډ

یاد مې باندې ګډ وډ دې / خیال پخوم پلاو
ځان له سیخکي وریتوم / د زړه د اور په تاو
ناست لکه منزرکۍ یم / جیلخانه کښې په دې ساو
څوک به ترې خدایه! / د قسمت د پېښو میاو
خلاص کړي نه په چل شو / لیونې او نه په داو
ګډ نې په ګلزار کړ / نصیب بې موسمه لاو (۱)
ګوره کشمیرۍ ته / په پښتو ګوري دباو
ګال چې شي کوني، بغ
هم مرغۍ وني (۲) د تلاو

## پلوشه

کعبه جوړه ابراهیم کړه
دا یې څوک لوی شو او چت شو؟
زه جوړ کړې یم الله
وایه وایه اې ملا!



(۱) لو. (۲) ورمې.

# لکه واخلې چه ماشوم

لکه واخلې چه ماشوم ‏ ‏ ‏ ‏ ډک شکرے د سرو ګلونو
خاندي چغې وُهي غرزني ئے ‏ ‏ ‏ ‏ پسے پسے په موجونو
دے په غاړه وړته خاندي ‏ ‏ ‏ ‏ خو سیلاب ئے ګلاب یوسي
نه په زور د سیلاب پوهیږي ‏ ‏ ‏ ‏ نه په قدر د ګلونو
داسے ما دا خپل جمدون[1] ‏ ‏ ‏ ‏ د مستے سیلاب ګنې لاهو که
په خپل لاس م ځان بندي که ‏ ‏ ‏ ‏ د څو قسمه دوزخونو
لکه واخلې چه ماشوم ‏ ‏ ‏ ‏ ډک تالے د سرو او سپینو
په خندا خندا ئے نولي[*] ‏ ‏ ‏ ‏ په کوڅو په بازارونو
غله والی واه واه د نر زویه ‏ ‏ ‏ ‏ څه سخي ارسلا خان ئے
دے نه زور د دولت وینی ‏ ‏ ‏ ‏ نه دړد ونه د غمونو
داسے ما دا خپل جمدون ‏ ‏ ‏ ‏ ړک[2] که خاورے که ایرے که
ځان م وتړه په خپله ‏ ‏ ‏ ‏ د غضب په زنځیرونو

---

(۱) جمدون = ژوندون. (۲) ړک = ورک. (*) نولي = لوټي = شینډي.

یادا ژوند بیللی جنګ دی

او زه په پهلوان نه یم

ماخو هیڅوک هم اُو نه لید

چه زوره ور شو په غمونو

زه لا ویښ نه وم د خوبه — چه زیړی ماز یګری شو

چه ئې زه په قدر پوئې شوم — ګلزار تش وو د ګلونو

اوس نه رنګ شته نه مستی شته — نه سیلاب شته نه ګلونه

دیو خوب لیده وو تیر شو — ژوند شو ډک دارمانونو

باغ د ګلوم تالا شو — دا لالونو شکورم تش شو

دالا واوره ملاجان — کی(*) تنګ تنګ د حسابونو

وخت او ژوند د غم تقدیر دی

دیو اوږدی بل له بوتلم

داجه د وُن وو که یو دا م دو

داورونو د غمونو



(*) کی: کوی.



# تقسیم

ښوک لیوني شي — ښوک لیونتوب شي
ښوک شي په خوب ویده — ښوک رنګین خوب شي
ښوک احرام وتړي — مخ په قبله شي
ښوک جلال واغوندي — پاکه کعبه شي
ښوک مست بورا شي — مسته لولۍ شي
ښوک رنګینه نیازبینه — دَ ګل غوتۍ شي
ښوک یو دَ درد تصویر — دغم قصه شي
ښوک ے په مینه مینه — په ننداره شي
یوښو ساعته د رنګ — دَ خنداتیر شي

اخر تیاره راشي
او واره هیر شي

# بیا

قسمت مِ روند جولا دے ناست کړُے (۱)، ته په آرام
دَ منو بلو عجبه تنسته بُـدٔ روانــه

دوخت ملګو چلیږی زر سپنهی (۲)، بِشّی تمام
خبر نه یم داخه له او داخه جوړیُ زمــا نه

زهٔ کړ خُمه چاپیرهٔ تپوسونه کــوم مدام
دګل نه، د ساقی نه، د کتاب نه د ملا نه

داخه له دے جوړ شوے دومرهٔ او وِز دانتظام
داخه وی چه ژوند راوړی او مرګ یوسی دُ دنیا نه

دا ځکه هسے رفتار دے که لړی چرته مقام
تیارونه دا راغلے لاړ تیارو ته ده روانــه

اوهٔ! هغه دِ ولاړ دے په کلونو کښ خیام
ولیُ (۳) ژوند خاورے ایر دے دمینے او جانانه

---

(۱) د جولا د او بدلو دستګاه.

(۲) سپنهی. (۳) ولیُ: وائي.

دے درد لړلی ژوندکښ بےخودی کښے دَ آرام

د ظلم په دے اورکښ یو ساقی دے مهربانه

دا مست بے خوده سړے، نشه ځوانی او دِلاړام

راواخله په شکرونو ئے قبول که غنی خانه

خو هغه دے جمات کښ اوچت بانګ آوړے امام

وئ دا دنیا بلا ده تښتئه تښتئه دَ بلائنه

ساقی دتۀ ډک کړے دے د سور انګاړ جام

دا سرے شونډے ئے اوږدے دَ دوزخ په لاړ روانه

دا ژوند د دنیا څه دے، لوبے توقے مسخرے دی

جنت کښ شرابونه، سپین غلمان حورے مستانه

سقراط وکړه آوازونے دَ دے تولو دے سرسام

هیڅ تۀ رښا نشته بے د عقل دَ جهانه

په پوهه او په فکر کښ دے حُسن هم آرام

دا نور دے د رب نُور د آدم خاوره کښ پټ بنانه

داخره دی نه پوهیږی وائی وهم ته الهام

منطق او فلسفه ده چه پے ګرانه شی آسانه

راځه روح له دِ هم ما پوره کړے انتظام

که بُت وی او که ربَ څه بره آمنه دَ ځانه

ښو چاړه چاپیره شور هر خوا ولاړ وَ یوا ملم
هر یو وے زه په سمه یم دا نوردي تول په ورانه
یو یو ته ور نژدے شوم منبه مِ ولتول تمام
یو هم نه کړم آزاد دَ ښخُیرونو دَ سودانه
مستي مِ کته دا سے چه نه مے غواړي نه جام
هغوئ ډیر و وډک، کونکا مرے جوړوُ زمانه
جانان مِ کته دا سے چه مِ هوش واخلي تمام
هر ساز مِ دمستیُ نه همه سوز مِ دَ ژړانه
دلبر مِ کته دا سے چه وي تل روښان په بام
یو کل د رڼا جوړ، خبر دَ مینے او ارمانه
یوازے تر ے روان شوم زړګي کښ مِ ماښام
نصیب نه کیله مند، په هوش جمدون بانګے ستومانه
ورغلے مِ په ولي باندے لاس کیښو دخیام (۱)
وے په دے کوځ کښ څه تلے راغلے یم دپخوانه
دخاورو ده آدم آخر دخاورے دے مقام
هیڅ دا سے علم نشته چه ژوند خلاص کړي دَ خزانه
دوخت هره لمحه ده هم شروع او هم انجام
د ژوند راز و نه مرګ کښ دي پټ شوي دا انسانه

(۱) عمرخیام (۴۴۰-۴۴۱-۵۱۵ یا ۵۳۰ ه ق)

نه ئې سرښته نه لګئ یو دایره ده خُله دجام
رښا دتیاره ئې تاو ده او تیاره تاو دَ سرښانه
په خود کښې درد دے، او ردَ، بے خودئ کښې دَ آرام
دے درد لرلي ژوندکښې یو ساقي دے مهربانه
دامست مستانه سر، نشته خواني او دِل آرام
دَ دې به زیات څه درکړي، او زیات څه غوارې دَ چانه
چاپیره خیشت اور رنګ تش دکتلو په انعام
په هرمتي دخاورے کښې زرګونه ګلستانه
یو څاڅکي کښې ژوند، دَعقل، پوهے، کل سمام
زګونه دنیا بڼ او دَ بابانه
دَ قال او سار او شرنګ او غورزنګ بے میوخام
دا ښکلے لیو نتوب دبے وجوده شان هوانه
دداسے هنرمند هنرله نشته دے تمام
قسم دَجهانونه شته بنایسته دَ دَجهانه
دنیش نه راروان شو شے شو دِ دا رنګین مقام
چه هرچرته دِبیائی زه، ورځه وراله خندانه
او پرین ده جولاګے خپلے کړے ئے نه په آرام
جوړئ دے، چه کم شے وی که وی ګرانه که ارزانه

او چه دا قوته پوره شي، دا پښتنې[٭] شي تمام

نو خه به خندا ياره دکه ئې نه دَ جولانه

چه تش يو ياد او هوش شي لکه بوی باغ کښې بانام

آزاد شي دَ دې توروزنځيرونو د دُنيانه

بيا بل جهان، او نوے هوش، او نوے مستخار

او بل قسمه سرود نورو پردو کښې دستار



(٭) پښتې : سپينې

# لیلهٔ

| | |
|---|---|
| دکاڼه خوله کړه | ژبه دمارکړه |
| دَچرګی عقل کړه | زړه دسیاڼه کړه |
| مرنے دسپی کړه | چه بنه غیاڼه که |
| ضد دکچر کړه | غرور پرے بارکړه |
| ختنه دکلی | دیران د ښارکړه |
| بیاچوته روند | کولال یو یارکړه |

تاله به نوے

لیدړ تیارکړه



# څوکه

لړے لړے په وږمو کښې يو سپين څوکه ښکاري
خو په لاړه کښې دي غږونه او ډېر دي غمونو
غلے غلے مې رګونو کښې يو ښکلے آواز دې
پکښې تور سوري سازونه، زيړې پاڼې د ګلونو
رو رو پټ پټ مې ځيګر کښې يو ګمين ستا غږيږي
عجب ساز د خاموشۍ دے ليونے کړم سُرونو
او ماته ډيره لويه لاره، دا ازغو د تيارو پاتے
خو چې دغه څوکه وينم او د مې بل شي په رګونو
دک د ګلو کور مې ګور شي، مې ګلاب راته پيغور شي
همه خيشت(*) د ژوندګړي پسے تورے لړے د غمونو
زړه مې وئ چې پاڅه پاڅه غني خان پسے ملنګ که
دغه څوکه کښې پټ پروت دے ستا مطلب د مطلبونو

(*) خيشت: بنايست.

# وخت

تکنه غرمه د لیونو د کـرزېدو دے وخت
لړه، تر مکئ (*) د یاره دسـترګو د لېدو دے وخت

زیړه مازیګرے د ژوند غمګینه شان نشه لری
توره شپه ژمی د اوررولو او ورېدو دے وخت

هغه ده سپوږمئ د نوښو کوکښ مسکئ شوله
پاخـیږه لالیه! اوس د باغ د ګرځېدو دے وخت

لاړه ساقی بوده ماشو، خیام هـم د بزمه پریوتو
اے د مستئ جامه دغه ستا د ماتېدو دے وخت

مه ګوره آینه کښ لیلے هسے به د وژړېږې (۲)
لاړه چه ځوانی شی بیا مه وخت د ژړېدو دے وخت

(*) مرمکی: تورېږمئ. (۲) وژړېږې: وژړېږې.

مرګ به ما متین شو ، اوس ئې هر وخت سلام راځي

وي مخ که یاره ماته اوس نه هو نه د لیدو دے وخت

مګر صبر اوکړه لږ شان اور دې به وجود کښې شته

دېر مې دې سوزولي اوس نه ما ته د سوزیدو دے وخت

هغه سې مې ساز لیوني ، مست نظر مستولے شي

وینه کښې مې اور دمې دول د کېدو دے وخت

سوز او ساز چه لا نه شي ، تشخاوره شم نو راشه یاره!

دړه به شم سینې له دغه وخت د ړه کیدو دے وخت



# وائي مُلاجان

وائي ملاجان چه په جنت کښې حورې پلې دي
غټې غټې. سپينې سپينې. مستې او بربنډې دي

کوره تمباتې چه خُانه د لاړو ډکه شوه
ښا نګکو(۱) کښې د حورو تې. الحمد قامو، که هو شوه

کوره د آشنا په بيړ لاړې رارواني شوې
تول شهوت شهوت. سم ورته ښځې شوې

دا وجود د خاورې. دے نه پاتې جنت کښې
دا د خاورې ګل مستوي د خاورې په کاڼو کښې

خاوره به شي خاوره به احساس او ياد به پاتې نشي
ساز سوړ به لاړ شي خوښې تښې ياد به پاتې نشي

زه به حورې څه کړم چه غېږ کښې کېنوې نشم
غټو مستو سترګو ته به سرو سترګو کتې نشم

---

(۱) ورنوکي.

او دا وجود که بیا شی جوړ شهوت خوړے شراب وی
مست مست هلکان چه به هم بنګلو هم خراب وی
کوره ملاګے ته دے چه لس نُوے د ړله ګیره کړی
ته به ورله کورے او هغه به د ړله تیره کړی
او لو نه دے راونیسی. لا مور د ړله په مخه کړی
نو له خیلخانه به د ړله ګرمه کړی اوګخه کړی
دغه که جنت وی ملا رَبّ دِ ور له بوځه زر
دغه د له توب نه زما زړه خله دے غوبه سقر
یا خو وجود نه لری یو مست او رنګین خوب دے
حُورے او غلمان د مینے خیشت او لیونتوب دے
یا دا ته چه وے که دا رښتیا ستا په کتاب کښے وی
نو ل غلمان به مړه وی پښتانه به په عذاب کښے وی
تا لا ملا جانه رَبّ دِ د ړکړی جنتونه ډیر
اوس پوه شوم چه ولے دا او ړه ډکوے مغځونه ډیر
زه به سوړ دوزخ له خپل غیرت او غرور یوسمه
ځان سره به خپله حیا. خیشت او سرور یوسمه
او ودی که عذاب وی تیروم به ئے لکه خان
نه همسایه لا اس شره دَ ښځے نه غلمان



# پلوشه

ژوند او سازوارے د باد دی

ژوند هغه بویه چه سازوی

ساز هغه چه ساپکښې وی

ساه هغه چه د نیازوی

# نرس

د دردمند خوار خدمت
خدمت نه د عبادت دے

لکه مور، رحم او مینه
د حوا اصلی فطرت دے

دا د مرګ سره جګړے
دا نرتوب او شجاعت دے

دا د درد په اور کښں مرهم
او تیارو کښں سپین مشال

هر ژوندون د ښځے نه دے
هم ئے خیشت او هم کمال

که دنیا ورته سپک ګوری
دنیا خوک دی پیژندلی

د شکورو خبرو کانده
هر یو لال ئے خاورے کړے

لور د خیشت او مور د ژوند
دے له رب پیدا احوا کړه

دا خو مونږه شاعرانو
یا ساقی یا دلربا کړه

د مغرب قحبه تهذیب دا
یو مسته شان بلا کړه

نه ئے مور کړه نه ئے خور کړه
نے د دین نے د دنیا کړه

د حوا اصلی مقام
رحم مینه او خدمت دے
دا د مرګ سره جګړے
خدمت نه د عبادت دے





A .S.K B

# شپه وه د سپرلي

شپه وه د سپرلي ژوندۍ پېدلو په ګلونو کښې
ټول جهان روښانه ؤ، وه تيارۀ زما خيالونو کښې
او منګلي د سپوږمۍ رڼا د مينې د آواز په شان
روح ئې د ژوندون نيوه د حُسن په دامونو کښې
څه دَ ولې ولې په درياب کښې روک لاهو ؤمه
ډوب په بې حسابه لاجوابه تپوسونو کښې
ما وې ژوندون څه دے، يو جنجال چه معنٰی نه لري
بے مطلبه ډېر لړلے اور کښې او غمونو کښې
کوز شومه چمن ته د لښتي غاړے ته لاړمه
څاڅکي له دَ جونډم کته کوره چَله سينونو کښې
حُسن باغ کښې او خندل د هر سوال ئې جواب وؤ
ژوند شو لکه ناوے د اميد په سرو ګلونو کښې
هغه سرے غُټے چه قسمت کښې ئے سپېر دل نه وُ
غُټے شوے سوې د بادلاهے خورے شوے په بادونو کښې

کړې ذکې چغه کړه چه ژوند د روند دیوه نه ډ
نه د غم قصه بندی داور په زنځیرونوکښ

حسن دې بس حسن چه هم خدای او هم جانان دې
د فانی مکان کښې بل مثال د لامکان دې

یو د کلابُ غ کښې چه ښکاره کوم جواب نه دی
نشته یو هم نشته د منطق په کتابونوکښ

مینه چه تالا شی یو امید شی یو ارمان شی تول
حسن په خلاشی تورو لړو د غمونوکښ

ژوند او درد او غم همه کړی شی د زنځیر د نور
مرګ او قسمت ډوب شی په دریاب د خمارونوکښ

وخت بابا د تال دې. بے پایانه سمندر نه دے
تال د ساز ژوندون دې. چه کډ یږی په سرونوکښ



# کیمیاګر

راته ښکاري جوړ پاسته  
په آسمان کښې کیمیاګر دے

کله سره زر کاڼي خاورې  
کله خاورې زر کوي

ډیر کلونه ئے راغونډ کړل  
د جانان شونډې ئے کړې جوړې

چه د ګلابو خاورې  
په کوم کال ګجر کوي

د تقوے زر شپے کړي جمع  
د عشق یو ساعت ترے جوړ کړي  
خه به ناز غني ته خانانګي  
چه دلبر دلبر کوي

# د بوډۍ تال

دا کم جانان له بابۍ جوړ ښکلې تال کښ
رڼا بندي کړې خنګه دړنګ په جال کښ

دا څه لجوړ که چا. دَ څه تصویر دے دا
خوب دے یو خوب دے دا. که ئے تعبیر دے دا

که د جنت ورچا لمحے له لرے که
که د وصال ارمان دَ چا د لمحیر دے دا

که مخ زما د خوانئ، ارمان او خیال کښ
که امید ونه خاندی، مخ دَ جمال کښ

ښکلې دهوکه دَ نظر وه، په آسمان کښ سراب
که دَ کتاب دَ جمد وان. دیوه رنګین غونډ باب

دریاب دړنګ، که ثبوت، چه رب مئین دِ په خښت
ښه صحرا کښ روان، یو دَ نورو نور، دریاب

که رنګ د یار د ستړګو، د وبے په خیال کښ
که د جانان مسکے شو، خوب د وصال کښ
تڅرنے تلے بلہ بے باغ ته ماښام کښ
خکلی خیالے او شکے ګلاب د غم په جام کښ
په مړاؤ مړاؤ ستړګو، وائی نصیب ته تلی وو
ولے کړے خیشت پیدا، ولے تمام کښ
ناوے خزان، خزان، د سپرلی شال کښ
رنګ او رنا بندیوان د وخت په جال کښ
زۀ یم دیر ستړے بلہ نے دیر د جهانه ستړے
د خوشحالو سکین، او د خفګانه ستړے
داسے سفر خدایا. نه نے پړاو نه دمه
داهوش په بیرته واخله یمه د خ . ستړے
بس تش خزان او خزان د ګل په خیال کښ
یو سور عقاب کیر پروت د غم په جال کښ
ومه یو څاځکے د رنګ، شومه نه ګل نه تصویر
لمحه خمار د ورک شو. نشو د ستړګو اسیر
یو ساز چه دام کښ د سُر، د چار رباب او نه نیو
یو خوب چه خوب پاتے شو، ژوندے او نه که تعبیر

یو لال بندی به سینې دکوتې لال کښې
یو بې قراره څاڅکې . سیند دکمال کښې
ما هم لږ پرېږ ده بوډې، دې خپل جهان ته
ستا د رنګونو ، خندا ، رڼا ګلستان ته
زه به یو څاڅکې دَ رنګ ستا دَ دریابونو کښې شم
اور دَ آدم به وښیم . زور دَ آسمان ته
پټ م که، پټ م که، لږ . د رڼا شال کښې
یوه تمَا لِئے راکه . دَ بودے تال کښې



# ساز

زه یو مست شان لیونتوب یم — د هوا په اَس سورېږم
که یو رنګ د یار د سترګو — شل رنګونه شم ګډېږم
دا زه څه له وے جوړ شوم — خبر نه یم نه پوهېږم
وے سوز شم، وے ساز شم — یو آواز یم چه غوږېږم
دَ زړه پېتو تارخانو ته — یو شغله یم چه کوزېږم
یو سُرور یم چه شرنګېږم — یو خمار یم چه مستېږم
چه په رګ رګ کښ دِ اور شم — یو لمبه یم چه رپېږم
دا زه نور یے چه پرقېږم — که سُرور یم چه سوزېږم
حقیقت م نشته باد یم — مستول کوم هم مستېږم
په خندا کښ م ژړا ده — په خفه سترګو خندېږم
وایا وایا لیونیه! — وے ژاړے چه ژړېږم
او چه پرق د اتڼ ولچوم — ستا په وینه کښ ګډېږم
دا زه تش د خیال دهوکه یم — که یو خیشت یم چه خوږېږم
که یو مست د باد نیلے یم — په فکرونو کښ خُغلېږم
که تال او شرنګ نه جوړه — یو دُعا یم چه قبلېږم

# ناوې

اُف دنیا کې پلیتې ـــ ګنده د ګنده وبوتې
نه یو لمبه نه د اور ـــ درکښې غیرت سوزېږي
سرتوب، علم، پښتو ـــ دوب او نازک خیالونه
ددې نه ښه خو چنده ـــ حرام حلال مالونه
بال بچي او دین او ایمان ـــ په مال او ښیارو ورکوي
د سرو بدل کښې والله ـــ جانان دلدار ورکوي
لوړ خاندان ښه خصلت ـــ دا هیڅ قیمت نه لري
خیشته صورت د ګلاب ـــ چه حبیبې تش کې څه وي
دلوړ د خوښې تپوس ـــ وئي دا سپک کار دې
یو سپي ته ناوې ورکي ـــ خو سپې مالدار دې
د مه غریبه سپۍ ده ـــ چه په ښکاره چلیږي
دلته زرکونه دي ـــ په سرو دولو کښې پټې
په منګه مال او دولت ـــ ښه په عزت ورکیږي
که په یو نوټ لاړه ـــ د مه ده د مه ده
د زرجریبو خرڅه ـــ ترې په خه کمه ده
دا نه تیر باسې څوک ـــ په د سرو بریتو خان !

ماله دهوکه راکوے — که دهوکه کئے دخان ؟

مُلا دغت پیتکی — او دببرے بژیرے

کڅ معربے غُتے — دَغوږ تالوخبرے

خان او جهان دَیار — څه تماشه جوړه کړی

جات مُلا سپین بږیری — قصه دږنه جوړه کړی

لکه غوا خرخه لیلیٰ — په شرنګا شرنګ ورکوی

دے دَله توب له بریتو — دپښتو رنګ ورکوی

بیالاړشی کټ کښی دکور — نوتوته او شماری

که زر پردو کښی پټ شی — دَله منګاره بنکاری

او دګلاب هسے لور — که دَسپی کوږ له لاره

خیرے دچه ته مورشوے — که هغه خور له لاړه

اے مصوره دَخیشت — اے دخوائے الله

اورے سلګئ دَناوے — پټه برستن کښی ژړا

که وی خنزیرسره مال — ګل او جانان به اخلی

ستا شهیان فقیران — تش بیابان به اخلی

دا دله ګان شومونږه — که ستا قانون دے دا

دا زه چه ویم(*) پښتو ده — او که جنون دے دا

اے مصوره دَخیشت

اے دخوائے خدایا!

(*) ویم : وایم

# اسپتال

مستا دجهان کښې خدایا!
یو سور غضب دې خواری

مړیو په زړو دې خښ — دَ دوی رسول سامري
کړوی دچا موټر — دړنه لړنه لویې او ننګلې
دَ صغه پلاړ نیکه هم — شي ستانه سبه کمپلې
پورته به پوزه کړې دې — دک دغرور شاخیلې
داغل لومبړه به غاړي — زمرې به ناست دې غلې

زړونه زور شو جوړ
شو ستا دملک بادشاه
که ئې وی دغه رفتار
ورانه دِ والـه(*) دنیا

یا ئې که سمه جوړه — او یا ئې ورانه کړه
یا دِ داخپل عاشقان — ورک دَ دُنیا نه کړه
دَ دوی یوه سودا ده — زمونږه نوړ غمونه

---

(*) واله: واخله.

## خوښ د او ښیاروی مال

### دَ لیونو ـــکلونه

ستا جمال تونوکښ نن     دَ زړو سخي (*) دي ولاړ

په ممبرونو ورته     خرمن شوي سپي دي ولاړ

ستا په نامه مولا     بل ته سجدے کوی

تا ته ئے لاس نیولے     بل ته اسرے کوی

ستا عاشقان مولا     اور کښ تړلی دی تول

ستا غریبان بادشاه     په ژوندون مړی دی تول

دغه دُعا قبوله م کے جانانه

یا ئے که سمه جوړه او یا ئے وړانه که



---

(*) سخي: خوسی .

# شهید ډاکټر صاحب

(*) (د مرګ په اوم کال)

د بهرام بابا چیه ستا په وینه کښې غرقتوب وُ
په ښېګړ کښې د قام وینه یوسوړ او دیولیونتوب و
واچه پې تا لوګې کړه د پښتون د غیرت خوب و
هم بابا وې هم اشنا وې عجیبه دې سړیتوب و
زر خلقي به تر قربان کړه دامست دِ بابا توب و
پاک زړګې دِ د ماشوم و تا لړنه د ې تله چلونه
ننګ، پښتو، توره، غیرت وو کاکا ستا د باغ ګلونه
د هجا بله به پښل تا، زړه دې باب دِ د رحمت و
په سوړ او ړکښې به خندل تا، دومره مست دِ شجاعت و
بادشاهي او ملنګي کښې، هغه خوی هغه خصلت و
تخت غزه دِ تا کښې رانه وست، او اې ته دِ دولت و
زور، زور نه دې، او ورد ې، او ورد، سوزي زړونه ملکونه
تا د ازور د خان غلام کړه، پې کول دِ خدمتونه
چه به زړه د ې محتاج شوم، لیونی او پریشانه
په خیال خودِ په خپل احساس او په خپل ژوند بانکې ستومانه

(*) ډاکټر خان صاحب د باچا خان مشر ورور [illegible] (۱۸۸۳-۱۹۵۸ع)

ستا شنے سترگے به مسکے شو بکبُ ولے بهلوانه
بچے هیڅ کښې قـــرار نشته. دخپل د زړه دخپل ځانه
دیو اوره بل ته دا نکے، سـمندته، دطوفانه
بچے ستا سرکښې جوهر دی، ته هیر جوړ نے دَ ځانه
که هزار به د ژړل زړه، پښتوه به دِ زمـــانه
مانه تل مسکے کاکاوے، مینه ناک او مهربانه
نشته نه به را پیدا شي، پښتنو کښې داسے ترونه
کاش چې ته دلته کښې ناست وے ما بکولول دِ قدمونه
خوتالوئے د بارله یو دل دخپل سوی زړه غمونه
دَ ولس د ننگ جنگونه. د پښتون د شان خوبونه
او چې کله را به یاد شے. سترگے نا وینه مژا ری
خوبنا و زوے دارمان دے، تل دِ ک شے سوجانان غوا ری
که زه ژارم ستا بچے یم، تول خواران د ر پسے ژا ری
ستا انصاف او ننگ به ستائی. پښتون چرته چې ولاړ ی
کا کا زه به دِ څه وایم. داخو وئی به تاریخونه
تا پخپله وینه ډک کړل. د پښتون ننگ ته جامونه
ستا دَ پاکے وینے خاخکی، سره کاونه، سره او رونه
دَ هر نر پښتون به زړه کښې دے یاد د وهی تو پونه
مار اوری تاله نه دی د را مبیـــلو امیـــلونه
د جنت بلبـــلا ن څه کئ د دُنیا دَ باغ گلونه

# پروت يمه يوازې

پروت يمه يوازې، تور غمونه رانه تاو دي
ميسې خوځا هره، سره کلونه رانه تاو دي
کورنه دې جنت دې پکښې زرقسمه کلونه
هر خوا ته چه گورې په رنگونو کښې رنگونه دي
هر يو کې قالين کښې د ايران د تلي شان قصه
هغه شان تازه دا د دارا د باغ گلونه
زه په دې کښې ژارم، آزارونه رانه تاو دي
پروت يمه يوازې، تور غمونه رانه تاو دي
لور م خاندان، د محمد نوجدي خانان
پلار م شين زمرې، د پښتنو ياد په جهان
پاک پښتنې اولاد لکه گلونه د ايران
مورئې دا سې نرې، پښتانه ورته حيران
زه په دې کښې سوزمه، اورونه رانه تاو دي
پروت يمه يوازې، تور غمونه رانه تاو دي

پاکه لویه خدایا . دا احسان دے که سزا ده
ژا ړمه ګلونو کښ دا خه برخه زما ده
عیش دِ واله زهر که آرام واله بلا ده
زړ دَ تیښتے نشته . تیښته لا تور بلا ده
داسے دِ قسمت سره زنځیرونه رانه تاوُ دی
پروت یم یوا زے، تور غمونه رانه تاوُ دی
ولے دِ زه جوړ لکه مثال کړم . ولے ولے
هله شی رڼا چه زِم په سر لمبے وی بلے
وژنم که دا اور ګلزار او حسن شے خزلے
اور کښ که بدل دی، خدا نیکو ستا دَ کوږ مزلے
چار چاپیره تور دَ تیرو غرونه رانه تاوُ دی
داسے په منګاره خو سره ګلونه رانه تاوُ دی
زه دَ خپل زړه خان آدم یم خکه دِ پیلی کړمه
زه که سل ګیلے کومَ که سل ځله ژړا کومه
یو ښا خکی دِ حسن له به تول ژوندون تالا کړمه
هره ساه که اور کړے زه به لا ډیره رڼا کړمه
یا به یو لیدے خوب دِ هوش کښ را رشتیا کړمه
یا به ستا په در . دا دردیت اِحساس تالا ژړنګیږدمه
بل خوګ په سستی کړه . زه ایره شوم نه بلیږمه

# ړاندہت

چې نه خوند لري نه جوش ، نه سرور او نه خمار

تش خمونه اغشتلي وي ، د جنون او د دلدار

تش بې خوندۀ کړو بې دے ، ډېرانونه د تنظیم

که هر جام کښې دغه شے وي ، جم کړم ځان له افیم

چې هر تک نے شماروي ځي ګټکے کله ے هر تال

هر یو خیال وُټي تیند کونه ، نه ډُکي نه تکه چال

څه غرور وُو کجے خر دے ، د عربو په سیال پرینبود

د شاعر د خیال لیلیٰ له ، د په ستوګه کښې خال کینبود

دے وینانه خوچپ ښنه وي ، ښکاریدل ے ښنه او ښیا؟

ولے پوے دِکه جهان چه ، ستا خمار وُو کاں خار

ښنه تکړو شه غږ وه ے ، تا ته ښکاري چه شرنګار

خوکاسے لنه ماته ، او بے سُرو د هر تار

او والله که زه پے پوے شوم

چه دانهت دے که ستار

مرثیه

# حُسینؑ

دا قیامت دے که معراج دے اوکه ورځ د کربلا؟
دی دا شګوګښې سرې وینې که ګلونه د لاله؟
سوځ خمار نه هسې ورکښې ګډ دے ترینه ډکه ده پیالا (*)
څه په جوش ورپسې روان دے د مینو سربالا
وے خپل عاشق ته اچې د سرو ګلو تو مالا
چا ته وے ګلاب بخې دِ درپسې غوارم حلاله
چا ته اور صلیب او دار کښې هم خلاصے شم وصال
چا له سر چا له ګلونه، ژوندانه حسن او کمال
ننن بادشاه د عاشقانو، در روان دے اے جانانه
شان د مینے در ته ښائی، توان د ډکو ورځے بے توانه
تول جهان تیاره کښې ږپی. یو ځلانده ځې روښنا
ګوره ستورے ځلیږی. په څه نوی نوم ستانه
ستا منصور ورته پسخیږی. ستا عیسیٰ ورته حیرانه
دا د ده د درپه لمبے دی. که د نور ستوری روښانه

---
(*) پیالا: پیاله۔

یو ګلاب خان له روان دی. تګ تور سوی بیابان کښې

یوه سپینه شمع خاندی، دیو تهر په طوفان کښې

ولې کم خواته روان یې! اې حسینه ولې

کربلا نه ده بلا ده، په دې شګو کښې څه کوې

ولې غم دې لا خیشته کړې، پستې ښکلې ستړې تو هې

زور او زر، اقبال او بخت دې هم هاده هم سوړې

یزید خان دې د جهان نن، انسان وړې او کمزورې

د انسان د شان مثال نبی دې خرڅ شوی ک غلام ته؟

د سبا د ستوری تور نبی دې د ژمی تورما بنام ته؟

بڑه مه ګوره حسینه، نن ستا خدای دې ستا جانان

نه ما دی نه پړه کی ستا دې وخت د امتحان

ستا اختیار او تقدیر یو شو په دې ورځ په دې مکان

ستا د مینې مستی ګوری، زور دې ګوری د ایمان

اې د سرو ګلابو خانګې، نن ما بنام دې د خزان

دا کافر ښکې تنړې، ستا د وینو په ارمان

څه ورځه زما جانانه، ساقی لرې میخانه کړه

د سور اور او سور خمار نه، تالې دکه پیمانه کړه

اې زما غمګینه یاره، غم د مینې دې حصه

سور دَ سازِ خیشت اخمارې دے، دَ یقین موړتلو سیه

چا چه موږ دِ جانان خپل په آرام په دلاسه نتے

نوم نشان ئے مړګی روک کړل، وخت ئے روک کړه قیصه

چه دَ سر سره ئے داؤ کړی مستی حُسن ارمانونه

سرو زر قسمه مستی شی، خمار زر زر نکه نشه

ګوره ګوره اے حُسینه، ګوره دغه دے عیسیٰ

دغه مست ملنګ منصور، او ابراهیم درّب آشنا

یو په دار، یو داور میږ کښ، حُسن ولید دَ دِلبر

بے ګناه یو په صلیب شو، دا زغو تاج ئے په سر

ستا د یاره اے حُسینه، دغه سپین تیغ دَ شمر

هم ایمان د هم نزتوب دے، هم قسمت دے هم بادر

آ دَ مینے بل مشاله، رڼا راغله دَ سحر

دا د قهر طوفان راغے، که یزید سره لښکر

ګوره ګوره پا که ربه، عجیبه میدان د جنګ دے

یو خواه زور زور تورے صفونه، بل خواه تش حسین تنګ دے

یو خواه زور، غرور او حرص، قت قت په او ښکنګ په ښنګ دے

بل خوا یو مینِ ایمان دے، مستانه او په غورځنګ دے

رَبه او ګوره فرعون نن بیا موسیٰ سره په جنګ دے

عجيبه شين زمرګے دے . هم بادشاه د هم ملنګ دے
يو خوا ستر ګے دی د کانو ، هم ضمير خور نے زنګ دے
بل خوا وروکے خوار تو دے . هم دستد په سيا هی تنګ دے
دم يو نظر کښ کوړی . نر توب څه چه ليو نتوب دے
د آدم د شان قيصه ده ، کلک يقين د سړيتوب دے
تول جهان تورو تيارو ده . دوئی دنو رليد خوب دے
جنګ په تاج کی نه په تخت ، جنګ په حق د سړيتوب دے
دلمغرور فرعون ناست دے ، که يو مست بېر حيوان
يخ بے رحمه چمچمار ، چچبه شوے ويران
مرى د تنده دمی لتے . روکی روکی ماشومان
چار چاپيره تے ولاړ دی قطارونه لښکريان
يو يو ګل د تندے مړی ، د رسولؐ د ګلستان
او يزيد ولاړ دے اودی . داسلګی او ها سوان
دا بلا د کربلا ونيم ليوه او نيم شيطان
په دنيا کښ دی تير شوی ، ډير بے رحمه بلا کان
داسی ظلم نه دے شوے ، نه به اوشی په جهان
د چينے په غاړه مړه شو ، تول د تندے ماشومان



آخر چغه کړه حسینؓ، نر بچې زه د حیدرؓ یم

څه که نن یم اوږې تږې، زه په اصل شیر ببر یم

راشه او ګوره فرعونه د حیدرؓ د وینے اور

لوږ راؤ دانګه میدان ته، چه ښکاره کړه وسره زور

خونړیلی شانه پټ شو، چار چاپیره جنګ شروع شو

کربلا په وینو رنګ شوه، بیابان ډک د نارو شو

دا د لسو او د زرو، جنګ خو نه وی قتل عام وی

په لکها په زرو خرڅ، د خپل حرص د یو غلام وی

د حسینؓ ملګری واړه، په نرتوب کښې حیدری وو

خو سیلاب د توره دوب کړه، که سل ځله زمری وو

سر تږے خوږے یواځے حسینؓ او کتل آسمان ته

وو علیؓ مسکے ولاړ، نے کتل ښکته میدان ته

وے اے حسینه زمونږ وینه، تل د خدائے اله بهیدلے

ستا نیکه او بابا دواړو، خو خو ځله بیولے

اور بس او ردکے بچیه، چه پاکیږی پے فولاد

د شهید وینه مستیږی، تل په توره د جلاد

تول جهان تیرو کښې کیږو، خپل غیرت ایمان تے هیرو

چه بنده د بل بنده شی، ډیر نسلونه کړی بر باد

زوړ مې زهر مې شراب دی، د سړي نه ځان خطا کړي

دغرور ماڼۍ وي د ننګه، خو لګېږه يې وي بنياد

د آدم نو سانو سوک نه بادشاه شته نه غلام

خپله خېټه سړي سپي کړي، سړيتوب يې شي برباد

بل په مکر په فرېب، په دهوکه په چل ولونو

نيم لوڅ به نيم زمرکي وي، په خپل علم کښې اُستاد

رحم روک شي، ظلم ډېر شي، سړيتوب کې سوړ هېر شي

يو سود او ورته نه چا پېر شي، هر څوک خپل عذاب کښې ګير شي

قانون هم شي، زور زياد شي، نو تالا کيدې دلير شي

بې غيرته غير تمن شي، سپي غوڅېږي ببر شير شي

زر شي زور د هر چا ځان شي، خوار غريب ته ژوند ستوماني شي

بله خنزير د هر چا پلار شي، که خنزير سره مال ډېر شي

وزير غل، امير ډاکو شي، ايماندار په سيند لاهو شي

روغ به مري يا به غل کيږي، چې تول غله ترې نه چا پېر شي

تول وطن يو تور ځنګل شي، يو دبل په غوښه پائي

ځناور ترا مان غواړي، چې انسان به کمه تېر شي

علم چل شي، مذهب داغ شي، رنګ حلال کښې حرام شي

هر سبا الکه مانام شي، ژوند به تور آفت کښې ګير شي

دغه وخت کښې د خدای رحم، او رحمت په جوش کښې راشی

چرته غلی د چاکو کښې، یو حُسین پکښې پیدا شی

چه که منه کلک پهلوان شی، ورته جوړه کربلا شی

مرګ له نوی معنیٰ ورکړی، ژوند کښې نوی رڼا راشی

آخر چرته په سپرلی کښې، پسې باران او برقا راشی

ناګهانه وچ صحراتول، سره ګلونه د لاله شی

څه وړه څه وړه څه حسینه، په خپل بخت شکر ګذاره شه

ستا شمر سره نیته ده، سپیلنی د مخ د یاره شه

که رښتیا په ته مئین ئې، په خندا ورته تیاره شه

ای په غم سوی ګلابه، وریشه خمله په قراره شه

حُسینؑ او وې مرحبا، دا اړزانه ده سودا

کاش چه وې م په تنا، قط سرونه په زرها

او بویو ورکولې ما، په زر قسمه کربلا

دا دې د رغلم بابا، لَآ اِلٰهَ اِلّا اللّٰه !

ای بادشاه د یزیدانو، ای مالکه د جهان

ستا تقدیر مې یوا ورد ښی په مخه کې روان

کله وسیزی بې رحې، سپین ګلونه ماشومان

کله تاج د سرو په سر کړې، ګیدړه ستر ګی شرمنبان

دَ یزید په لوئے محل کښې ، د شرابو رود روان

د رسول بچي دِ مړه کړه ، او چې شونډې په میدان

دَ یزید په سوړ پالنګ کښې ، په ژړوندو حورے غلمان

د حُسین جانان مړ دے ، او پالنګ ئې ریګستان

ظُلم ظلم دومره ظلم ، وران دِ نه کړو بے جهان

د حسین په زنګدن کښې ، د یو کوټ اوبو ارمان

امتحان دِ کوؤ دَ مینے ، د حُسین څه امتحان

ولے زړے دَ حیلئ نه و ، شیر ببر مرد میدان

مکوه مکوه اے اجله دا سرنه دے دَ وژلو

دا آدم شان او سینګار دے ، تا پے اور او لګولو

تُتے خاوره ، دا سے مسته د زهرې په ښاخلیږي

سترګے سرے نے داسے اورکی لښکرونه تے تښتیږي

یو مثال د حریت دے ، د خپل زړه په زور بلیږي

پټ دَ زړه په تار خانو کښې یو سرور دے چه غزیږي

حُسین او کتل چاپېره ، او ورشوے ژړوند او ورشو اور

دے بے حِسه تور ملحول کښې هر ساه شره پیغور

په ظلم بے دِ اور کښې یو ساعت ژوندون حرام دے

دا دے د علم مرکیه ، زور او صبر دِ تمام دے

کربلا ذره ذره ستا ، ولې به چغې تر قیامته
چه انسان به زوړ او ړه په هیڅ شان سره کړي منکته
غلا مې نه هر څه منه دی ، دا چه تیر شو او تیریږي
د نه دا سې زمانه ده ژوند د مرګ په بیعه کیږي
په خپل ژوند کښې په هر چا به کربلا یوه جوړیږي
چه څوک ځي د جانان کوڅې ته په دې لاره به تیریږي
دا یو ستړې غمګین سړی .لوګې کومه ئے له تا نه
دا روښته مراوې سوړ ګل د حیاته د ګلستانه

---

سر دې درکړه لکه نر ، شیر بچې د شیر ببر
نه د خیشت د څوک ثانی شته نه د نور برابر
اے بادشاه د شهیدانو . نر خانه دَ نرانو
ستا مرګ هغه یاد تازه که چه هیر کړے هر انسانو
ستا د ژوند او د مرګ تول ، ماته او ښو کربلا کښې
څه رنګین سر ورد دې وا چولا اِلٰهَ اِلاّ الله کښې
خکه کله نه او س هم د شپے ژاړمه
ستا د خیشت او نور کمال بیا په دنیا غواړمه
کوم د ته منت دُعا ، اے حُسینه راشه
هر قدم شو کربلا ، اے حُسینه راشه



ولاړ وَمه په اور کښې ما وے اور زما قسمت

لیبے دَ قسمت نه وے، وے لیبے زما دَ نیت

نه ګل نه دلربا منم، نه حُسن نه بهار

یو ستا دَ سترګو خیال منم لو ستا دَ شونډو وست

نه بخت او نه کمال منم، نه نور د نه جلال

یو ستا دَ خندا راج منم، بے تاج بے سلطنت

نه چل او نه تدبیر منم، نه عقل نه تقدیر

یو زیړ دَ سپرلی ګل منم، ضامن دَ یار دَ پت



# سپوږمۍ

| | |
|---|---|
| اے لیونیه ساقی | دلیونو د شراب |
| ستا جا دو ګره رنا | د خمارونو دریاب |
| نن م به سترګو کښې ستا | سورے دَ غم ولیدۀ |
| دارمانونو لړے | خاموش ماتم ولیدۀ |
| یاده که هیره دِ ده | خُما خوانی لیونۍ |
| چه تا به سر لمبه کړه | نه ما نشه دخوانۍ |
| ستا پلوشو به رانه | آرام او خوب پټ که |
| یو بے قراره ارمان | کښې به م هوش ږک که |
| چه را ښکاره به شوے ته | لکه مسکنی محبوبه |
| خما هر رګ به دِ که | یو دَ جنون لمبه |
| بس یو آرمان یو درد | سوز او خمار به شومه |
| هر سر کښې اور او ژړا | داسے ستاره به شومه |
| یا به دِ داسے مست که م | یو سورانګا به شومه |
| یا به دِ داورو امید | یو سپین ګلزار به شومه |

خونن خفه غونډ کے ‌ ‌ ‌ ‌ زیړه حیرانه شانے
سترګے دِ مړاوے مړاوے ‌ ‌ ‌ ‌ او پریشانه شانے
پتول جهان دِ که خوړ ‌ ‌ ‌ ‌ مړاوے غمګین ارمان
لکه سبے وسه مالیار ‌ ‌ ‌ ‌ په تور ماښام د خزان
نن دِ رڼا کښن هغه ‌ ‌ ‌ ‌ رنګ او سرور نشته
هغه مستي د ځوانۍ ‌ ‌ ‌ ‌ د خیشت غرور نشته
سترګے دِ مړاوے مړاوې ‌ ‌ ‌ ‌ خفه روانه وے
لکه زمـا دَ زړه ‌ ‌ ‌ ‌ ستړے ستومانه وے
هغه جادو د څه شو ‌ ‌ ‌ ‌ هغه شراب څه شو
هغه د اور لمبے ‌ ‌ ‌ ‌ او سره ګلاب څه شو
زما رنګینه ځوانی ‌ ‌ ‌ ‌ خوږ وخت په غلا یوړه
خمار ځوانے سرلار ‌ ‌ ‌ ‌ مستي سودا یوړه
ما ځان باچا ګنڼلو ‌ ‌ ‌ ‌ دَ بل غلام اوختم
ما یو دریاب ګنه ځان ‌ ‌ ‌ ‌ دَ خاورو جام اوختم
خو ستا جادوګرو رڼا ‌ ‌ ‌ ‌ د خمارونو دریاب
څه شو ستا دک خمونه ‌ ‌ ‌ ‌ دلیونتوب دَ شراب
بس هیڅ جواب نه کے ‌ ‌ ‌ ‌ کم خواوته ځے زمانه
سترګے مسکے مسکے ‌ ‌ ‌ ‌ مړاوے خفه حیرانه

# نوے بلا

کله کله را پیدا　　شي یو دا رنگے بلا
ژبه سنبکلے او پسته　　سړے ډک دی د دنیا
هر یو سوال کښې ئے معنی　　هر جواب ئے فلسفه
هر دلیل ئے سنبه پوره　　پوئے په هره مسئله
فکر تیز او سنبه روښان　　علم خور لکه آسمان
د ړوند په عقل هر بیان　　د منطق په تول پوره
دا په شکل فرښته　　ده بلا تور ه بلا
زړه کښې قهر او تیاره　　بامهر[1] سپینه تجلے
د ده هر خیشت او نیت　　یا ورانے کی یا علت
دا سکرو[2] تکه د نفرت　　سوزوي ولو له پیدا
د ده هر زور د کمال　　هر لطیف او مهین خیال
بس یو جال او یو جنجال　　ستا د خود او هوش پړکه
د ده دا سنبکلے گفتار　　دے یو دام د منګلی تار
د لو میبر هسے مګا　　را ګیر ئے دے په رضا

---

(۱) بامهر: بهر۔　　(۲) سکرو تکه: سکروټه۔

لوئے غازی مست پہ اسلام — لیونے پہ ننگ دَ قام

تاجوړی دخان غلام — یا پہ زور یا پہ دھوکہ

پہ ھر چل پہ ھره لار — دکمبکاری او تہ ښکاریږی

دغہ سترګے د ښلدار — ستا د دره دپکښ اسره

سپین ګمبت ګنبز دَ جمات — دی پراته لات او منات

داپہ شکل آدم ذات — پہ ھاړو ینہ اژدھا

دده دا شیرین ګفتار — کفر کفر او انکار

پروت ئے زړه تہ دے زنار — دده ھوش تور لمبہ

دغہ علم دَ جهان — ورتہ ښودلے شیطان

دَ ده دا رنګین بیان — اړولے بسم اللہ

دغہ ښکلے سپین صورت — مقبره ده دَ نفرت

دغہ پند او نصیحت — دی د زھرو پیاسہ

دا دلال دے دتیارو — د سکرو تکو د سکارو

دغہ سپینو منارو کښی — او رونہ دی زړھا

داپہ شکل فرشتہ — ده بلا تور بلا

ھم آفت دے ھم وبا

غنی خدائے دِ تے ساتہ

# دغنیؔ تپوس

غوټئ ماشومه کوکئ — دکه دخیشت سینکاړه
الله ته پورته کړله — خفه او بے قراره
وے اے دګلونو خدایه — او ورے که نااورے
وے لے کړے ما ګلاب — او ګلاب خاوړے
مابنام د باغ مالکه — لیلیٰ په سیل راغله
وے واه دا زیړه غوټئ — پریکه و یینسټوله زما
مابنام ؤ ساز او محفل — تول دخوانئ غوبل
یوازے ناست ؤ غنیؔ — غمګین غمګین ئے کتل
لیلیٰ ئے خواله لاړه — وے سترګے دِ څه ګوري
وازے دی ماته اشنا — بل خواه، بل څه ګوري
غنیؔ دغمه ډکے — سترګے ورواړولے
هم هغه سوال ئے اوکه — چه سار(+) غوټئ وکړے
سترګے روښانه لیلیٰ — غلے مسکئ غوندے شوه
وے ددے سوالونو جواب — چرته مُنتظے(*) دے چا

---

(+) سار: سحر، سهار. (*) مُنتظے: مونډلی.

جانانه بس دے دا　　چه شته دُ خیشت په دنیا

د عقل تور خنګل کښې　　نه شته ګلاب نه رڼا

ستا دَ زړه سوالونو　　رنګين جواب زه یم

چه به تا مستے جوړکه　　هغه ګلاب زه یم

د دے ودے جهان　　دالا جواب سوالونه

بس د رَب شکر کوه　　او بنګلوه ګلونه

شکر او باسه چه چا　　خیشت او ځوانی کړه جوړه

زړه ما شکرونه په دے　　چه ئے فانی کړه جوړه

د زړو کالو لیلیٰ　　او وسل کلیز جانان

د ځوانے خیشت دَ دغه　　چه ئے خلاصین یې ستان

چه مستی خیشت شی خلاص　　شکر چه شته مرکونه

شکر چه خادرے ځوانی　　تو کوی زیړ ګلونه

دَ ودے ودے تپوس　　ئے د مالیاره اوکه

زه دیو سات سیلانئے　　پوتے مسکے شه یاره

جانانه کی(*) ځوانے کښې　　خوند د مستے اورونه

دے فلسفوله د شته　　داپاتے تول عمرونه

راشه د سره شوندو کښې　　سوز او سازونه دی

عجب رنګین خمارکی　　دجونډ(+) رازونه دی

---

(*) کی ـ کوی. (+) جونډه ژوند.

# حساب کتاب

په ژړا ژړا مِ عمر په سجدو مونځونو تیر که

نتیجه ئے بس مرګی یو، تور لحد ئے راته چاپیر که

دقسمت او دَ تقدیر یڅه قانون لاړه کوم دے شته؟

دخوانئے اور ته مِ وُلے، بیا وے او سوزیدے ولے؟

لاس او خپے مِ دی تړلے، او وے شا به کله شکله شه

مر انسان دے دِ ا تن ته، زنځیرونو کښے بللے

دَ مسکو سترګو جانانه لردَ خپوم که دا پرے

بیا مستی دخادے کوم، او تو پوهنه دَ آدم

کله شرنګ دحواخواکښں، کله زیرو او کله بم

دتقدیر کړئ که سسته، بیا زما کله اته کوم؟

ستا دعرش په مناړه کښں، لیونئے خنداته کوم

چه زه مست شم په هوا شم، او ړشم تنده شم، رڼا شم

چه یو ساز مست او سرشار شم، نور شم ړق ړشم، پخلا شم

رو بنان تورے دمرګی سورے، بر ند سترګے تکے تورے

یو نظر راته را واړې، یو نظر کښې روک تالا شم
رڼا نور مستی لاهوتی، مُتې خاوره دَ صحرا شم

اے زما دَ زړه دنوره، دوینا او دَ خیال رتبه
دَ ځوانئے دسهور، نڅکونو، د مستئے او جلال تبه

اے چه زه جوړ تش د خاورے بس د خاورے وم سیال
ولے تار اکړه ساز ونه، او ګلونه، او جمال

دا انصاف دے مُتې خاوره، د خپل تخت پایوله یوسے
بیلئے د رزو زمکے له راولے، هسینګار بنایست تے یوسے

دلیلی نه بنایست وا خلے خوان بود اکړے بودا خاورے
نور دیر بنه دِ را روان دی، دُملامخه چه واورے

مستی خیشت کمال مِ وا خلے خپل یو تو رِ دِ سینه پرے بند دے
زه دِ لوټ تالا کړم دلته، ته به تله کښې دِ څه بد دے

دَ ګلاب په شان ځوانی دِ، راله خاورے کړه تباه کړه
تر مخے به مِ نمجور، چه مړ کړے مِ واویلا کړه

دالب ژوند پورې احساس دوخی مرګی له غلے غلے
چه آخر به را نه جوړ کړے، یو تو پکے شان دَ خزلے

حساب؟ ستا به څه حساب کړی، جناب! وسپره روکړه دِ
لوټ تالا، برباد دِ زه کړم، خو کمزورے دله پرے دے

# دَ زړے خال

په سپینو کوتو ایرے کړے پوړ ته
په ښکلو سترګو به کښې تلاش کړے
لا لونه کوړے ته په ډیران کښې
لیلیٰ دا ته نۀ دا چه مجنون دے
چه دے مړ باغ کښې ګلونه کوړے
دا ستا مستی دۀ، او ستا جنون دے
زۀ؛ زۀ يم څه، ستا تخيل يم
ستا خوبونه، ستا ارمان يم
بے خودی زۀ ستا دَ هوش يم
ستا چشمے له زۀ طوفان يم
چه ستا زړه مئين په نور شو
زۀ شوم شمع زۀ مشال شوم
چه تا ځان سره له وړکه
نو زۀ ستا د زړے خال شوم

چه ستا خود د ساز لیوال شو

زه سرور شوم زه بلال شوم

نه چه طمع د سبا شوې

زه سبا شوم زه هلال شوم

نه خفه چه د ایرو شوې

زه یو مست او روک جلال شوم

چه تلخان په عشق کښې ډوب که

زه مستي شوم او وصال شوم

نه چه وږې د کمال شوې

زه همه کمال کمال شوم

چه تا یره(+) د تیغ وکړه

زه قلا شوم زه ډهال(*) شوم

چه نه وږې د دولت شوې

زه الماس شومه زه لال شوم

چه نه وږې د مستئ شوې

زه منصور شوم زه بلال شوم

چه تا نیت د کټې وکه

کله دام شوم کله جال شوم

(*) ډهال = ډال. (+) یره = ډیره

چه تا واغیشتم جانانه

زه بنا نُست شوم زه کمال شوم

چه تا وُلیدم دلبره

زه هلال شوم زهٔ مشال شوم

چه ستا زنه په کم لوړه

بس زهٔ ستا دَ زنخال شوم



# د تیارو غلام

ولې ماله د نور کړه په خوا د اور
د شغلو په بستر و ولې خوب راځي

ولې ماله په جنګ کښې خواني مستي
په آرام کښې فنا بدما توب راځي

ولې ماته دلرو په سوري کښې
د جبلو تولن اخانښت نمایان شولو

ولې ماته هر ګل مستانه او مست
په ما بنام، په ما بنام د ځان اشنالو

ولې شور د وجود زما ساز شولو
ولې ماته ارمان خپل ایاز شولو

ولې ماته د ژوند همه نور او رنګ
یا شکرې یا شاهین یا شهباز شولو

ولې ماله د ژوند ګل سوب، ضرور
نه نیاز شولو نه انداز شولو

ولې ماته خانښت د هر سر او تال
د غمونو د دردونو آواز شولو

ولې ماله د نور کړه په خوا د اور
ولې ولې شو سپین مې مرګ د تور

ولې ژوند بس پیغام او مطلب د کور
زما سوري ګلاب شو غلام د اور

ولې ماله همه خوشحالي د ژوند
یو تنګ تور بې مطلبه تصویر شولو

تش په خان په جهان پسې ژاړمه
زما ساز مې مرګ مې مې ویر شولو

کمزوري د وجود او خیسکړه زما
زما خود شو قسمت شو تقدیر شولو

او زما د تیاره تاریکو غلام
زما خان شو، امام شو او پیر شولو

زما مینه دعوه د ډېر غرور شوه — زما حُسن لیدل د رانده وشول

زما زړه شو غلام د وجود نهما — نظرونه بچې د لیدلو شو

توږې لړې، او لړې او کړې خوب — نه اُمید شولو نه ئې راز شولو

زما ژوند، یو سلګۍ د شکست شوله — چې نه سوز شولو او نه ساز شولو

خپل ویجاړه ژوندون پسې ژړمه — زما ژوند هم مړ ګې هم ئې ویر شولو

چې د عقل رڼا م یو برق وکړه — هغه هم د تیرو یو تصویر شولو

ځکه ماله هر تال او سرود ډېر ساز — د غمونو دردونو یو راز شولو

ځکه ماله دِ نور که په خوا د اور — ځکه ورځ م د شپې د ړوند آواز شولو

د ژوند هره شعله، شوه لمبه د اور — هر اُمید، ارمان، یو دهوکه د ځان

زه غلام د تیارې په پنجره کښې پروت — کړې یکې وام (*) چې ئې نو یم د کل جهان

زه چیغې په ویران کښې غونزیږمه — ړندې سترګې م رنګ د بهار نه وینې

زما ونه کښې اوړ ږې خوا اوړ د ویران — د یار سترګو کښې مړ اګې خمار نه وینې

زه لوئې شو صحرا او تیارو کښې یم — د غه شکو کښې ستورې ملال کم دی؟

زه یو تور او او بنیار شان کونګټ یمه — شمع چرته دی؟ سپین دِ شال کم دی؟

دا اُمید، داخیشت، یو دهوکې د ځان — ژوند تیاره ده او مر سمندر د تور

زما سر کښې سپوږمۍ او کلونه شته

خو هر رنګ دِ تور، لکه کور، کور

۱۹۶۵ع

---

(*) وام: وهم.

# یورپ

دَ مغرب دَ سوی زړہ نہ یوہ سوے کریکہ وخي
جنګ دې دا مسے درد وے اوس هم رپي اوس هم سوزي

ماشومان ګلونہ ښکلي
امیدونہ نیاز ولي

د سبا خوبونہ خاورے
پرونی سازونہ غلي

دَ یو بم پہ سُورانګار کښې تول ذرہ ذرہ هیرہ شي
داتورتم چہ پہ چاپیر شي ورتہ تول جهان تیارہ شي

ژوند یو توقہ بے مطلبہ
ړک دَ دردہ دَ غضبہ

څہ ثنا بہ دَ رَبّ واورے
پہ سرو تیلو کښې دَ کبہ

داړاندۀ پہ بقوګوری، لمبو سوے ئے نظر دے
دوئی بیناؤتہ ړاندہ وئی، اوچغر پیغمبر دے

هر ماښام مغرب راوړي . شپه راځي د دې د کوره

د مشرق رنګينې خاورې ، تا نه تل ختلے نمر دے

پاڅه پاڅه راپيدا که يا يو بده يا مسيحان

کنې لاړه تيارو يوړه دا ړنده شمله دُنيا نن

ورته او وايه چې مرګ بس د ژوندون د ليلې تول دے

د ژوند سره ګلاب بې بيخ دې ، مرګ که تود دے ازغو ښيو دې

که مرګ نه وے ژوند به نه وُو هر ماښوم به د پوهيږي

بند غوټکه به وچ پوه شي ، چې ماښام کښې تيارې کيږي

انسان نه دے تشه خاوره ، چې په خاوره کښې مټي خاورے

دَه کښې ساز يو بادي دے ، که لږ چپ شې ته به ئې واورې

ده کښې سوز ده کښې مستي ده ، ده کښې مينه او خمار دے

دا به کم لحد کښې ږدې ته ، ده له کم قبر تيار دے

اے غلامه د زنځير د تيارو کښې پروت ، خان که ميرې ليږې چا پيږ خوا او کوره

د جانان د خاښت او د مينې نور ، په هر خوا بر سير خوا او کوره

هره يانه کښې ژوند لا زوال ژوند ، هر ګلاب کښې دريا د سرو دے

بدليږي د ژوند د دوام دا لار ، کوره هره غوټۍ کوه لحود دے

۱۹۶۵ع

# اے زما وطنه

اے زما وطنه د لالونو خزانے زما — ستا هره ذره کښې دي د تورے نښانے زما

ستا سر چه وی تیټ نو زۀ به شان و شوکت څۀ کړمه

ته چه خوار و زار یے زۀ به مال او دولت څۀ کړمه

ته چه روان ویجاړ یے زۀ به خواب او راحت څۀ کړمه

مستۀ به دِ خاورۀ کړم په وینه مستانے زما — اے زما وطنه د لالونو خزانے زما

عقل مِ ایرے شه ستا د پاره د فکرونو نه

سترگے مِ قربان شه ستا د پاره د سوچونو نه

زار شمه قربان شم ستا د خاورے د کورونو نه

ستا زړۀ کښې پرتې دي تورے تلے نه مے زما — اے زما وطنه د لالونو خزانے زما

یا به دِ زۀ سیال کړمه وطنه د جهان

یا به ستا په خپو کښې تورے خاورے کړم خپل ځان

ځان به دې دروړے کړم خو تا به کړم ودان

نو ځمه پښتون یم تا ته یادے افسانے زما — اے زما وطنه د لالونو خزانے زما



# جنت او دُنیا

چه مستي وي او ځواني وي او جانان وي او ډک جام
ډیر کلونه، لږ یاران، او غمګین غونډې ماښام

عشق څه او روي او څه نور وي زړه لمبې لکه تنور وي
په دې ژوند به زه ورزار کړم جنتونه ستا تمام

خو داکته په دې وکړې چه هیڅ رنګ له قرار نشته
هر ساعت. هر رنګ د ژوند، ستا د وخت دې کښ غلام

او جنت کښ مُلا وائي وخت به وي زما غلام
دے چه روک شي او زه شته شم، ټول به وران م شي تمام

چه زه ټول عمر ژړلے یم، ځلمے توب به یو عذاب شي
ځکه اوس راباندې ګران دي، چه ئې خیشت شي زر تمام

تل سپوږمۍ د څوارلسمې، تل جانان د شپاړسمې
تل ځواني، سپین د شرابو، دا دوزخ دے که انعام

دے دنیا پسې به ژاړم. دا تیاره هلال به غواړم
هره ورځ به یادومه، نرۍ لړه د ماښام

تمنگ د حورو وفادارو ۔ بے وفا جانان به غوارم
ستا آدم په ذات بنکاري دے ۔ د بنکار خوند کوي مرکام
ذ مستئ د سیند په غاړه ، ثوابي روژے به نیسم
اسویلي به کوم یا دوم به د ساقي نیمګړے جام
مرګ ئې چه ابدي شي ، یو آفت شي یو عذاب شي
بس یو تا سره مزه کا دا ازل ، ابد ، دوام
بنګلے نوے رنګ محل کښ نوے نوے جانان غواړي
بیابان کښ سره ګلونه ، تورے شپه ، چراغان غواړي
تل تیاره کښ دے رو کیږي ، تل رنا کښ هم رنډیږي
دے بچے د تغیر دے ، یو حالت کښ نه تهنګیږي
که ده ستا جنت له یوسې ، دا فطرت او دا وجود
یو څو ورځو کښ به سوزي ، په سرو سترګو به ژړیږي
اے د لوئے فضل مالکه ، ماله دا دنیا جنت که
فارموله نے ده آسانه ، د درے توکونه جوړیږي
لکه ویلي م دے سرکښ ، بس جانان خواني او جام
چه زمالیونے سرپے کله کله مشغولیږي
او هغه بل د مرګه پس م ملا جان سے پسے خیرات که
تش د حورو به خوبونو که د خوار ګدا ګذاره کیږي

ماله دلته یوه راکه غونډه · مستهٔ تکه سپینه
مینه ناکه · سپینه شمع · چه لمبې وهي بلیږي
شل رنګونه نے نظر کښ · شل مزاج په خیال کښ
دَ سپرلي هسے خوبونه · کله نمر کله وریږي
یو ځرمنه کښ د ننه · یو حرم دَ ځینګوړي
کاله مستهٔ او سترګو ړنه · کله غلي شي شرمیږي
او زما دے ستړي زړه کښ شل رنګونه او لمبه کړي
چه دَ اور هسے سوزیږي · دلبنتو هسے کډیږي
چه په یو بے تاب نظرِ دا سے مست دا نشه کړي
میخانے وته حیرانے او ساقي ورته پسخیږي
دهغے زړو بدل کښ ماله دلته یوه راکه
دَ ابد تو له خواني مِ · د خوږو کالو مشغلا[1] که
که دانه کړئ اے جانانه · سرهٔ بے خوږ دِ سبا که
نه مِ مغلته پکار دي · نه مِ دلته کښ یادیږي
غټے غټے · سپینے سپینے · چه نه سوال نه منت غواړي
ارتے بیرتے · اوږدے سترګے · په ځغملو به لغړیږي
رټه ! اے جانانه رټه ! دغه یو سوال خو منظور که
کني لار غني دِ مرشو · ورپسے نے ځبّے[2] کیږي

---

(۱) مشغلا = مشغولا. (۲) ځبّے: ژبې.



# مینه او حسن

ستوري ته اَسمان کښې یوه ورځ ووے ملال
خدائے آدم له مینه ورکړه مونږ له تش جمال
زه به په خندا ورکړم دا خپل ښائست د کمال
ماله که یو ښاخکے مینه راکړي خوږ په سوال

مینه حقیقت حسن سایه د حقیقت ده
حسن له زوال شته مینه نه لري زوال



# ریدی ګل

یوه ورځ یو صحرا کښې په ښکار روتے ووم روان
یو ګلاب مې ولاړ ولید، پړقیده خیشته خندان
زه خفه نه خواله لاړم، ما وې، اه! زما په شان
ته هم ګل یې بد نصیبه، روک د زلفو د جانان

نه د چاپیانا زینې کوټے، نه رم مخ له به دې یوسي
نه به ښکل دې کړي سرې شونډې د یاره نازک لبان
هغه غلې شان مسکے شو، وې خان مه کوه خفګان
زه به دا صحرا ونه کړم، د ایران په ګلستان

دلته زه یو او یکتا یم، هلته زر زما په شان
چار چاپېره سپېره خاورې، زه یوازې یم روښان
دلته دې تور ریګستان کښې زه د رنګ او نور لمبه یم
د خاندښت چپه نغمه یم، کرشمه د لامکان
ستا په باغ کښې به زرګونو، دي ګلاب زما په شان
یو بې نومه سور دریاب کښې یو بې نوم څاڅکے روان
ته دې هم په خپل صحرا کښې خفه مه شې زما وروره
آخر رابه شي دیدن له دې خوږ سوے غني خان

# دُنیا

دا په خپل خود کښې دے دنیا ته کتل
ګرانه ده، ګرانه، ډیره ګرانه ده
دلته شل قسمه دهوسان(*) ګرځي
ډنګ د شهباز کښې تیهوسان ګرځي

ګیدړو بوریت د ببر شیرو ایښی
غږ مباکوي لکه شیران ګرځي
څوک د غریبې خوار لکه ګړنګ کښې
آدم خواره او شرمښان ګرځي

یو غټ پټکے، سپینه همسا پلاس کښې
په اوږ د ږیره کښې شیطان ګرځي
زړه خو سینه کښې دي پټ، پټ پروت وي
نقشے سترګو کښې روښانه ده

دا په خپل خود کښې دے دنیا ته کتل
ګرانه ده، ګرانه، ډیره ګرانه ده

(*) دهوسان = دیوسان.

یو خوا ته کند کښې د ملنګ سامری
د فقیر نوم نے سپک بد نام کړلو
دے ملک کښې دا سے وخت تیر شوے
بادشاه په سوال د خپل غلام کړلو

فقیری هیڅ جامه لباس نه لری
بادشاهی تو یے او الماس نه لری
دا خو یو نور د زړه په زړه کښې بل وی
د روح مستی ده، نه لباس نه چل وی

دغه یو بل چه جونګ کښے چاڼ شو
مېکاری د خوړو تا ته دام کړلو
دا چه هو مولکه کیدی کوی
دا ذکر نه دے تا ته خان یاد وی

یزید د ناست په چغو چغو تا ته
په کربلا کښې شهیدان یاد وی
که یو که لس و مابه منولے و تول
دغه شمار خو بنه آسانه ده

دا قسمه، قسمه پیژندل منتریان
ګرانه ده ګرانه، ډیره ګرانه ده

او کوره دغه دے یو صیب راغے
بریت ئے جنډ الکه قیصر نیولے
سترګے ئے بې دی د شاهین غوندے
خو مره مغرور وئے د سر نیولے

د دیر شو زرو په موټر کښ ناست
خو مره دوئے د رانیو ر نیولے
سوټ ئے د زرو روپو لاندے نه دے
شمله ئے نیغه ده په سر نیولے

دالنګے سپے دے د کید ر بچے
هر دله توب نه تیت سر نیولے
نه دے په لور نه د په ښغه حیران
لورے ښکار ئخی منه ارزانه ده

دا قیصر شکله دلالان پیژندل
ګرانه ده ګرانه، ډیره ګرانه ده
دغه دے یوچه شمله نیغه لری
ګرمے خبرے په لاسونو کوی

دوه غلچکی ورپسے روستو روان
ښتے خبرے د خونو نو کوی

څه معـززه اوږد کوټ تک تور

دَ مولانا تورہ قبا ښکـاری

سپینے پړتوګ تورو بوټانو سره

خیشتہ سپین ستورے دسبا ښکاری

دادِ بهیا[1] اټے[2] او ښکے ده

دپلار دنیکه نوم اوعزت خرخوی

تاخرڅوُ، ماخـرڅوُ، اَشنا خرڅوُ

چه څه تے غواړے په دولت خرخوی

دغه روڼ مخ ، دغه بت ښکے سوشمله

په تش دوکان کښں شان شوکت خرڅوی

څه چه تے غوارے، ښه داده په وړځه

دَده سودا تولــه ارزانه ده

دغه چه سپین لکه ګلونه ناست دی

دا دَ رنا ورځے داکوان[3] کے تول

ژبے ئے تیزے، چلولی ستر ګے

نیم ازمری ، نیم لومبړان دی تول

څه ښکلے ښکلے مخونه اوښـیار

بل دخبرو سپین قارغان دی تول

(۱) بهیا: نیل، مالګه پورتګه . (۲) اټے: دوکان. (۳) واکی: داړه مار، داړه اچونکی

دوی په خوږه خوږه کښې مار ه کوی
دا نسبی پاخه ښکاریان دی تول
پښتنے خه دولی قبا پرته ده
مسکولبانو کښې بلا پرته ده

که څې دنیا کښې په لکهاؤ تکان
هر یو دځان له یو ښه اوږده داستان
که زه تول عمر کښینم، خلاص به نه کړم
دا تعارف دَدے قلم په بیان

خو په انجیل کښې دی عیسیٰ لیکلی
دے دَ بنده دلیدو یو امکان
سترګے کړکۍ دی، دَ روح رنګ ښائی
سترګو ته سترګے همیشه ښائی خان

دُعاکوه، وے خدایا لاؤ (*) م نه کړی
خو په دنیا دَ دَهوسُے دے طوفان

چه سمه دمه ده نو کرانه ده
او چه آسانه ده نو ورانه ده



(*) لاؤ: لاهو.

# چه آدم
# خاورو کښې کښېني

سریتوب چه لوړ او چت شي لیونتوب شي
چه خودي د خودۍ وځي نو خمار شي

چه فولاد د َوینې موړ په مینه مست شي
نو حیران او پرېشان تار د َستار شي

چه ترے عشق او جانان دواړه وخت فنا کړي
هله پوے سړے په شان دځان او یار شي

چه آدم خاورو کښې کښېني څه زرغون کړي
منجیله چه په دولت شي نو بنا مار شي

ما ته حورے غلمان مه ښئه دومره بس دے
په والله که بے له تا مې په چا کار شي

دا چه نن پکښې زه مست او مغرور ګرځم
سبا خدائے خبر د چا به دا ګلزار شي

ستا د مرګه نه یریږمه پښتون یم
خو م تش جسد و ان او خوشې مرګ ته قار شي

زړه کښې دوب د وسوسو دریاب بهیږي
جوړ به کله د امید رنګین آبشار شي

دا چپل زړه ستا بې پروا نظر ته ګوري
کله کله په ژړا خکه شاه تار شي

ساز ژړا ده که مستي ده نه پوهیږم
مې آواز کښې کله سوز کله چغار شي



# قسمت

ملاجان وائی ازل کښې تالیکلے هر یو کار دے
یوله سترګو کښې شفق دے بل له مسے کلیخار دے
ستا تقدیر هر لمحه کښې دهر یو وینښته واکدار دے
یوله ګل یوله ډلدار دے یوله اور یوله انګار دے
یو به تول عمر نالان وی، او بل تن دے پریشان وی
یو نیاز بین به په ګنملو بل به پروت په بیابان وی
یو به تړغ د سپی غبار کا. بل خو رل به لکه مارکه
یو به ښنګلے ښاپیرے وی. بل به باډوی توړابان (*) وی
ملاجان وائی اے ربه! دهر خون ته ذمه وار دے
دا تول ظلم تالیکلے. ستا د ګوتو دا آزار دے
دا بے رحمه افتونه. دا بے خایه رحمتونه
د حسینؑ په مرے تورو. او یزید د ملک سردار دے
ملاجان وائی تا اینبے په آسمان کښې یو کتاب دے
چه هغے کښې تالیکلے هر آدم له هر یو کار دے

---

(*) توړابان ورځچه د شهزاده بهرام په غولګولو قصه کې یاد شوی دی.

نو چه دا سې انتظام دے اے زما منصفه خدایه

ما نه څه له کے تپوس، نه مِ واک نه مِ اختیار دے

ما کښې دومره طاقت کم دے چه ستا لیک د ابد وړاندې کړم

نه د زرو زورو خانانو زه بے وسه خوار غلام

که زه خاندم که زه ژاړم، ستا یو تکے نه بدلیږي

دا بتان دي ستا د کوتو. دا کفر و نه ستا الهام

د احساب کتاب به څنګ وي، دا تپوس جواب د څه شي

هر کلاس چه دِ ما ځکلے ستا د کوتو وو اکرام

مُلاجان وائی ساقی هم د تقدیر د کوتو جوړ دے

مُلاجان وائی دا خیشت هم تا جوړ کړے د تمام

نو چه زه د ساقی سترګو ستا د کوړ ځان له بوتلم

ما کړه سپینه راوچته په آسمان ماه ګلفام

چا نه تشکیل کړمه په دام کښې د سرور او درنا

چا کړه جام کښې راته ګلِ ه په شرابو کښې خندا

او هغه راته روښانه سپینه شمع بلیدله

زه جلبل لکه پتنګ شوم. د دې شمع په لمبه

دا به ته په کوم قانون کښې راکوے ما له سزا

تا آسمان کښې بره لیک کړه، او ما اوکړه په دنیا

چه اختیار نه وي جانانه څه ګناه دَ چا ګناه
راته ښکاري ملاجانَ چرته تلې دے خطا
که قانون وي که رواج وي که منطق که فلسفه
دا ګناه خواے تقدیره تو له ستا را وختـه
که اختیار وي ګنهګار یم، که اختیار نۀ ګناه کم دی
دا خو لاس د بل کار دے ته په هر څه کښې تکړه
وایا وایا ملاجانه که اختیار راځي قسمت ځي
د قسمت سره دِ واړه آرامونه او راحت ځي
د تنا ی لیکلې روک شي، بس سړے د خان مالک شي
که په باغ کښې دِ آرام ځي، که په لار د مصیبت ځي
بیا کیدے شي حسابونه دَجزا دَ ثوابونو
چه سړے په ښه په بد وه په خپل وس په طبیعت ځي
خو قصه چه دَ قسمت شي، ملاجانه زه بري شوم
تل به ځم په هغه لار چه په کمه م قسمت ځي
زه موټر، هغه ډرائیور دے ځم په کمه چه م بیائي
که جات که میخانه وي که په سمه په صحرائي
که موټر کنده کښې پریوزي، نو ګناه د موټر نه ده
دا چه هر قسمه سزائي د ډرائیور سره ښه ښائي

که ګناه ده که ثواب دے، زه به دوارو کښې بے وسه

مُلاجانه دا کتاب دِ خوځه برغے ژبے وائی

زه بے وسه ګناه او کړم، بل بے وسه ثواب او کړی

په دِ دوارو کښې به کم یو قسمت سور دوزخ له بیائی

نهابوتله خوسره پ جفاده دغه بل کښې لا ځای شته دِ

دے جهان کښې خوبه عمر سنبه تیر کړے به خندا ئی

مادیو بے واکه او ره بیائے بل بے واکه او ره ته

بیا دا ساخو یو غضب دے، که دا بیعه ددے سائی

ستا کتاب به دے کښې ځه وی لزوم یوئے که ملا جانه

یاخو را شه کوه شروع که قلاه کښې ینه د آسمانه

یاخوتله مله نه ده، نجات کړه دینګرے ده

یاخو تا خه اکو بکو ایجاد کړی دی نځلنه

وران او سم د بل د لاس دی که ده ورانه که ودانه

اور او ددد او مناماران به چاپیره وی زمانه



# مرګ

ماتم وُ د خانانو د میاګانو ډک کمونه
پټې پټې خبرې وې او کلک ئې دَ دلیلونه
ټولو په نظر کښې یو لړه یو ارمان وُ
روک شوې ترې منطق کښې وُ د حسن امیدونه
دَ مرګه یریدل دا چې ژوند وُ ورته اوږد
غږې د پلاؤ ونو ښکاریدې ورته قبرونه

دَ ټولو سترګې وازې، لکه اسپې تږیدلې
• نغه خفه خبرې او پاسته ئې آوازونه
چې زه شوم ور ښکاره یو یار مې بیا ته لګیا وُ
لاله ډیرې مرشم چې دَ مرګ مخ را ښکاره شي

چې فکر مې ور رسا نشي زړه م ولویږي خوریږي
د ژوند هر یو امید م د هیرو ذره ذره شي
یو تور غوندې ښامار وازه خوله ناست خري عَلَمونه
هر چا ته چې شي به هر چا د ده حمله شي

نه خوان ګوري نه زوره د قصر او وړه هم څه سېزي
که فکر ورته وکړې ژوند یې تو ته مسخره شي

او تو ته هم بې رحمه . تو ته نه ده سر لمبه ډ
دا ځکه مطلب د ژوند شو چې خاورې خاتمه شي

وې وایه لا له وایه څه به پته خوم پوئې که
په کم هنر به جوړه د ژوند ورانه ماشوره شي
که تا پکښې څه خوند مطلب لیدلی وي نو وایه
زمونږ په خیال خو ژوند یو د دې وړونو د کاروان

ګوتم بوده رښتیا وې .. چې پیدا اسونو تباه شوې
دا داسې جوازی ده . هم یو داوده تاوان
یا لس کاله یا شل سره په اورانت کښې تیر کړي
آخر نې چرته تور و تار خانو ته کړي روان

د هغه خاخبرې قیاسونه دي دعوې دي
په عقل چې نه کوږې خرافات هم یو بیان
لږ عیش . لږ ځواني . مال مجوبه . بس دغه وایه
بس یو خیام خبرو نور ړانده دي شاعران

زمانه په خوا کښې ناست یو لیونې وُ په خندا شو
وې واوره دا خبرې دَ باچا دَ دسترخان

وے دا ژبه دېرېانو، دَ دښتے دَ بيابان
دانشته په کتاب کښې دَ منطق او دَ امکان
نو تول ترينه راتاؤ شو به خيشته او ښيار مغونه
په ستر گو کښې تيرو وے خو تندَ نے وو روښانه.

وګوايه ليونيه خلق وئي ته مرګ ته ځاندے
دا دَ ګښې دَ ځندلو څه خبره ده آشنا
لږ مونږه هم خبر که کنه، يار چه په آرام شو
که تا چرته کښې پته وى مونښلے ماملہ

مغه پاڅيد په سپين ديوال نے سپينه کرښه راښکله
وے خان دَ غه جواب دِ دَ رشتے دَ مرګ او سا
مغوى خشيمے کړے پاڅے وے "والله که مونږ ځه پوهېږو"
په سپين ديوال سپين خط چرته ليدلے شى بابا

مغه وګه مرګے نوژوند به هم دَ غسے روک وؤ
چه عقل د انسان کښې بس دَ فرق انداز ؤ
چه سور او تياره نه وى رنګ نشى ليدلے
درونده نظر کښې تل وى يا تياره او يا رڼا

چه دواړه يو کښې راشى رنګ غائشت حُسن تر جوړ شى
که مرګ نه وؤ، دُنيا کښې ژوند به څه پوهيږه په سا؟

تول حُسن د جهان دُ د مرګ د تورو سترګو نوَر دَ
دَ ده په تور جهان کښې تول رنګونه د دنیا
که مرګ نه وُ، ژوند به نه وُ، که بنځ وُ سینه به څه وُ
که توره بلا شپه نه وے چا څه کاوُ سبا
راځه زما ګلابه، ژوند او مرګ دواړو ته خانده
په دواړو کښې یو هم نه دے لایق ستا دَ ژړا
که خواه مخواه ژړا د ځی انسانانه، ځانانه ژاړه
چه دغه په رښتیا، او که ګُلا کے دے د ژړا
یو حُسن رب ورکړے دے چه ژوند له معنی ورکړی
او دے غریب تے ځان ته جوړه کړے ده بلا
خزان که نه وُ، نو یو ګلاب، یوه میوه نه وه
که مرګ نه وُ جهان به یو رنګ خوب وُ په دُنیا
که نه وے دښمنانه به جهاز نه به بیړۍ وه
که نه وے بلاتوب ځوانی به څه کوله چا
یو زهر دی ځوانۍ له او مستۍ له اور نا له
د ژوند چینه د خضر چه یا دیږی په دنیا
انسان د ریدی ګل دے، د ده کور د بیابان
بهار د ده ځوانی ده، خوبدن دے د خزان

که یو غنی خطا شو، شي به ړوک مې ګلستان

او ړوک شي هغه سات د ده د خوشۍ د احساسه

کم شي چې ورته شي قایم، دا نسم، او جاویدان

دا ژوند کښې چې څه خوند دے د مرګ جوړ که یې په ځان

که مرګ نه دَ جهان ون به وُ، د ړوکو ړوک جهان



# لیوآن

قسمته کښېنه په آرام کښېنه     سباله ولې که څه دِ خوښې وي
دَ سپین سبا په مخ خالونه کیږده     چرته او هر چرته تور لالونه کیږده
تراخه بر خورمه که تراخه دِ خوښې وي

خو اوس م یار لږ مسکے شویدے     قسمته چپ شه ژوندۍ شه په قرار
وخته دَ خدائے دپاره سا واخله     دغه لمحه م که دَ کال مقدار
سبا شو ستا خو نن که یار واکدار

ټول ژوند دِ ستا دا یو بخرے زمونږ     ټول ژوند م واخله خو دا سا پریږده
نن دِ دفتر که بند او سترګے پټے     قلم دِ ماته که دا سے ماته پریږده
واوره، اوره، واوره، دوه خبرے زمونږ

په توره شپه کښې دَ غم خاشکي دي نګ     پریږده چه رنګ بے ټول جهان کړمه زه
دَ خزان سترګو کښې تصویر دَ ګلاب     دَ مقبرے په منځ کښې شرنګ دَ رباب
جمع دِ خزانې قسمت م ستا دي واخله
قسمته ماته دا لیوآن پریږده

سباله تورکه ټول جهان په تیرو     خو دا لمحه ما او جانان پریږده
بس څه نه وي لیکم دَ زړه په کتاب     دَ خزان سترګو کښې تصویر دَ ګلاب

# رنګ

سبه دے په رنګونو کښې زرګیه دخوانئے رنګ
مرګ او غم له ورکی دَ جمدن و جاودانئ رنګ
ھن ھن په ممبر او محراب کښې بقبور کوی
یاد شو ملاجان ته دَ کوکے جمدانئ رنګ
زیړه شوه دَ شرمه دَ یبرس مستنه بیبانه
وے لید چه دسترګو دخرے پاکستانئ رنګ
سرلنډے تے جوړ کړی څنځرک او قولنګی تے کم
توپ چه کله وُونی په بډاکښې دخوانئ رنګ
وړے شوندے وخاندی په تش لاس شمله سیغه کی
کله چه شی پوره غنی خان کښې دَ خانئ رنګ



داخو ستا په دربار کښې قبلولوله — کله شین، کله سپین، کله تور شمه
داخو ستا قدم په ارمان کښې زه — په ازغو د قالین په شان خور شمه
داخو تاته خپل خان ښکاره کوله — کله ساز کله رنګ کله اور شمه
داخو زه دَ جمدن و یو آواز یمه — ځکه ځکه یا شرنګ شم یا شور شمه

# ګله وړې

جنګ د دښمن کانو، چینه خوبي بي نه یوړه
ورانه به وروشي چه د غتو شي جګړه

سرله د غونډه ځې چه د سیلاب چپه راشي
کندو، دنده وکوکښې به نیزو خوړه کړي خړه

غم د سبا کوه به سبا، نن د نن مزه واخله
خانده خوشحالیږه، وارا کاره غوړه زیړه

داخو بریو عشق دے چه ځنل کړي بے غرضه
هسے خوک ناري کښې چاله نه وي کوي ګړه

مله به خبر شے چه د کندے مینځ له ورشے
ژارے به محل کښې یاد وے به د جونکړه

بے سره سر د غني نه دے د خر شولو سر
خکه مدام سپوره خوري نصیب کښې نشته غوړه





# تصوّر

زه یم ناست خان له جانان یو تصور کښې جوړومه
کله ئې ستر کې تورومه، کله ئې شونډې ښکلومه

زه یم ناست د غم په ښار کښې د در نا بخرې پېیمه
خُم د رنګ کښې لا خمار شته، زه ئې لپې ډکومه

د سنګي کوتو د خُمار شم، خنه ښکلې ویش دِ ډکه
زه یو خاشکې خو ځیګر کښې د دریابونه ګرځومه

زر او زور او تخت د واغشت، خیشت. نظر او خیال د راکه
د سرور په سُور طوفان کښې دِ کړه ډوبه لوڼې لمعه

دا یو غم د وېشه پاتې چرته پټ تیاره کښې ناست وُو
رو رو پټ مِ زړه له راغې لکه مار د ښکار په سمه

په ډکه خوله دې رضا يم د لالونو زړو خانه
غم خه مرګ هم قبول دې په خندا نه تبلومه

داخو تا اور او ر کړې په دسرور ماته ښبلې
څکه زه دې تورمحل کښې خپل خوبونه بلومه

خلق وائي لار بله اشو غني خپلې مستۍ وخوړه
زه يم ناست دیار ویښتو کښې د نرګس کلونه ږدمه

مرګه نه چرته ګرځیږه زه لا نه یمه اوزګار
څم د رنګ کښې لا خمار شته زه تې لپې ډکه ومه



# دَ سامری محل

شمع نشته دِ رڼا نشته / وجود شته خو سرور نشته

رومیدل او ترقیدل دی / لمبه نشته دِ اور نشته

عجیبه دړند و ښار دے / سترگے شته خولیدل نشته

دے کوڅه کښې دَ ملیانو / ښلفکونه دی جام نشته

دا مکه دَ سامری ده / خانان ډیر دی خیام نشته

یادا کور وُو دَ منصور / دلته خاورو کښې مستی ده

دلته هوش یو مست جنون وُ / دلته مرگ خه وُ هستی ده

دلته حُسن د وحدت یو / دعاشق بت پرستی ده

عبادت دَ ستار سُر وُ / بند کی خه ده دوستی ده

یا خو دا تا تمام ژوند / هم آخر و هم تمام

دلته دا زما خوبونه / هم اَبد وُ هم دوام

اوس دا ښار په وړانید و دِ / جمات شته دِ امام نشته

هسے نوم شته دَ گلونو / د باغونو سمام نشته

هاے افسوس چه جمدُن وشتدِ / سرسُرور د جمدون نشته

محل جوړ دے لیلیٰ ناسته / مجنون نشته مجنون نشته

دے عجب د رنګ جهان کښې — سپین غالب دی او تور نشته
روتیدل او ترقیدل دی — لمبه نشته دِ اور نشته
عجیبه لار م نیولې — نه پړاو شته نه مقام
نه جنون نه بے خودي ده — عجیبه زما ماښام
نه ښائست شته نه رڼا شته — عجیبه ساقي او جام
نه خندول نه مستول کړي — دا زما ماوِ ګلفام
او زما په دِ جهان کښې — دَ رڼا خوریدل نشته
سترګے شته واز لو تښے — دَ خوبونو لیدل نشته
دلته او ګوره جانانه — ستا په غم مستیدل نشته
دلته او ګوره دلبره — ستا د نور بلیدل نشته
دلته رنګ نه رنګیني شته — نه شراب شته نه خیام
دلته شړنګ او غورځنګ نشته — تور او سپور او نسکور جام
دلته چغے دي دَ نن — نه سبا شته نه پرون
دا محل د سامري دے — نه منصور شته نه مجنون
دلجمدون د تیرو ډک دے — دلته رنګ د خیام نشته
دلته تول تشویش تشویش دے — اُمید مړ دے آرام نشته
دے تک تور د غم وطن کښې — اور بلیږي اور بل نشته

عجیبه دَ رندو ښار دے
سترګے شته خولیدل نشته

# کمزورے ځي په شا

چه زور په مخه وکړي سخته اووهي ډېره
مازغه ولې کمزوري کړي خپل رقيب کاندي اوتره
ډلې راشغله شي، توپ وچت وکړي په بره
يو تنله د ځوانۍ په زور د خپل طاقت نشته
کمزورے ځي په شا

کمزورے ځي په شا چه بل له اولګوي شا
کمزورے ځي په شا

وي مړ د خت مړ شي ته په غصه دا سے په قار
په مرچا په دده دق دے که وي مور اوکه وي خوار
بل زور خپل ورته ښکاري خاص د ښځے (خلے) يار
خپل زور ته اور آفت پردي ته نه لري نشه
کمزورے ځي په شا

يو تنله په خلوي، اور د زور، آفت د جنګ
په ځان دے نه په بل، ليونے کړے د خپل ننګ
که ځا دي که بے ځا دے د بس جنګ او جنګاله جنګ
غيرت يو لا مثاله په خپل جهل کښ نشته
کمزورے ځي په شا

# جلال

چه زه غوارم د هیرونه مستی سره ګلونه جوړ کړم
د سرو او ښکلو نه سرې شونډې، د ژړا سره نه جوړ کړم
د خزان تیاره کرم ډوبه، د امید په سمندر کښې
د ګنجکو نه لالونه د غلو پلونه جوړ کړم
چه دا روح مې په ښکاراوئ، د رنګونو د خوبونو
که نور نه وي د تیروزه رنګیني نورونه جوړ کړم

چه د خیشت شم زه لیواله، د صحرا هره ذره کښې
په زرهاو بوستانونه، په لکها ګلونه جوړ کړم
چه زه ورته د ارمان شم د سپرلي په سپین سبا کښې
بې حسابه ماښامونو، بې پایان غمونه جوړ کړم
تور او سپین زما دستګو، کله تول کله تلل دي
شپه او ورځ زما نظر دي، ورکول دي او منتل دي
که خندا ده که ژړا ده، دا ځیګر مشغولول دي
که وصال دې که فراق دې، خپل سره ته ګډیدل دي

چه زه مست شم د ډیران سره خښته کلونجوړ کړم
د سرو اوښکو نه سرې شونډې د جرا سره جوړ کړم

چه زه نیت د ګټې اوکړم د پرېوتي د شکست نه
دماغ د سترګو کبر او د شونډو غرور جوړ کړم

دا چه زه ځان له یو تخت د رنګین باده ودان کړم
د غلام خوارۍ بدله د پادشاه په رنګ سرور کړم

دا چه ته ئې اے جانانه، دا چه ستا مستي رښا ده
دا زما مینه ارمان دې، دا زما ژړا خندا ده

د ملا خبرے خو شے، معامله ستا او زما ده
دا داستان د لوګے نه دې، دا قصه د عشق او ساز ده

دے زما سره کښې پټ راز ستا د حسن او کمال دے
دا زما کمزورے سترګے ستا د غیشت جا و جلال دے



## دا زمونږ غوندې
## د ډکو کمه لار؟

خوش نصیبه خوش قسمته وې منصوره
خلقو جوړ که درله دار څه مزیدار
ما را اوړې دې زړګي کښې له ازله
هم منصور شې هم سرور او هم دار
وایا وایا د رندانو بابا وایا
دا زمونږ غوندې د ډکو کمه لار؟



# زما محترم رور سردار علي خان

## (امير جماعت اسلامي) ته

دا چې ته په سجدو پريوځې او زه ډک د ميو جام کړم
دا م زه غواړم قرار. دا هم ته غواړې قرار
ته لټې مغ جهان کښې حورې سپينې ګل اندامې
زه جنت دلته لټومه. نشم کولې انتظار
تا په قرض حبابان ورکه. زه ترې نغدو سودا غواړم
دا ته سبا شي په بيو پار کښې. که ما سبا او که بيو پار
شيخه راشه ميخانې ته. چې مقصد زموږ دواړو دے
ستا د مرګه پس قرار. زما دلته کښې قرار
نور د سوال مقام مو نه دے. ځکه ډېرا خاموشه يک دے
يو ارمان د دواړو زړه کښې کې جدا جدا اظهار
پتنګان د يوې شمعې. که بينا دے که شمکور دے
دا خوخکه ده حاجي صيب. ليونې دے د زړه يار

# بینوا ته خط

بینوا په هشتنغر[*] کښې ستا یو رور دلته او سیږي
هر سړے پښتے ستړے، پټ پټ شونډو کښې مسیږي

ستا قلم چه نولی او بڼکے د هغه ستړے ډکیږي
تا چه خپل درد په ژړا کړی، هغه دلته کښې ژړیږي

دلته ناست په هشتنغر کښې ستا یو یار دے په رښتیا
په خانانو کښې یو خان خو، ستا په شان دے بینوا

خلق وائي لیونے دے عجیبه څکوي کاږه نه
سره او سپین د ځان ولي چرته کوري زیر کلونه

د شرابو جام په لاس کښې اوږده وائي حدیثونه
کله غواړي په مسجد وکښې د الله نه شرابونه

تول بے توله شان تلل کړي د مرګی او د دُنیا
وائي که ستړے د مرګ نه وے ژوند به نه لید لو چا

چه نښه دروغ وی چرته جمع د به ناست پکښې حیران وی
خپل غمونو نه بے غمه، او پر دوته پریشان وی

(*) د هشتنغر پرګنې اشاره ئې دي، چه د خان صاحب اشنغر ئې ټاټوبی دی.

په غرمه کښې به يوازے چرته ښر وکښې روان وي
د ملا د ذات دښمن دے، ډير خوار به ورته دمان وي

مات تو يک د منطق واخلي نښه ولي پړے د رسا
عجيبه ورانے خبرے ، مرچکي سره حلوا

ستا په شان د ده زړګے هم د مرخوار سره خوږيږي
په وجود ئے تخم من نښته په بخرې اور سوزيږي

زړه ئے دک د ميو جام دے، که لږ رتي نو توئيږي
تنبه وکړينه ئے اوړدے په لږ تاؤ سره لمبه کيږي

ستا د مرتمک سره هنک کی يو ستار دے بے بها
ته د نوي قندهار دے د زور (۱) دے باشنده

ستا د مرمر سره رپي، يو شاتار ستا د رباب دے
نيم او سنبيار نيم ليونے دے، مراو شوے شان ګلاب دے

از غمي ډير شوخا ئشت کم شو، واے دا انقلاب دے
زه طوفان يم سمندر يم، په دغه که ځوند حباب دے

زما خاوره کښې ډير نور ښته، تشنه نه لري دا سا
زه غرور، ننګ او سرور يم، سره رنځينه م زړا

ته چه کم رنګ کښې غو به شے دے هم هغه رنګ کښې رنګ شي
ته چه مست پيا تن ورشے، دے ګنګروشي په ترنګ ترنګ شي

---

(۱) د وادي پښور زوړ نوم قندهار بولے يادوي باني ادخان مطلب قندهار نه، بلکه ګندهارا دي. (مولف)

ته چې غم فریاد شروع کړې، د بې خوبۍ اک نهک شي

ته چې توره کړې راپورته، د یوسفزو توب په جنګ شي

بل دده په شان به کم خان له رور کړې راپیدا

یارانې له داسې یار، داسې بل د زړه آشنا

ستا به زړه کښې چې کوم نور دي، ما کښې هم هغه ځلیږي

ستا د زړه چینه د رحم، دلته رودېږي چې بهیږي

ته چې ویښې کم خوبونه، زما سترګو کښې غړیږي

ته چې زانګې په کمال، په هغې غنی زنګیږي

بینوا په هشنغر کښې ستا او رور دلته اوسیږي

بېرسره پټې سترګې، خان ته خاندي او ژړیږي

کله تنګ کله تکور شي، کله ساز کله ژړا

کله وده کښې لړلي، غیرتونه فلسفه

دیر خیزونه رب ورکړي چې بنا دیږي په دنیا

چې څه غواړي هغه نشته ستا په شان د بینوا (*)



(*) مراد د پښتو ژبې لوی لیکوال او شاعر مرحوم استاد عبدالرؤف بینوا (۱۳۹۳ هـ ش مړ) دی چې پښتو ژبې ته یې په نظم او نثر کې ډېر خدمتونه کړي دي، او علمي آثار یې هم ډېر زیات دي چې په علمي کېدو او مې کېدو کې یې چاپ شوي دي. استاد عبدالرؤف بینوا (خدای دې وبخښي) تر څو پښتو نیات مستقل آثار او لیکنې یې تر ډېره مرحله چاپ شوي دي.

# پلوشه

هوش دَ دَ علمونو نه جدا جدا روان شو
خدایه دَ لیونیه جوړ سم لیونے کیږے
مرګ کښ دا ښکاره راته جهدون یو جاودان شو
زه ور پورے خاندم دنیا، ته وهته ژړیږے

# پلوشه

نن ربابی دخیال دنیا جوړے بدله ده
نوے دِ مضراب دِ نوا لاهو کښ غـــږیږے
نغمه دِ رباب نغمه پرے دِ خونن نے نشان دِ بل
دا دِ کلتال دِ، یاره پاخه که کیږے





# نقاب

واچه زه ځان لیونے کړم، دازه تنګ شمه دَ ځانه
شیخ بابا ته لګیا دے، مسئلے کړي دَ عذاب
زه خو دلته په عذاب یم، دده خپل خود او احساس
ځکه کله په مسجد وشم، کله او څکمه (*) شراب
چه بے حسه شم روکیږم، چه احساس له م سوزیږم
نه طاقت شته دَ سکون او نه همت د اضطراب
چه حیا پیرو نظر او کړم، همه پټ او ښکاره زه یم
واشراب دَ ما جوړ کړے، ما جوړ کړے دا محراب
مذهب څه دَ خور سمو، مسئلے او منطقونه
اودَ هغے سوال جواب دَ چه نشته دَ جواب

(*) وڅکم، وچښم.

جانان تش د عاشق مینه، د خپل زړه وینه ختمل دی
چه دیروړے شو مجنون، ځانے که ځان له کباب
رباب څه دے مرګله ورے او د توت او چه تنه ده
خو چه سوز د آدم راشی هله هنګ وکړی رباب
کله نو کله رناشی، کله غم شی او ژړا شی
دا څیکرد رباپی دے، چه هم جام شی هم شراب
خو دا زړه م راته وائے، دا هله وکی م کونیږی
چه آخر به څوک او چت کړی د جانان د مخ نقاب



# اختر

غني او خور داسے غم | نه دارو لري نه دم
کل جهان دِ ستر کے ستر کے | نشته ستر کے دِ صنم
خلق وئي اختر اختر دے | ماته ښکاري محرم
چار چاپېره ساز او شرنگ دے | ماله سوز شو له او غم
چه جمل و ن په کمید و شو | شو هر خيز و هر ه کم
دِ شهوت نه وحشت لار | دِنيکے سرور شو کم
دِ کناه نه مزه لاړه | پيکه خوله شوه دِ صنم
نه په بام دليلي مست شوم | نه سايه کښې دِ حرم

خلق وائي اختر اختر دے
ماته ښکاري محرم



اختر خو ستر کے دِ دلبر وي | مسکے مسکے شان پکښې نظر وي
ايمان چه زړه يو د ک دِ رنا وي | مرحبا کعبه وي مرحبا کوثر وي

خوار به د شعر همه احساس دی | چه څیکر تش وی تش دا ترو ی
حُسن خو ستر کو کښې دعاشق وی | رنا دُ دوی رو ښان دِلبروی
رنګین ګلونه، ښکلی صحرا شي | تش د رنګونو چه د چا سر وی
جمدونه پوا ور شي تور بلا شي | چه بې سر وي نه مانه ګري
جانانه په ښکلي کښې خمار په سترګو | د وصال مهرخت اختر اختر وي
خونه د ولدار ښته او نخمار ښته | د دا زونډ به ښه سفر وي
لار بلاسو جور غني خانه | دکوانۍ ماو دِ آخر قرار شو

د رنګینۍ وار دِ لار لوتیر شو
تره سامان دِ اوس به سفر وي
زه نه یریږم د سفر و نو
د جمدون هره لمحه سفر دی
خوږ ږدی مې دا شوم قسمت خپل
چه یا سبا دي یا مانه ګروي
ځوانی مستي مې چه کم خوا لاړه
ورپسي خدا یږد هم هاتخمه
لاړه دعلم دي که د تورت دی
که تورغمونه که سور سفر وي



# تپوس که جواب

وایا وایا ملاجانه — ژوند تپوس دے که جواب

ژوند وصال دے که جنون دے — که آرام که اضطراب

ژوند امام دے که غلام دے — که ممبر دے که محراب

که یو مست غونډے جهان کښ — رنګین خوب دے د سراب

که لمحه د نور کتمل دی

دے تور تاریک جهانه

ژوند تپوس دے که جواب دے

وایا وایا ملاجانه

ژوند فرعون دے او غرور دے — که جنون دے او سرور دے

د نمرود د زرو تخت دے — که رنګین مرګ د منصور دے

د احسین مسکے مسکے دے — که یزید مست په غرور دے

د ابهار دے، که ګلاب دے، لږ پټ شو د خزانه

ژوند تپوس دے که جواب دے، وایا وایا ملاجانه

ژوند یو مست د میو جام دے — که یو مات د غم کچکول

لیونۍ د خیام دے — که اوبنیا رغ دَ بلبل
یو رنګین باغ دَ ګلونو — که دَ اوږد دَ ازغو شپول

که یو تیښته او فرار دے
تښتیدلي دي له خپل ځانه
ژوند تپوس دے که جواب دے
وایا وایا ملاجانه

ژوند یو خیشت دے چه خوږیږي — که جمال چه خاورے کیږي
داساز خپل مړګ ته کړي ساندے (*) — که یو اوږد دے چه بلیږي
د دے تلو، مقام، دمه شته — که دمه نه سا تښتیږي
منګوټي که دَ ارت دي — څه دکیږي څه تشیږي

که یو نور دے چه خوریږي
ناخبره دَ خپل شانه
ژوند تپوس دے که جواب دے
وایا وایا ملاجانه



---

(*) ساندے: دمړي ستاینے.



# تلے مرګ

په لکها کاله اوده وی | یو ساعت له را بیدار شي
خو لکها به نور اوده وي | چه روان د مرګ په لار شي
شاته توریو سمندر دے | مخکښې لا توره بلا ده
مینځ کښې یو د شبنم څاڅکے | په غوږ ږغنګ لکه آبشار شي
د آدم زړه د کټور دے | د ده توره دریابي ده
د سیے تلو دا سے را تلو کښې | د سیے خوږ شي خمار شي
وو پکار چه ساعت ژوندے | په ژړا ژړا تیر ولے
که دے دیره په لیلیٰ مست شي | خو آخر به د مرګ یار شي
نه په تلي مرګ ستومان یم | نه راتلونکي نه یریږم
زه به تل د غمے خاندم | که په اور شي که په دار شي

پاتې پاتې د قیصې شوې — د دوزخ د حسابونو

دغه شې د ملاجان دې — زه خو ستا د سپینې یار

او که وې چې سوزم، سوزم — عشق کښې نشته انکار زه

زه خو شیخ مُلا خو نه یم — چې نه کار کوم نه انکار

خو د سولو دېره نه یم — ساهو شانګه د شاتو توت یم

رانه جوړ که یو رنګین — او او نګین غونډې ستار

که یو تنګ دی که زړ تنګه — سبه په سر کښې بې غږ یم

یو قطره ستا د دریاب — یو ښکلا و ستا د خمار

اے زما د سترګو توره — دا یوه خوږه کښې واوره

دلته سوې یمه دیر — نور م پریږده په قلار



# لټون

غرمه د اوري
لکه شپه د ژمي
يو خاموشي
او قلارے خور دے
د کور کور کوکوکو

او چپ چاپ عالم هو
وخت خپه نيولے

په رکاب سور دے
دُنيا دِ ځپل زړګي ته غوږ نيولے
د مرګ او ژوند حساب کتاب اوري
فضاګانې کښې يو مسکے توب شان دِ
لکه په خوب کښې ځوک رباب اوري
او زه يو اځے
په خيالونو کښې ډوب

دَ خپل ارمان

تلاش کښې کرځمه

يو روک

مجبور ۀ

مسافر

يم روان

په مزکه پروت

په آسمان کرځمه

ما دِ هم خپل زړګی ته غوږ نيولے

د ژوند څه وجه څه نساب لټوم

در دله او مرګ له څه سوب (*) کودم

ابد کښې خپل د هوش حباب لټوم

دَ ولے ولے

په درياب کښې روک

جام کښې شراب

او په شرابو کښې

په سُور کتاب کښې

د جمات د تاخ

---

(*) سوب : سبب .

زه مرګ اوږوندله

یو تږون ګودم

چپه چپیا

او خاموشئ

کښې زه

شرنګ دستار

د تال مضمون ګودم

چاپېره رنګ کښې

شنو کمترو کښې

خان له جواب د چپل جمدون ګودم

زه لیونے یم، لیونے یم، د ښتیا

په میخانه کښې افلاطون ګودم

خان ته چه ستر ګے م را وا ړولے

بس

مرګ

او نیش

ووُ ینمه

زه لیونے یم، لیونے یم د ښتیا

د مرګ په سترګو کښې جمدن ګودم

غږمه دَ اورې

لکه شپه دَ ژمې

یو خاموشې

یو قلارے خورد ے

چرته کښې لرے

یو بخرے

دَ نور

ستورے ؟

که لرے د صحرا اورد ے

ما ته ورو کو

پلوشو

کښې وائې

که غر دِ لوئے

په سرئے لار خوشته

څه ؟

که جمدون

یو روک

ساعت دِ

دهوش

یو

ابدی

دَ ده، دلدار خوشته

زړګیه، ځان ټکے که ماتکے

ښکه ځان خلاص ده جنجاله کړے

زړګیه، اے ته زړګیه زما

ځان کښ مشغول او ما خوشحاله کړے

خوستانه منم

غرقیږمه

سم، په رښتیا

لیونے کیږمه

د اضطراب په تور دریاب کښ زه

اوس سرسری یم بیا ډوبیږمه

په تورو ویروکښ ګرځیږمه

دلته په خپل اور کښ سوزیږمه

په جمدون تورے خاورے کیږمه

په خپلو وینو کښې ډوبېږمه
غرمه دَ اوړي
لکه شپه دَ ژمي
یو خاموشي یو تلاړے خوردے
چرته کښې لرے
یو بڅرکے دَ نور
ستورے، که لرے د صحرا اوردے

ماته ورو کو پلوشو کښې وائي
که غر دِ لوئے په سر کے لار خوشته
څه کنجکاوي زړه کوي ساعت دِ دَ هوش
یو ابدي دَ ده دلدار خوشته



# کاروان

يو نيم ژوند دک د مستۍ دی، يو سرود دی چه شړنګيږي

پردې ټولې په خپل ځای دي، پاکې شي په سر غړيږي

هر يو تار يې مست بورا دی، چه ګلونو کښ بونګيږي

هر يو تال يې جنت په ټول کښ، زير و بم پکښ ګډيږي

خوشحالي په چوړ لګونو، په شاه دولو(*) پکښ دانګي

يو هوش مست په خپل سرور کښ، د خمار په تالې ځانګي

يو نيم ژوند خوږ او بې نوږ، ګډ په شلو خپو(+) روان دی

هر قدم يې يو ټيندک دی، تور په غم يې ګل جهان دی

هر آواز يې د درد چغه، په خپل اور کښ بنديوان دی

د آرام په ارمان سوی، لکه غرځه ته ميدان دی

د غمونو سيلا بونو کښ روان يو ګڼ لښکر دی

په جهلونو دوزخ کښ پروت، نيم ژوندی او نيم مړ دی

يو بل ژوند د شمعې ژوند دی، لا به مري لا به سوزيږي

هله نور او رڼا راشي، چه په سر يې اور بليږي

(*) شاه دوله، يو دول ملي نڅا ده. (+) خپو: پښو.

ے یو اور دی سوز دل کړي ، لاس د جم پې سوزیږي

بل دښمن د بل غلام دی ، ځان سوزي بل ته ځلیږي

نه نور دَ ده انعام دَے ، دَ قسمت ګوتو ورکړے

نه اور د ده جمدون دے ، چې جمدون دے لګولے

و مره قسمه دَ ژوندون دي ، خو بچې چې د آدم دے

وک په یو ځاے کښې لږ لوی دی ، څوک په بل ځاے کښې لږ کم دے

د کاروان کښې متول روان دے ، که رانده دي او که سم دي

وک په چغو څوک مسکې دي ، څوک خمار کښې څوک په غم دي

قافله یوه روانه ، یوه لار ، یوے منزل دے

تر مخکښې څوک روان دے ، سپین مشال دے اور پرې بل دے



# نه کیږي

چه په خاخکي کښې مستي د دریاب راشي
لکه ویر کښې سُر او رنګ د رباب راشي
صحرا لاړه شي سمندر کره خندا له
او چینې سره یارے له سراب راشي
لکه غم د خوشحالۍ کره میلمه شي
یا په مرګ قربانیدو له شباب راشي
لکه خوند له د ایام دَ اوږو سترګو
په جمات کښې بُکل، ساقي، او شراب راشي
لکه اوره . اور زړګے په نمر مئین شي
او د غرزور او پښتے له حباب راشي
د زما او ستا یاري دَ دے عجبه
په شبنم کښې چه طوفان او سیلاب راشي



# راکه ساقي راکه

راکه ساقي راکه، شراب نا(۱) اور مې په کار دے

زړۀ مې تورے خاورے باهر(۲) تاو رانه انګار دے

پرېږده چې ئے وڅوم ، دا زړۀ نه دے يو سزا ده

ساز سرور ئے رګ شو ، بس يو قهر بے قرار دے

ده په زړه ګرځولم ، مځينولمه ، مستولمه

اوس مې وينه څکي ، بس تش يو درد ئے د يو آزار دے

هيڅ نه ئے ګډا شوه ، اوس نه تال دے نه شرنګار دے

راکه ساقي ، راکه ، شراب نا اور مې په کار دے

نشته هغه زور سرور ساقي ستا په شرابو کښې

باغ نه حُسن لاړ ، رنګونه کم شو په ګلابو کښې

واچوه سُور اور د جام کښې راکه چې مستي شمه

مست ليونے نه شوم هسے شمار شوم په خرابو کښې

دا د څه جهدونه دے چې مې هوش پکښې په دار دے

راکه ساقي راکه شراب نا اور مې په کار دے

بهار راغے ، بهار لاړه . زمانه ژوند سوے ګلزار وؤ

يو تباه تالا ګلشن وؤ ، په ځپل اور کښې ګرفتار وؤ

---

(۱) نا = نه (۲) باهر = بهر = د باندے

یو بے کورہ، بے آرامہ، سرگردانہ مسافر دم
نہ زہ یارجانان دَ چادم، نہ زملچرتہ دِ لدار وُ
جمدونِ تش دجمدونِ دردوو، ھغہ بنگلے جانان نہ وُ
ھر نظرچہ ئے دسترگو، نوے رنگ نوے خماروُ
زڑہ م تورہ ادیرہ دہ، دتیارو تاریکو بار دے
راکہ راکہ ساقی راکہ، شراب نا، اور م پکار دے
یو بے حِسہ، دوب قرار دے دَمرگی بنگلے مکان
کہ ساوڑنی، اور م وڑنی۔ دتیارو دغہ جہان
تور و سترگو کښ ئے نښتجڑ تہ یو دَ اور بحر دے
یو بے خودہ چپ قرار دے، دَدہ کور دَلا مکان
نہ دا سوز، نہ دا تالاش شتہ، بے جانانہ فراق نہ
ابدی وصال، وصال دے، مرگ دے داسے بنہ جانان
دَ دہ کور تے تورے لرے دَ بغملونہ سپنے دی
تورو لاسو کښ ئے رحم پہ غریب سوی انسان
ددہ ملک کښ دوب آرام دے، یو بے خوبہ دَ خوب دے
روک جمدون، روک ئے احساس، یا صلیب یا لیونتوب دے
راورہ۔ راورہ چہ فناشم، زڑہ دڑوند م بے زار دے
راکہ، راکہ ساقی راکہ، شراب نا۔ اور م پکار دے



# دیوداسی

په کوګوړے کوګو شتکے، تو رانټے په تنانه

په چپو چپو مستی به د نسیم چپو راوړه

سحر راغے لکه زیړے، د خندا او د رڼا

غوټے تو لوړے مسکا کړی، نن نسیم کړی نشه

وخت یو بل پړاو پوره کړه، یو بله شپه په تلو شوه

چاکره تیره د چاغیږ کړی، په چا تیره په سلګو شوه

ملم تیز کړه په ناستے، د رنګونو په جهان کړی

هوښ او رنګ به مې یو ځا کړلے، جوړ دل مې تصویر نه

د زړه غم به مې د زړه خوږ کړه، د جانګلے په احساس کړی

مړاو مړاوے به نظر شو، سوی سوی نښان رنګونه

که تصویر لیلی جوړ کړم، د شیرین که د منصور

دم یو ستر ګو کړی زه یم، زما درد، زما خوږ یو نه

تور او سور دوه رنګه واخلم، پر چنګیز[1] یا تیمور[2] جوړ که یم

د دوی ستر ګو کړی دا قهر، زما او ږمی تو په نه

---

(۱) چنګیز خان (۱۱۶۲-۱۲۲۷ ع) (۲) تیمور ګورګان (۱۳۳۵-۱۴۰۴ ع)

دَ دې رنګينو نښو لور ته، يو پرې راغله غمګينه
نه ليلى وه . نه مشيله وه ، نه هيراوه نه شيرينه (*)

خيشت ئې نه وو يو ارمان وو چا شاعر خوب کښې ليدلې
مراد ئې سترګو کښې ئې غم وو، خمارې د چا په مينه

هر نظر هر حرکت کښې، ليونې د ځوانئ تال وو
ټول وجود دې يو سرور وو ، يو رنګينه ځوانه مينه

ما ته وې اے معصومې ، ما ته او ګوره زه څه يم
يوه خواره د بت ويښتړه ، د کمينو نه کمينه

ما وې نه د حُسن لورې ، ته رنګينه شهزادګۍ ئې
ستا په يو سوى نظر به ، زر تختونه شي قربان

ما وې اے د غم ميرمنې ، ته د ګلو ښاپيرئ ئې
د ځوانۍ په مست بهار کښې ، دا رنګونه د خزان ؟

ستا د اوښکو ، د سوځنګ نه دى ، ارمانونو دې مستې ئې
يو په نه ميخانه ، ستا هر څاڅکى کښې طوفان

د نازک نياز بين جهان کښې دومره توره او درانه غرونه
اے د سرو ګلابو څانګې ، ستا خولې د خزان

نوره شل پردې پرېږده ، دا پرده د غم کړه لرې
چه خندا راشي ګلشن ته ، چه روښانه شي جهان

---

(*) د ليلى مجنون ، د... ، هير رانجها او فرهاد و شيرين د قصو مينې .

بت ته نه ئې د بت ویښزه، ستا په سترګو کښې رڼا ده

نه ساقي ئې نه شراب ئې، نه خمار ئې نه جانان

دومره خیشت آزدیدلې نه، دومره مینه بې جانانه

ستلغا نشت چه لیدلې نشي، نور روند شوې دې جهان

وفا، مینه او ارمان، لکه نور تا کښې ځلیږي

یو غمګین ارمان پټ کړې، ستا د شهزند رنګین ارمان

راځه خوا کښې زما کښېنه، زه هم ستا د ارمان رود یم

ته هم ګل د بیابان ئې، زه هم ګل د بیابان

زه هم ژوندیمه خوږ کړې، درد ولې، ژړوله

ورنه مینه د وارو ژړا ږي، غوارې مینې لجانان

ما ته ئې اوګل مسکے شوه. سترګے ئې ږ شوے له اوښکو

تورښتا درخپل راغوندله که، ځان له غلے شوه روانه

خپل امید او خپل ارمان ئې ورته سترګے د کاروان شو

د سرو ګلو په تلاش کښې، په صحرا کښې سرګردانه

د رقاصے په قدم کښې، د ګل ښانګے په انداز کښې

یو دنیا د سوز او حُسن، هوش کښې رکه شوګړ مانه

را ته ئې زړه کښې یو بل درد، یو رنګین شان ارمان ئې پیدا شو

یو زرین د نور نځرے د نور ونو د جهانه



# منم

ولاړ مه وه په اور کښې ملوے اور زما قسمت
لمبې دې قسمت نه وے و لمبې زما دمیّت

نه بخت او نه کمال منم نه توره نه جلال
یو ستا د سترګو خیال منم او ستا د شونډو وست

نه ګل نه دلربا منم نه حُسن نه بهار
یو ستا دَ خندا راج منم بے تاج بے سلطنت

نه چل او نه تدبیر منم نه عقل نه تقدیر
یو زیر دَ سپرلي ګل منم ضامن دَ یار دَ پت



# ګلونه دَ ورخارې

ګلونه دَ ورخارې　　درنګ شاڅکي ولاړې

سحر په خندا ئیر کړې　　ما بنام تول ئې وخفه مراوې

ګلونه دَ ورخارې

اغشتي(*) ئې سل رنګه　　خندیږي ښنک په ښنکه

سحر خواني مشر رنګه　　او مابنام ولاړ وې ژاړې

ګلونه دَ ورخارې

خواني دَ یو سحر ده　　جه دون دیوے وهځے

بیا هم مانه نزان دي　　چه هر سحر خنان دي

او نز یو پو سے غم ته　　دلبن ساعت تور تم ته

آدم داو بنکو نوم دے　　په ګلونو پسے ژاړې

ګلونه دَ ورخارې

څه ښکلي ښکلې خاندي　　رنګینه دي تابان دي

بنائست دَ ګلستان دي

غني ورته همیش حیران حیرانستان ولاړ دي

ګلونه دَ ورخارې

---

(*) اغشتي : اخته .

# څمه، څمه، څمه

په رڼا باندے مئین یم خو، تیاروته نه یریږم
که پښیمان په ګناه نه یم، په خوند غادره کیږم
پرون تخم وم، نن ګل یم، سبا بیا به خاوره کیږم
زه د بادیوه چپه یم، په صحرا په باغ تیریږم
کله باد کله باران شي، کله اور کښې اوسوزیږم
خوږه څم به مخه څمه
که او د ریږ مه روکیږم
چه ورپسې شم په ګلونو، ګرځم خولے دعطرو دکه
خو رومه نے چاپېره، ورته خاندم خوشحالیږم
چه د رنګ په جهان ورشم، یو رنګین د بودئ تال شم
رنګارنګ رنګین جال کښې، سپینه شمع شم ګډیږم
چه د مستو په محفل کښې، په ساقي او په جام ورشم
لیونئے شانے خمار شم، په خوبونو کښې خوریږم
چه جهان تیاره تیاره شي، او رشي تنده شي عذاب شي

زه پښتون د پښتو غږ شم ، نه یریږم نه نریږم
چه د علم په جهان کښې ، د او ښیارو خواکښې کښینم
هم مغوی پوهے خندا کړم
هم په خان پوهے خندیږم
په فکر و نولیو نے شوم ، په لټون ، لټون شوم ستړے
خو آخر د غے له راغلم ، نه پوهیږم نه پوهیږم
خوزه ځمه ځمه ځمه ، تل روان یمه په مخه
یو مقام ته ور روان یم ، یو مقام ته به رسیږم
او په لاره چه څه راغله ، که تیاره دی که رنا
زه رنا کښې یم خوشحاله
خو تیاره نه نه یریږم





# یو تکے

دالکما زړه ګټاه، مونږ دا یو تکے زده کړے
که تک تورو ی هم خیښه شی، بارچه ستا د زخال شی

خسته خسته ژګخسته، بے دړه که بے زبان
دګلال کو نے جه وشی، دګلال د ستر کو خیال شی

یا دچاوړه دیوکه، یا ګلاب کوتو کښ جام شی
دخیام لونګین خیال شی، دساقی رنګین جمال شی



# بامیان

یو خوا د قدرت جمال ، بل خوا د انسان کمال
زه ئې لیونے کړمه ، چار چاپیره نور دے
نه دی بامیان(*) نه دے دا ، دا خو کوه طور دے
دلته د فطرت کمال ، دلته د آدم جنون
دواړه په ضد شوي و ، جوړے که ترځه افسون
هر خوا چه د لار نظر ، غرونه ، نا ، کلونه دی
هر غر دی د رباب د رنګ ، یونا په زړه کوڅه دی
بل خوا د آدم د ژوند ، مینے او ایمان قصه
هر غار کښ نغمے د عشق ، هر خوا د جانان قصه
هر یو غار کښ پروت خاموش ، ساز یو د نورو نو دے
دا روک او ویجار جهان ، کور دم د نیکو نو دے
دے تالا جهان پسے ، دے د پښتنو شان پسے
دے تباه دوران پسے ، دے شهید جانان پسے
دے سوی ګلشن پسے ، دے روک ګلستان پسے

زه د زړه په سرو وینو ، ژاړمه پرې بیعه
زه چه د ده کورمه ، سترګے به سوځیږمه

---

(*) بامیان د افغانستان په اولو کې یو لوی ښار دی چه پخوا تاریخي آثار به پکې ... د بودا د مجسمو له امله مشهور دی.

# سپرلے

اوګوره جانانه دتیارے نه رڼا جوړه شوه
نوے سپرلے راغے د ګلونو دنیا جوړه شوه

زمکه لکه شاړه اَبے بوره، وه که سپوړه وه
چرته مروړه مستی تلی دخپل کوره وه

پا نی غوټۍ نه وے په هر بوټی د مرګ سوړے و
شرنګ دَ ژوندون غلے، میخانه نے تشه توره وه

یا ساندے او اوښکے، یاتے سپینه خندا جوړه شوه
اوګوره جانانه دَ تیارے نه رڼا جوړه شوه

یا جهان وُو ارمان و، یا رنګین نشه رنګونه شو
مینه زوړ مسکے شوه، په خندا ورته ګلونه شو

مست شو ساقی دا، کل جهان نے مست بے هوشه که
هر ساه امید شو، هر نظر کښې خمارونه شو

هر قدم کښې تال په هر خُلمه کښې مُسکا جوړه شوه
اوګوره جانانه دتیارے نه رڼا جوړه شوه

بیا سپوږمۍ کاسیره شوه ، په سترګو اشارې کوي

بنګلې ، نوې مستې ، شرم شرم کښې نخرې کوي

مرخوا مینه مینه ده ، شرینه ده ، رنګینه ده

رنګ ادحسن پوشو ، مست شو خاندي مسخرې کوي

خوب نه جوړ خمار شو ، د فراق نه لیلۍ جوړه شوه

خاندي غني خانه بیا دې ورانه دنیا جوړه شوه



# ماښام

او ږنځیه راغله په ماښام می کښې — خوږ او غمگین خدایه دا تور ماښام شو

اوګوره ساز بیا. مهین مهین شو — رنګین رنګین شو. را ښکلے دام شو

هوس ږ لمے شو. شوده زړګے بیا — خان کښې رنګونه د مستۍ ګوري

زه په ژړا شم. چه وړته ګورم — دا ژوند خو مے لاړو تمام شو

دخوانۍ مشرق او د آسمان تندر — زوړ نے مزه کا. اوړ نے مزه کا

زه سم راوینښ لا. نه وم د خوبه — چه نمر زیړ شو او ږو ماښام شو

نظر کښې لړے زړه کښې ارمان — خود کښې خوبونه د بل جهان

دغه یو چړنګ ازغي م لاس کښې — نیم د ساقي دی نیم د امام

خه د خود نه تهکی(1) مستونه — سوزي وړیتي م داخپل او روینه

ما هو یو خاځکي خمار کښې ډوب که — خانه بجانانه. او چت کړه جام

خوړه بے خوده هغه سرور ه — چه ستا علاج دے. نشه په جام کښې

نا پیمانه(2) کښې د ساقي شته دے — نه په خنداکښې د دلارام

خو راغله او ږنځیه او ساز مهین شو — امید روښان روښان په تور ماښام شو

راګه چه وخت کم او لیوے شم — د نن ثوابے تول د خیام شو

(1) کی: کوری. (2) خان خانی خانی - نه د - نا - په بنه راوړی دی.

# سپوږمۍ مسکۍ شوه

سپوږمۍ مسکۍ شوه وې دا، تول دَ څه کړې
مینه کښې مره، څوک تلل نه کوي
په سوو بهار کښې د ګلونو حساب
خاندۀ مستیږه او چرچې کوه
دَ دې لګها سوالونو یو دے جواب
څه کښې مینه کوو، دې دَ غاټې کوه
دَ زړه وطن کښې دَ سراګ ږه نشته
د فکر تول، لکه بالول به څه کے
دَ یار حساب دَ خپله یاره نشته
سپوږمۍ مسکۍ شوه وې دا تول دَ څه کړې
خاندۀ سپرلی کښې خوند ژړل نه کوي
مینه کښې مره څوک تلل نه کوي



# چینجی

پسې مې د بابا کړې امیدونه د خپل خان
کړه جوړ مې خان له کور
یو باغ تې نه چا پېر په کښې مېوو د کل جهان
ګلونه د هر لور

په هر قسمه مېوو کښې نو نوې قسمونه
انځر وو که املوک وو، که انار وو که بادام
عجب عجب نمونې، لا عجب پکښې خوندونه
خرما هم ثوابونه، جنتونه په آرام
خو کاله مې خدمت ورله د کور د سرې وکه
ما وې د دې بدل کښې به مېوې خورمه مدام
ما وې هم یو آشنا ته به د ګډ د شکورونه بڼ دمه
سه شوې په غوږو کښې کوپنډی کچه بادام
یو کال ئې خوخې او ایشار غوندې شروع کړے
چا دوه دانې چا شل او چا په مخه انبارونه

بل کال ئې نقشې جوړې د جنت د نظاره کړې

هر خوا ته بس ګلونه او ګلونه او ګلونه

سپرلي نو جنت ؤ یار وعدې د وفا کولې

هر ګل یوه وعده هره غوټۍ دعا سلام

باغچه د بوټو نه وه، منارې وې د امید

هر ښاخ د میوو ډک د یار د مینې وو پیغام

چینې وې، که چړې وې، بابا سیندونه، که لښتې وو

هر څاڅکي د اوبو کښې راز د حُسن و دوام

هر څاڅکي د اوبو کښې رنګ د حُسن د جذبانو

ارمان د مشغله، د رخسار چین ماچین او شام

او دا نو فصل ئې ګوره، د ګلونو نه میوې شوې

اول ئې د خمار بیا د طاقت جوړ که نظام

چه سترګو ته رنګونه وُ، نو ژبې ته مزې شوې

هر څوک پوره ساقي که وي خیام او که امام

او وائي ملاجان، شا به که او باسه شکرونه

دا شکر خو زما نیکه هم نشي پوره کولې

رنګونه او ګلونه، ته بخښې خو جهانونه

خو زړه مې خوټکني ده، او مضبوطې ئې بڼې

او اے دښاخکو به ستا مځا څکے دریابونه
سینلے نه ستا بیشماره ذه بس لپه شم د کولے

او ستا په سخی دړه کښې خوورین ی امبارونه
دِ تشو په کچکول د سوم هرونه دِ لګولے

را اوره غنی باغ ته دا په کمه بانډے لاړے
میوې چه دِ بخښے شوے نو په چا دِ اوخوړے

او دا خنګه میوے چه کړبورې د نړۍ شو
په خت دِ لګیدلے نه ګر نرے زیړے

هغه وګ یاره وا وره چه میوې په بخښیدو شوے
او بنګلے دا مے بنګلے وړه ته صبر کول ګران

په دوی کښې پیغلو کو د وصال سترګے وهلے
په مرګ پورے خندل وه، ګلډیده وړه ته خزان

نو راغلے پرے چینې . یاره پهسرنجه کښې دین شو
په رحم کښې دا کوان، د غلا او چل پروفیسران

په ناکو په پښتنګو، په هسرڅیز وړه حواله شو
د ددی په کور اخترشو، او نها په کوره تالان

الغرض، که شلتالو وو، که مڼه وه که املوک وو
ندۀ د آبئ باج

د پوست لکه ریښم خوږ خیرلو تیره دوک وو
او ډېر نازک مزاج
دا ژکښ چه دانه وي دده مور پکښ لنګیږي
نیاز بینه دجهان
دا ابله، د آفت خم ئې میوو باندې غتېږي
د سیلئ نوابان
سري م ور خواره کړه ماوے غوارم دا ساعت
بابو حبیب د داره
که اس، که موټر غواړې، پکښ زر دې دار خصت
سره د پچکانه
سري به تله راتله د بابو کرم وو دکان
منت. زاری. سوالونه
دے مینځ کښ لکه نادي ترې چاپیره با غونان
کول ئې منتونه
بائیسکل به تانګه کښ، که لبس کله موټر کښ
سري به م روان و
منت ئے منځ چه ترنه، صبب دو لے نواب زادګے و
مونږ. تر ے نقیه ان

آخر مې وے سړيتہ د روپو نوټونہ بوزے

دا افضل ربّانی دے
ایمان ئے بس پہ دغہ شين تصویرد خپل بابا دے

سوچہ پاکستانی دے
چہ راغے بابو کل، پہ رنگ او فکر ښاپیرے وو

پورہ پہ کمالونو
پہ عقل لږ میخین وو او کر بورہ وکښې نرے وُو

خوښکلے ئے پتلون وُو
چہ دار مدار وشو، د ځنبہ وایہ کنہ خان

چہ تا تہ څہ تکلیف دے
قسم دے پہ کار مړہ شو ګرم ګوخې افسران

خو زمونږ سړے شریف دے
سړے خاندانی دے ډیرے خوښې دی شلتالان

پہ واورہ کښې آمونہ
پہ کلہ کښې ئے لم لګی او پہ چرګو کښې پستان

پاستہ پاستہ ورنونہ
ماوے اے بابو کلہ، شلتالان خو دا دی ډیرې دی

خو دک دی د چینجو نہ

که دے خوړے آوازونه به دِنوی پوړ ته کیږی

بیګاله دَ بینجونه

مادے دبوړ زوبه ګوره کوره چه غونځیږی

ځار به لکه سیټهان

په خیته بنه ماره دی غوړے خیتے نے ځلیږی

تازه پاخه توتان

میوے یئے شوے دَ دوی زمانے تش کړاو تاوان

لښکیږی او ډیریږی

چه رزق تړے دوی او خوری زه به څه کړم بیابان

سړے پکښں پریږی

ما وسره یه زړ وړله څه راوباسه علاج

فوځونے ډیریږی

دَ باغ نه مِ شوه جوړه مقبره دَ سکه دَ راج

قبرونه دی زیاتیږی

هغه دَ داچینجی نه دی محبان دی دَ میوے

دی عام په کل جهان

دَ ډیرو باغچونه دوی کړے جوړے ادیرے

کړی ننغ پکښں باغوان

چه پوخ شي ونډ او کړي په هوا کښې الوزېږي

ماوے دَ بورے زو په ګوره ګوره چه غوغېږي

دَ دے دَ پارهٔ زمي کښې مونږ والے ځکاره شوے

دا رونه وو اجل وو

لمبولے په سنه شان موځانګے غټے او نرے وے

هم علم هم اَکل وو

چه داتے خَنګه پاتے شو په دے بانډے حیران یم

خو دے دَ دله شي کښې جوړه په ژمي کښې سا نه وه

ماوے چه څه کښې سا وه آخر اول مال دَ رَبّ شو

او سنه دوه چه دِ خلاص کړل په نصیب به دنیا نه وه

او ل غل چه به راغلے نو دَ چه ګوره دَ خلاص کړم

چرګ مے م خَسمَرے دے، پوار او نقصاني دے

اِیلے کمترے سپي او پیشو ګان دِ وارهٔ یو بهل

بنګله کښې بس یوزه یم او یو فضلِ ربّاني دے

او یاد دِ شي چه راوستل جیا نه ده نه دِ امداد له

ګني دِ ته خطا شول خو دِ موټ راله خروب کړل

دَ میښو دکتاکتو دَ غمه دِ کړم خلاص

غوایان دِ ته دُعا کړي تا دمه دمګ په خوب کړل

---

(۵) وا لے = وهلے.

دَ سرتونه اوزګار پاکے ښنکلے مو دیرے شوے
پخپله کاؤ دیران
خاموشے پہ غوجلوکښں دَ غوامیښبو نارے شوے
څه خوند وکه جهان
څه دَ مزے کارشو چه دَ دولسونه د ہرے شوے
اے پلاره دلقمان
دالمال دِ کوره چه، چه دَ نوؤنه زہرے شوے
کامل دِ اُستاذان
په بلغل چه پے راغلے، نولندَ بو چے دِ یورل
غوکڼے کوم پخپله
بخوابه غله زماله کوره لرے تبنستیدل
اوس زه تبنتم له غله
بوچے په اندهیرو اولندے په مالتان
د مہزو دارو خلاص کړل په میره کښں پیشوګان
خانی شوه دَ منګکو (٭) یوبرمیتو شو پکښں خان
څه ښکلے بنیادی جمهوریت ئے که روان
غمجے ئے پتے یورے، بهرے بنے دی امانی
اوس قبض دی دَ لوګے نه دَ فضل رَبانی

(٭) موږکو.

بابو عالي مقامه پو خو پښه وکړه نور

دَ خپلې پچکارې

چه نه کئ راته خوګ دا دنيکه دَ مال پېغور

او خلاص شوم دَ خوارئ

دا خوړکي ډي پاتې، صيب دَ دَ غمه م خلاص که

او نزکار يم لکه خان

چرګان ډي بيا کښي شوې سره بنګته خپې پاس که

خيشته لکه دَ ځان

بابو صيب وَ چه دانوي دارو امريکني دي

په نوم جمان صفاء

دَ مال خيراتي ډير څه انګريزي څه جرمني دي

خو دا پکښ اعلیٰ

دارونه دي داخان، بندَ بوتلو کښ وباده

پوا وردَ يو انګار

يو ماشے به کئ بل ته دا قيصے تر کهل آبادَ

او تقول به ښي فرار

وروکي صاحب وَ بنے بنے پچکاردي موښ وَ رکړې

يو ځل نا خوږ وارَه

---

دا دَ ايوب خان دَ وړهر شعـردے او هغه وړهوکښ نواب

کالا باغ زموږ کوربه دو .

خونه راځي قابو کښ، داځه شي دے بنځه مړے

خوارى پے ده بيکاره

بابو صيب وکړے بس باخو علاج ئے تبر کے دے

څښاکے ځغيږى تران

ميوه دِ اوخوړی سر داد لکما روپو لګے دے

قبلئ ئے افسران

او خان ته ميوے څه کړے تهيږدِير قبض کشا دی

مزاج به دِ تازه وی

سړے وی ښه خوشحاله چه نه تنش وی او نه دِ ک

او باد به اندازه وی

ورځه خان په تهيږو، رنګ ښه روک د آلوچے

تراوه مردار انار

ښوکے به کړے په خپله نه کنډکے ښته نه بوچے

بيګاله دِ دے وار

چه ګله کړے په توپږ وکښ مرچکی شی لونګين

څه دِ پيرئے مزشی

د لوئے نه توبه جوړه کړی، د روکی نه غر بين

او برغځے نشے شی

واوا، کرکمانئے ځينګے ليتهُ د کچالو

قربان تے چرګوتے

الو به کښې پوست مهين کړي په نکوږ دله تالو
او کوتې به خسته

بې کار دي مخ . خو ماتې او نا شپاتې
امرود زړوي د نمرود

منسورو (*) کښې مستي د هماې قربان ئې د پيستې
کلکين ږي بې وجود

غلې په ترنم کښې کچالو ته نه رسيږي
شتة دال کښې تنګ تکوږ خولې ادحيت سر کښې غږيږي
وږه په کچالانو بېنګ شه روک د آلوچې
بيکاله دې خوږ ګړي دو . نه لنګه شتته نه بوچې
چه خوږ شو به باغچه کښې د بابو صاحب بيان
چينجي شو را برسيره

د وکلي سرنا تې مخکښې بنجلوس عظيم الشان
زموږ نه شو چا پيره

يوغت پکښې را مخکښې شو به شکل معتبروو
سپين ږږې د ږږه مزاج

د ارمان چه ستا نه مخکښې ستا را غلې خو خبر وو
ليدو به د خراج

خراج که خراج نه د تحسين او آفرين
چينجې که حلال دي ، تا پخپو کښې به سر ژدي

(*) عدس په پښتو اصطلاح کښې [illegible] بولي په خوست کښې ورته منسور وائي په هند کښې مسور بولي .

شاباش ستا پچکاری او آفرین ستا سکنجبین

زمونږه روک نسلونه ستا په علم شو ژوندی

که ماشے که مینږے وکه ملخ وُکه د مبر دؤ

دښمن زمونږ د ذات

یو هم د هغه څ نشو که په سمه که په غر دؤ

په پنج (*) وُکه په سوات

هیله مو په آرام باندے سرو او خورے میوے

ماره خو ښه ماره شو

هیله مو قام شو خور او دے اوږدے مو سلسلے

نسلونه مو زاره شو

نور هر څه لره مرګی مونږ له ژوندے او رحمت

د فکره د قربان

په کمه ژبه کم قلم زه وکړم ستا صفت

ای پلاره د لقمان

مونږ ټول ستا سو زیارت او عبادت له یو را غلے

حکیمه بے مثاله

دا خان د میو غل د دادے کرځی ژوندے دلے

بے علمه بے کماله

(*) مطلب د پنج هزاری سیمه ده.

بابونہ ئے بابائے محافظہ مدد گار ؤ

سخی مشکل کشائے دَ نامے نہ قربان

بس دَ غلو بابا چہ شو قربان ستادَ پیزار ؤ

راخئے چہ تبرک لہ منگل کړو خپل مړنے خوان

یو غږ شو، او دَ غږ سره بابو صیب بوسارہ شو

بابا دَ سکنجبین

دَ خپلو مریدانو سره پیر غریب گانہ شو

او بندے شو مشین

ماوے اے بابو گیہ، خوارشے لاس کہ چچکا ہتے

چینجو دَ جناب گیرکہ، کہ تا دی نہ کئے نومړ دے

او اے دَ بوړے زوبہ گوره گوره فکر او کړه

یواخے چینجی زیږنہ دی چاپیره وطن زیږ دے

وړوکی بابوگی یؤ سیلئ دَ اوړ کړه جوړ

پہ خپیر کښے خوږه شو

چینجی مینجی خوره کئے مونږ نے تول کړلو بے جوړ ؤ

پہ سترگو موتیا ؤ شو

د تورو تیارو مونږه چہ واپس راغلو پہ ہوش کښے

وُ خپیر تش میدان

چینجی و باغ ته تلے بابو گے ولاړ وجوش کښی

خپل علم ته حیران

زمونږه بابو کل قلار، بے غمه او خوشحاله

په مزکه پروت و خوار

دارو په مخه بوته دَ جنت تو دے حلواله

په یونانړ بین ګزار

مثال دعلم مرشو، شو یتیم زمونږ قام

اوس خوک به کړی خدمت

دیرو کښی دَ میرے خپلوانو ښخ کړلوما ښام

په شان اڅ شوکت

دَعلم برکت و لوئے بابو شو بابو گے

افسر شو دپښتون

بولاس کښی چکاری کوځی او بل کښی تبر گے

او ښکلے نے پتلون

شو مور او س په بیخو کښی نے مست زیر او بم غږیږی

پش پش دَ چکاړه دے په آسمان زما چلیږی

چه زه وی یم بابو خانه گوره گوره چه غوغخیږی

بابو صاحب په ناز په انگریزے کښی اوخنایږی

وي خلا مې که شو چینچي نو محکمه زموږ خلا صیږي

ابنې مې دَ بخملو نه بیا چیټ الوان ته کیږي

او زموږ ده داسې بنګلې بنګله کلي کښ جوړیږي

بي بي مې ده خوشحاله په جامو کښ نه ځائیږي

او پرویز ده چه دِ خوري، خان ته یو شے نے دَ خوراک

چه څوک دِ خوري غمیږي

او ته که زړګ شوے خه یې، بس خس کم او جهان پاک

پیسے دِ نه زړه کیږي

مچان که افسران دي، څه خوغواړي دَ ژوند ژواک

په اَس مې څوک سوریږي

او جوړ که دکیګر نه یو مضبوط غونډے مسواک

چه خوله دِ نه خوږیږي

قیزه دَ قانون خُله کښ او بارونه لس منی

غوږونه دِ که مراوي او دُلکي بلخشاني

او "کاز" تا سو کښ نشته پوتے مینه وطني

وطن شو تول آباد سپینے بنګلے شین چمني

خوند چاٸے "اصفهانئ" کښ کي تري امریکني

دا ملک چه موږ کړو جوړ لکه جاپان یا جرمني

او باسے به شکرونه او ور کنے به شیرینی

خانان دی تول شومان قلنگ زمونږ و نه منی

هیڅ مینه د قام نشته، بس گنی، گنی، گنی

په خان باندے پوښتنے وشوم، صیب م (۱) نه کیښ ورخوندی که

توکړے م تورے کړو جوړه په اوبو کښ م نسکور که

پوړه په فلسفه م پوهے د مرے اوږوندی که

اوده به وے: بوړ بوړ، چه ما به لوږ غوندے پے زور که

خو خالقو را نه خلاص که وے پهانسی او دوزخ دواړه

د دے بابو صاحب په نوی خشت پوړے ترلے

بابو به د لکے لاړ سبنه کړ ندے د نهر په غاړه

نور بورش ئے افسرے وو خوښتنگ ئے ولړلے

شو باغ زمونږ ویران تاکی م زرک کړله گنی

جوار غنم م (۱) لاړل مالیه کښ آمانی

دک دک د غلے راغلل انگلوتان امریکنی

ښار به شو افسران خو چرته نه سنکاری غنی

هغه چینجو که مړ، که خوک منی که نه منی

یوازے اوس بنگله کښ گرځی فضل ربانی

---

(۱) نیره نهر.

# دلندن معشوقې

دلته خو اته ازغي دي　　بل خوا غاټکې د نرگس

د هنر علم سایه کښې　　گرځي گل لبانه مس

هم نوي نوي چال کړي　　خو ممه زه کښې دا خيال کړه

چه له کلوبونو واړي　　په ازغو کې نوي زړه غس (۱)

ډېر ورک کول ډېر په ورک کړي　　ډېر سپک کړه ډېر به سپک کړي

د دنبر لښې دي پېتې　　دي الکو کښې د تاوس

غني خان ملا باد نه کړه　　عقیل، دے برابر کړه

بلا کانو کښې ډېر وے

چرته مات نه کړے اوس



(۱) غس : غوځ

# عجبه فلسفه

فلسفي د ملک ورلاړو، وچاپېره يې علم
د خود سپين مشال په لاس. جلا کوي زيات او کم
فکر تيز، نظر باريک، دليلونه کلک ميخونه
د منطق په پاتکو، پاتکو روان به بې وسم
ماورې آ د هوش او عقل د رڼا بله مشاله
يو به خوده ليونې دې. هر يو سازې د ماتم
ستا د پوهې د د رباب نه يو قطره د رڼا غواړي
خو سوب د خندا غواړي. خو مطلب غواړي د غم
فلسفي کوي ستړي پرېږده. خله مې کړې ستړې د رڼا نه
خوړې خوږې د غم لوبې پښې را غلې ناګهانه
ورې آ: زما غمګينه زړه، خيښت وجود اې نه
د ده نور به هله وي. چې به پټو سترګو ګوري!
علم سپين رڼبان مشال د خپو نشي ليدې ستړي
د نور سترګې د ټې په زړه کړه. د نور د نړۍ دنيا ګوري
سمندونه د خيښت خو ګېر ګړي د منطق پرګوري
د غم باد د چاڼيو لي. تل د ستلاو د ...

وے دخود په میخانه کښې ستا دَ څښلو شراب نشته
چه دَ مینې ساز پرے اوری، دلته هغه رباب نشته
ستا نظر جدا نظر دے، ستا جهان جدا جهان
تا کښې وینه دَ مجنون ده، ستا نصیب کښې بیابان
ستا مستی ومې تالونه، په سندا دبور ئې تال کښې
دَ ملال په نری خط کښې وینے شو نڅے دَ جانان
لیونیه، لیونیه، دا ټول عقل زما واخله
خو بدل کښې راله راکړه، یو قطره دَ خپل ارمان
ستا د اوښکو نه قربان شم، ستا درد دو نه په تخیم
چه په دوا وو کښې خمار دے دَ خوبونو دَ جانان
ما چه څه دَ دنیا وار وو، دنیا څنګے کړے پاکل دے
خو ما تا وان کښې کته وکړه، مونږ په کته کښې تاوان
چه جدا ون دخیشت تالاشی، غم تش غم شی دَ دلبر
خوم مستے هر قدم شی، هر نظر خومرو روښان
راوره، راوره زره د راوره، چه زه په زړه کی ښکل کړم
هر ارمان خماری دے، مستے هره وسوسه ده
راکه راکه چه ژوند شم، وی[*] دَ مرګه یره مرګ دے
ژوند ارمان د او جانان دے، که امید که تلوسه ده
وایه وایه خوم مستے، دَ دلبر دَ شان قیصه ده
دَ جنون او دَ جانان دا، څه عجبه فلسفه ده

---

(*) وی: وایی۔

# کوکوشتو

همه بحث ئې فالتو　　　نه بس کړې اشنا قرتو
په چېل خانئې پوخ کمان　　　دا استاذ د ارسطو(*)

بنده کړې ذرې ذرې
دا بې واره تر ترې
پېرې خان کړې بنا پېرې
دا د دوزو ازمرې

کې مزه دېره مزه　　　صفت خله کښ د بلحیا
لا چه وشي پښي شا　　　شي مزه ې لا سوا

خوند خبرې کې د وار
غاړې غلې په قرار
خوږ رب خر د قند هار
چه خله ښکاري او ښيار

پوکشه دي پوره تهرتو　　　دا اوچت آواز قرتو
خان کښي پوخ جرکتو　　　دا د ختو کوکوشتو

---

(*) ارسطاطالیس د افلاطون شاګرد مشهور یوناني حکیم او پوهاند

# ترجمه د اقبال

زۀ[1] په زړو پردو کښې پټ يم
تۀ[2] زۀ په زړو کښې دننه
بس يو زړه دے چه نۀ غشے
تيغ د سلو وارو دځي

په هر وخت په هر مقام
د مرشې شکل جدا وي
هر ساعت جهان ورانيږي
هر ساعت جهان جوړيږي

د ژوندون راز بس سفر دے
دا بل راز ورانيدل دي
دا پخوا اقبال[3] زمانه
ډير خيشته رنګ کښې ويلي

---

(۱) زۀ (۲) تۀ زۀ هم، تۀ هم. (۳) اقبال. مجله اقبال لاهور (۲۳-۱۸-۲۰۰۲ء)

# دُعا

ستا د مینې په صحرا کښې زه سوړ پړق د لاله نه شم
ستا د باغ کشمالې نه شم، خوږ لوګې په هوا نه شم
ستا د سترګو مشغولا، ما کچکول ګنګرو وانغښت
سودائي خپلې سودا کړم، مجنون ستا په سودا نه شم
یو ګوټ سیخې او به نه شم، چې غرمه او کربلا ده
هر خار جانان جانان شو هر خمار بلا بلا ده
زه د سرو ګلو غوږ ورشوم، د ګلو بوستان نه شم
ستا د کوڅو په پردو کښې، لکه سُر بندیوان نه شم
راشه او ګوره دلبره، دا ما څه په څه بدل کړ
څه دې را کړه اې جانانه، څه دې را کړه څه مې درکړه؟



ترجمه د اقبال

# میلادِ آدم

عشق کړه چغه چه پیدا شو لیونے څیګر پیدا شو

حسن ورپیږدیږے، چه دَ توَل نظر پیدا شو

یو چغه له دے خاورے، دَ ازل تیاره ته لا ړه

اے پردوکښ پټ واورے، پرده سوځ شه پیدا شو

فطرت حیران خفه شو، چه دَ دے خاورے مجبورے

ځان جوړونکے ورانه ونکے، ځان لیدونکے سړے پیدا شو



# یو بې مهاره اوښ ته

ته اول هم زملو وروې — مړه را شه بیا مې ورور شه
یا مې سور د پښتنکي ګل شه — یا مې نر د ویښې اور شه
د پښتون د ځګر رحم — د پښتون د ورور خو تور شه
چه دده په سر غوږې وي
ته دده د مټو زور شه
کنې لاړې او ورکیږې
سر په کندو د کاروان شه
ته خو دې بنګلو ته رپې
بشیریه! کور دې وران شه



# سیندہ خہ سیندہ بھیږہ

دا قسمت دے دَ دریاب — چہ بھیږہ او بھیږہ
چہ پہ کمو ورشے او رشہ — پہ اَوارہ کښې روکیږہ
چہ یو ځائے کښې آغا نشے — او بل ځائے غلام نشے
نہ خوراک د کل مخلوق شہ — پلاړ دَ ویل موږ دکیوږی
زہ دائی شہ موراو پلاړشہ — د بنا مار او دہ چرګوړی
زہ چرګے شہ خوړشہ — چہ دِ غاړے شنہ توشی

او باغچے او چمنونہ او کلونہ اوکلونہ

چہ مابنام د ږاځی خوالہ — عاشقان غمګینے سترګے
چینګئے د رتہ ګلہ یږی بلے سترګے سرلاسئو

کلہ ډوب لکہ دَ غم زہ — کلہ مست زلمے ګلہ یږمہ
سیندہ خہ، سیندہ بھیږہ — سیندہ خہ، سیندہ بھیږہ
بس ھم دا دی چہ شہ یکے — دیو سیند او دَ بل سیند

واړه غرسره جلا دي آمو او اباسین

دَ جینډې او اباسین

چه خيالے زه په کم خیال کښ

په قلاړ جينډې کښ کم دے

چه راوي (*) په کم خمار ځي — دنو بنار لنډي کښ کم دے

سيند څه، سيند ښيرا — سيند څه، سيند بهيږي

دَ هر سيند وي خپلے لاره

هر یو خپل کور ته روان دے

د هر يو خپلے دشوارے — زه چرے چرے شه اوډد

چه دِ غارے شنه پتی شي او باغچے او چمنونه



(*) راوي: د پنجاب له پنځو مشهورو سيندونو څخه يو سيند.

# باډیوه

ښځې دِ پرېږي څه مستانه دِ رفتار دے
کوره دَ کاغذ نه چاچوکړے خپل خمار دے
باد ته دَ عاشق په شانِ خاندے خوشحالېږے ته
مستهٔ سولۍ ماره دَ طاؤس مسې ګډېږے ته
بے جرړو کلابه په آسمان کښې زرغونېږے ته
زړه دے دَ قسمت په تار تړلے ګرفتار دے
ټول رنګین خمار دے خو مجبوره همه خمار دے
دومره ویړ آسمان کښې دَ خپل رنګ ښاغلي ښکاره کړے ته
باد باندے وسپور دَ لاندے خاوره ښنداره کړے ته
چونکه خاوره وجود دی لېونتوب یو تراره کړے ته
ته د بنیادم دَ بخت او تیښتې یو تصویر یې
یو رنګین خمار په تار تړلے دَ تقدیر یې
زه هم ستا په شانِ کله کله په هوا شمه
پرېږدم خاکي ځان بس یو ارمان یوه دعا شمه
خوب شم د امید، دَ ژوند رنګینه مستولا شمه
چه قسمت ووډي (*) راشه سَرِ م ستا پکار دے
اے دَ آدم نیکه ستا د خاورو سره کار دے

(*) ووډي : ووهي.

# تالئے

ژوندم تال دی ژړې زانګم
زړهٔ دَ خیال په نیلی سوړې
دَ قسمت پړی اٰکوره دی
خیږمه پرے تالئے
څه دی څه دی بد که ښه دی
دَ دیواله اخوا څه دی
چه محراب دَ ملاجان دے
که خمار دَ ملالئے

زړه دَ مستو په زور پریم
زړهٔ په ورېږی نظر پریم
زه دَ ځان سره سیالی کوم
زه پرے نه یم په سیالئے
زه دَ خیشت مقام لټومه
رنګ ، آواز ، خیال او نظر کښې
لکه څاڅکے تله واخلی
تلی زړور په سمندر کښې
که د فکر نظر تیز دے
دَ قسمت دیوال محکم دے
دېخوا ، دېخوا خو به سم کم
خو دا غم دا خوا غم دے
زه پوستے در نه څاڅکے
په یو تور او روک جهان کښې
دَ خپل خود په رڼا ګرځم
دَ قسمت کوڅے لټومه
دَ تال پړی که پاخه وی
که نری وی که رواسته (۲) وی
زه تالئے خو به خیژومه
زړهٔ تالئے خو به خیژومه

---

(۲) رواسته ، وربهسته .



# خیام

اے خیامه ته تش غم یې، تشه تیښته تل فرار
ته د جام او ساقي یار یې، یو خیشته رنګین انګار
عجیبه غونډ جنون یې، نا امید او بې قرار
ستا احساس د تن بند دے، په یو ښکلي رنځ بیمار

ته لمبه یې د تلاش، د لمتون او د ارمان
زړه او فکر د خزان، ښکلې ژبه د بهار
سر د بحر سرې چپې وي، ډوب یې ورځ کښې قرار
ته کښتۍ د ګلو ډکه، سر سري د کښتۍ لاړ

آسمان پلار د صبا، هم بچې دے د پرون
دا هم جام د هم ساقي دے، چه وصال او څه بیلتون
دا یو ساز دے چه روان دے، د آواز د سرو کمال ته
یو د ډنګ څاڅکے چه څغلي، څانګېن (*) د نیږ تال ته

---

(*) رسۍ ، رسوۍ.

دا ستا غم خو غنچه غم نه دے، چه ډوبېږي په یو جام کښې

دَ امید سپوږمۍ مې دَ پټه، تورو وړلو دَ ماښام کښې

په دے مست ښکلي دماغ دے، تور خوږ شوے دَ مرګ جال

دَ ساقي جمال پټ کړے، ستا دَ زړه نه بل جمال دے

یوه مسته او شیرینه، عجیبه دَ غم نغمه یئے

دَ سرو زیړو ګلو دکه، یوه نګینه مقبرئے



# روره قلندره

روره قلندره (۱)

څه په پته پوے شوے چه دا ښکته څُے که بره
دے کښې څه واره شسته چه سړے وکړی خبره
لسو بلا ځکانو کښې ده، کمه بلا غوره

او روره قلندره

مانه خفه شوے، که خفه یے دَ اشغره
کله کله مونږ له هم راځه دَ پیښوره
ښه وی چه یارانی وی دَ سړی تکړه غاړه
نوم، ناموس، او خوی او همه خونه معتبره
خو بیا په کښې پکار دے دا زما غونډے سره
دا په کښې کنجکه چه ساقی مو دَ نظره

او روره قلندره

دانا تا رخبره

(۱) زما محترم دوست قلندر مومند چه په ۱۹۷۰ع کښې د شهباز اخبار ایډیټر وو.
دے شعر کښې هم د دغه کال الیکشن ته اشاره دے. (غنی)

ــ کټې د زندان او قلا دواړه د یوغره

او روره قلندره!

را خو څوک دمته غواړي څوک یې د خکره

زه کمزوری نه یم وي کمزوری بې ضرره

مونږ نه بل وژلے شونه خان له لرو زغره

او روره قلندره!

ډیرو کښ ضرره چرته کښ ورانه شي خبره

بس د نور به چپ کړم خو بس دا یکښ د سره

دا څنګه سیلونه دي هم ښکته خي هم بره

مغه صاحبزاده (۱) ته وایه یا پیره کافره

خلاص دِ موږ یدان شه د تاتار د بربره

ستا قیمت به ډیروي هم یاران د بے لمبره

سر د آشنا نه ځاري یار، ځکه خو د خان د سره

او روره قلندره! (۲)

نوره که څه ورانه وي نو ته نے کړه برابره



(۱) صاحبزاده فاروق د کوټې. (۲) استاد قلندر مومند. نوم یې حبیب الرحمن دی په ۱۳۴۶ کال پیدا ګړے دے ... استاد قلندر مومند شعر ... ګل ... کلام ... ساتو ... صاحبزاده ... استاد ... په پښتو ... کړے دے.

# نوے سیاست

دَ اوښیاروُ لاړے م ډیرے زده
خو زما دَ شان دغه لاړ نه ده
زه د زړو صحرا وو ارمانی یمه
زما بخت کښې کوخه دَ ګلزار نه ده
زه یم خاوره خودیره بے تابه یم
ما مو نتلے لمحه دَ قرار نه ده
دا دَ دغه غو منډې ځ ده دَ سودا و زیان
دے زمونږه دَ ډکر یو بل جهان
دلته ښځے[*] به یو او خرڅے به بل
دا بازار تنګ او کړته سامان
دلته مینه وفا او غیرت او رښتیا
چه بے سوده ئے کړے نو خرتوب دے
دا قصه بس دَ جړک او ډیران ده
خو پرے نوم دَ او چت سړیتوب دے

(*) ښیبې .

# زما لال

(د مور قبر ته)

زه د هغې لال زه د هغې د سترګو تور ومه

زه به د هغې په سینه تل اوده نسکور ومه

اوس یې ښکته ښکته د مزار کاڼو ته ګورمه

خاوره کښې پرته ده چې زه د زړه ملال ومه

هغه لال شو خاورې چې زه ورته لال ومه

لاړه مه آسمان ته ماورې اې د جهان مور سپوږمې

زور د مرګي زیات دے که دې یاد د مینې زور سپوږمې

آورې به لحد کښې څوک د سوي زړګي شور سپوږمې

مور تې خاورې ښکله پټ د حُسن یو جهان کړے

یو پوکې آباد دا چمن ښکله بیابان کړے

ګیله مې نه جوړیږي چې ظالم اوویم رحمن ته

مرګ چې د جهان بادشاه کړم څه وایم خان ته

ولې دروازه د علم لو نه شوه انسان ته

سیال نې د ځان ولے کړم چې زه د خاورو سیال ومه

هغه لال مې څه شو چې زه ورته لال ومه

# کنی دنیا ښه ده

دَ سغمي لږ خوب — لکه دُنیا ښه ده
نیته سے لږه ده — کنی دُنیا ښه ده
خوَل وائی جغه ښه ده — خوَک وائی دا ښه ده
ماله زما ښه ده — او تاله ستا ښه ده
چاله ژړا ښه ده — چاله خندا ښه ده
زړه دَ مجنون له — خپله لیلیٰ ښه ده
زړه دَ مُلا له — توده حلوا ښه ده
چاله مستی ښه ده — چاله سودا ښه ده
چاله محل ښه دے — چاله بیدیا ښه ده
دنیا هغه ښه ده — که دنیا دا ښه ده
چاله هغه ښه ده — او چاله دا ښه ده
ژوندی ته ساز ښه دے — مَرته دُعا ښه ده

بنیا له سود ښه دے | ماله سودا ښه ده
د ملا عقل له | خله د ملا ښه ده
زما کوتک نه | ملا دَ لاله ښه ده
مزدور وے خان ته | خبره دا ښه ده
ماله تیر بد دی | تاله حلوا ښه ده
دَ جرمن توپه ښه دۀ | دَ صیب قلا ښه ده
زمونږ تمتو ښه دے | دَ پنډت غوا ښه ده
حبږ ښه دَ کاندهی (*) | خله دَ جنا ښه ده
چاله هغه ښه ده | او چاله دا ښه ده
ماله زما ښه ده | او تاله ستا ښه ده

نیته ـــ نے لنډه ده

کنی دنیا ښه ده



---

(*) کاندهی، کرم چند موهن داس (۱۸۶۹ - ۱۹۴۸ع) گاندهي د هند مشهور قومي مشر او سیاسي رهبر.



# پلوشه

په غمونو کښې خندا کړه — په خندا کښې غم هېر نه کړې
او د ډېر و په سودا کښې — چې قیمت د کم هېر نه کړې
د وصال په لمغرو کښې — د فراق ستم هېر نه کړې
دا چې تن دې ستړګو تښخا نه کې
د دې ستړګو غم هېر نه کړې
د الله الله په شور کښې
چې صنم صنم هېر نه کړې



# دعا

اے خدایه عقل راکه — اے خدایه پو یه را
زړه کے مضبوط راکه — او سینه لو یه را
ستر کے د نوړ راکه — رحم دَ ځان را
بیا تول غمونه دے — دَ دے جهان را
ما تئے په سر که — زار درنه شمه
زه به ئے اوړمه — زه به ئے اوړمه
یاړ بهادړ راکه — که همت نه را کے[۴]
غیرتی روړ راکه — که غیرت نه را کے
دَ سکندړ بخت را — دَ دارا خیال را
مټ دَ خالد کښی — توره هلال را
اِسلام دِ پریږده — زار درنه شمه
زه به ئے کټمه — زه به ئے کټمه
دَ شپے خیمه کښی — د عشق شراب را
پاک مل دَ لاړے — لکه ګلاب را
دَ سپوږمئ نوړ راکه — لوبو کولو له
دَ بوډئ تال راکه — جوتو وهلو له
جهان دِ پریږده — زار درنه شمه
جنت به ئے کرمه — جنت به ئے کرمه

---

(۴) نه راکے ۔ نه راکوے ۔

# هَو برکیه هَو

پینبن په لیونی باندے شو پینبن لیونے یو

وے روره په یورپ کښن سړی کَی دَ سرولو

بانګ کښن د سبا پرون نوے تمه داو ریده

تلے وم خالصے ته راته ئے اُووے "تېکے ناوه"

پرېږده باچا خانه دا دَجیل قیصے دِ خوښی دی

دال م نه هضمېږی نه عادت یم په پولاو

واوره دَ یورپ نه دَ انصاف خوږے خبرے

واوره مزے واوره دَ پیشو بی بی میاؤ میاؤ

یو نهنګ غټ شے شو دو کبان ئے ډیر خوړلی وُو

بل نهنګ پرے راغے او به سرے شوے دَ تلاؤ

یخے دَ قسمت کوتے مروند کله مړی نیسی

خپے که خان له ماتے ګډاکی کړی په داؤ داؤ

محبت بے وفا یار دے دیو غیږ کښې باڼه خاندي ګل

وېرون غېږ سوسن د صیب سرو و

خالہ خبر تنبا بہ چاته خاندي خندوي بہ خوږک

موږ نه خو خفه بوته ملا علی داو داو

دلته چرګو نے د ګرکه جنګ ے پہ آلو(*) وشو

ورکړو د چاښے(+) موتر له بیا فبرنګی تاو

کوږ کښې د قصاب غویان پہ اوچوتا نتو نښتي دي

ھولنډیہ، ھو برګیہ، ھر چرګیہ ھو

جنګ عظیم ۱۹۴۳ع



---

(*) آلو: ھګۍ، ھګیو. (+) چاښے: ګلی.



# پلوشه

ځي د قبلې نه لیوني ترې خبر نه و
سترګې دې وازې د انسان په تماشه

عکس د سپوږمۍ دې د شبنم څاڅکي کښې اوليدو
خکه په سجده شو او مسکې شو د جانان په تماشه

نښتې د ژوند د خوب تعبیر کتاب کښې نښتې
سترګې د کړه پورته د آسمان په تماشه

خدا مې که کښې نښته د منصور د خُلې م واوريدې
و رهشه لیونیه، مشه د ځان په تماشه



# حقیقت او مجاز

دا دوه حورې د جنت دي دي شرابو کښې لامبو
که م سترګې د جانان بیا شولې ډکې د اوبو

چه د مینې په مذهب کښې شک کول کافر کېدل دي
که منم دي کافر کېږم خلاص به نه شم په توبو

د نرګس ګوټې کښې پیلې د سپوږمۍ د شغلو جالې دي
په کښې پروت یو لیونی دے چه مجنون دے که بلال دے



# اوه، چه تول عمر ماشوم وې

بې پروا لکه لولو وې په کلونو کړ زېږدلې

او چه تول عمر ماشوم وې، په بلا نه اوړېدلې

دَ دنیا دَ اوږ سترګو، بې خبره ګوزېدلې

چه په خُله دَ جانان نه وې، دَ فراق وړته غزلې

بې پروا لکه لولې وې، په کلونو ګوزېدلې

بې خبره چه آدم وې، دَ رازونو د هوا نه

نه آشنا مجنون او ده وې، دَ غمونو د لیلیٰ نه

او چه حُسن خبر نه وې، د خپل حُسن دَ غوړ خنګه

دا زما زړه نا آشنا وې، د دې ښوبلې دَ جنګه





# پلوشه

اور د بند وه مثال لکه د خس دے

تو د شی لوګے وکړی رڼا کړی جوړه

لمبه شی وسوځی خاورے ایرے شی

بوده آبی پرے ژړا کړی جوړه

# ته او زه

مجنون وې لیلیٰ پوې نه شم — چې ته ښه ئې او که زه

بلبل ګل ته په خندا شو — وې دا څه وائې دا څه

ګلاب رو په نیاز مسکې شو — وې که زه یم او که ته

ته ئې زه او زه یم ته — فرق زما او ستا د څه

هغه چې فرق لرې زموږ — نه پرې پوهېږو ته او زه

لیونی که سر راپورته — وې جواب وَلې دَ څه

صوفي خان که ډېر کړې سترې — که د ښو نه ښه شې ته

خو دَ عرش پایوله نه ځې — دهاؤں هاؤں چغې دَ څه

لیونی سترګې کړې ښکته — وې لید شین روکې وا ښه

وای زما دَ روح خاونده — چې دَ ښه دې او که زه

د نسیم یو چپه راغله — خوله زما خوله دَ وا ښه

تې په خپلو شونډو ښکل کړې — دواړه خولې په یوه خوله

لیونی لا لیونی شو — دا ئې وې برې کا ته

هیڅ په پته دِ پوئې نه کړم — چې ته څه ئې او زه څه

---

(٭) پوهېږو = پوهیږو

# دَ زړه په کیدو

اوړه یو ذره دَ نور وه — شوه دریاب کښې دَ غښت ډېره

په خوبونو د ځوانۍ کښې — یو شعله دَ نور پېدا شي

دا نرۍ دَ هلال شوندې — دا دَ دوو ستورو رڼا ده

دا د مځکې خوب تعبیر دے — چه ووُ ما اوتالید لے

دا هم ګل دے هم بهار دے — هم سازونه دَ بلبلے

دا چه ستا نیاز بینو کوتو — دَ ازل ښائسته لاس کښې

دا ګلابي ترې راواغشت — په نورونو لمبید لے

دا چه ما غمګینې سترګې — په ژړا کړے بره پوره

دا زما دَ غم جواب کښې — سپوږمۍ ګل دې رالیږ لے

دا او به دَ واوریچینو دی — دَ دریاب په طمع درمي

دا هم زه یمه هم ته ئے — هم زما او ستا خوبونه

لمبه جوړ ترے اباسیند کړے

په ګلونو کښې بهید لے



# ګډې وډې

ورځ مې ورکړه زړګي له او شپه مې ورکړه ستورو له
خان له چې کم عقل شوم، شوم هله او بنیا نورو له

سترګو د جانان کښې کله کله د ګل پاڼو کښې
زه ئې هرځائې وینم شیخه جوګه جمات نورو له

لوې جنجال ئې جوړ که چې ئې ویش د نصیب وکه
دومره رحم سپینو له او دومره عقل تورو له

واچوله نیک تالې ملا بابا په خیټه موړو شو
زړه د غریب ستړو زړو په تلو جنانو سپورو له

دا عجب انصاف د ساقي ستا په میخانه کښې
غوږ د غوږو د رباب او څاڅکې نه ځي نورو له

غني

# خندا او ژړا

دساقي لاس کښې شرابې
يو د غم يو د خندا
ما پياله تشه نيولې
ستا د فضل په سودا

اے ساقي چې کم دي خونړۍ په خندا خندل نے را
ليونې يم کارم نشته په خندا او په ژړا
زه يم ستا د سترګو تږے تږے نه يم د خندا

دا پياله م که لبريزه
که خندا دي که ژړا
خو چې تږے م پرېږدې
ستا د حُسن ميخانه



# چه د مستۍ نه
# هستي جوړېږي

پوره سپوږمۍ چه رو رو کمېږي
ژوند ئے پخېږي غم ئے زیاتېږي
ډېر ارمانونه پوره او لږ نیم کړے
چرته محل یو نیم ډیرے جونګړے

ستارکښ شړنګ هغه د ماښام نشته دے
سرور په سترګو کښ د خیام نشته دے
د نور شغلو کښ شفق غرقېږي
چه د مستۍ نه هستي جوړېږي



# وه مُلا

ما ته یاد خپلې ګناه کړه — تا نه هیر خپل نیکئ کړه
ما جانان که دلربا کړه — تا تکې او نا تکې کړه
ما د خپلې مستۍ تاج کړه — تا د خپل جهل لکئ کړه
ما اوسپنیاره د جهان پلاره کړه — تا جولا د ویتکې کړه
ما ترې مینه مستي جوړه کړله — تا کانه په دوه ځکنې کړه
ما د حُسن سمندر کړه — تا شوق د مسلکئ کړه

نو اوس وایه ملا ته
چې ته خوښئ کړه زه؟



نه په لیونتوب د فلسفي کړل خرچ ږه — نه فلسفه ترخه کړه جوړه لیونی
داکړه ورځ دنیا کښ ورته وانه ده — بوره دوه په دې بدبخت د خوار غني

دا دستور روشان دی دوخت تلل د ساز لید
سه خوند لا دے چې نه یو پیر او شو کنی

# ژوند

ژوند م دوب د دریاب د رور وخور شو سمندر کښې
خاشکې روک د دریاب کښې شو په طمع د ساحل
بخت کښې د سیلاب دی په مستۍ په چپو تلل
نه ورځې د دریاب له غوندېدل او دردېدل
دے لهر د سازله تله ژوند ون او دریډ مرګ دے
زیرے د ماښام دی د سحر راځلیدل
ګل دے دے چپے کړو د ابد مستانه تال ته
اوګر نڅوه سازے تار خانو کښې د ازل
لاړ لیونے لاړچرته د نور شغله کښې دوب شو
خاشکے روک د دریاب کښې شو په طمع د ساحل



اے دانګور بچورے
اول چه را غلے به ته
په قول عقل کښې به دې
خند ابر سیره کړله



او اوس چه را شے ته
درد او تیاره راولے
دنیا دې کمه کړله
ژړا دې ډیره کړله

# عشق

سوزنه دے عشق سازنه دِعشق ، آه او ګریان نه دِعشق

مسته رنګینی دانه ده ، غم دَ جانان نه دِعشق

خوب دَ ځوانئ نه دِ ، دَ خوبونو ارمان نه دِعشق

مینه د ملیار دَ سترګو ، وخت د خزان نه دِعشق

تورتش دنیا رېدک ، دَ تیرو بیابان نه دِعشق

مست د امیدونو ، یو دریاب روان نه دِعشق

سترګو کښ که راشي دَ شفق سره دَ خمار

عقل له که راشي دَ سپوږمۍ دَ رڼا تار

دے مستانه زړه له یوه حوره دَ تاتار

دا دَ مستئ حد دے او دَ حد بندیوان نه دِعشق

مسته رنګینی دانه ده غم دَ جانان نه دِعشق

عشق یو وجد دَ رب دے په وجدونو دانسان کښ

یو دَ مینے ساز دَ زړه په سوي قبرستان کښ

روح دَ روکی ګل دَ سپرلي سترګو دَ خزان کښ

مرګ عشق ته حیران دِ خومرګ ته حیران نه دِعشق

خوب دَ ځوانئ نه دِ دخوبونو ارمان نه دِعشق

# په مردان مارچ د باچا خان

راشه اے خوشحال بابا — اے خالده ارجمنده
پاڅه خانه مه تښتی — دا تماشه او وینه

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لری
نه د توره پرق لری
نه د زغره شرنګ لری

زور د دښمن نه وینی — داسے لیونے روان
دار او رسن نه وینی — دا د مستانو خان
دا د پښتنو ملنګ — څه بادشاهی ننګ لری

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لری

سپین مخ د لیلی وینی — دشت بیابان نه وینی
زړونے د دیوار مانه ړک — غم او ارمان نه وینی
سرے د باتور ستړے نے — مینه ر ننګهار ننګ لری

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لری

تاج ئې د ازغو په سر　　　مست لکه مجنون روان
نوم د پښتنو ګټي　　　زوئې د د پښتون روان
نر، داد نرانو خان　　　څه غیرت او ننګ لري

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لري

سرې کېنبود خاور وکښ　　　مرګ له ئې سینه ورکړله
د پښتون د سر صدقه ئې　　　خپله وینه ورکړله
وے هر څه م دتا م دي　　　والله، هر څه چه ملنګ لري

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لري

اے د پښتنو بچو　　　دا میدان م هیر نشي
سپین سرے د ویو ډک　　　حفه خان م هیر نشي
پروت دے دلته خاور روکښ　　　دا مکان[۵] م هیر نشي
پاڅئ ننګ پرے اوکړئ　　　خدایږو دیر په ناسونګ لري

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لري
نه د تورو پرق لري
نه د زغرو شرنګ لري

---

(۵) میدام. میدان شو، حام حاضر شو، مکام. مکان شو.

# پوښتې

د سپرلي شپه وه مسته مستانه — ستوري کېدل دېرې ورښان روښانه
سپوږمۍ ولاړه وه ښکلې حیرانه — لیونی سوال اوکه د خپل جانانه

رڼا م پوښتې له د لامکانه دا
مستي م سترګوله د خپله ځانه دا

د خپله ځانه یاره د خپله ځانه

لیونی سوال اوکه د خپل جانانه

ناګاه برق شو دریاب د نور راغے — خه به مستې راغه به سرو براغے
مستي شوه کونګه مستي کویانه — لیونی سوال اوکه د خپل جانانه

او لیونی وریته ذره ګے که لرے
دېره به خوار درکښې ځا شو پوښتې
نور دکے د ځانه و دکے د جهانه

لیونی سوال اوکه د خپل جانانه

دریاب د نور لاړه خیشت او دناره لاړه — او د جانان مستي جانانه بیا لاړه
لیونی پاتے شو خبرے کویانه — د سپرلي شپه وه مسته مستانه

# سوال وجواب

لیونیه مکه څه ده — مُلا کور د یو عاشق دے

کو تمنې دی کینے دیرے — د مور رب خالق دے

لیونیه ایمان څه دے — مُلا دا دے پوخ گمان

دَ یو خوب په نیم لیدو دی — دَ وصالونو دَ جانان

لیونیه جنت څه دے — مُلا ستا جنت پیتی ده

او زما جنت وصال دے — یو خمار یوه مستی ده

لیونیه حوره څه ده — مُلا سپینه لوګے ده

یوه کرښه دَ شفق ده — دَ خندا بُربُره کُلے ده

لیونیه نشه څه ده — مُلا دا په سیل واته دی

د مستۍ رنګین محل کښ — دا واته ننوته دی

لیونیه چه نموخ څه دے — مُلا خاورے بنګلول دی

دَ جانان کوڅے ته تلل دی — دَ امید ارمان کیدل دی

لیونیه سجده څه ده — مُلا ځان خاورے کول دی

دَ مستۍ د ښکلو مار — دیار څپو کښ اچول دی

لیونیه ژوندون څه دے — مُلا نه ویه ژوندون
داز ما دَ خوب لیده دی — دَ سبا او دَ پرون
لیونیه وصال څه دے — مُلا خیشت کښې دو بیلتون
دا په ستورو کښې بلیدی — په سپوږمۍ کښې خوریدی
لیونیه حُسن څه دے — مُلا لرِ دِ خمار دے
بومُسکے مُسکے شان خیال دے — یو نرے دَ رڼا تار دے
لیونیه جانان څه دے — مُلا روغ ورته نه کوړي
لیونی سے میله (*) دینی — دَ تاو کړو با نوسوړي
لیونیه ته سے څوک — مُلا نه ووه دَ چا ارمان

نه یو کل دَ چا دَ کوتو
په قدمونو د جانان



چه سے خودی دیره شی دَ خودے رنګ ورکی
یا د بوډا توب له غم د ځوانئ رنګ ورکی
غم چه ډیر زور او کړی د خوشحالئ په شان
د ژوندون تارکه رقصانه شی رنګ ورکوی
سترګے چه تشے شی خوبونه ډک وینی
په تش کاغذ مصور مستانه رنګ ورکوی
سحر له شپه ورکوی شپے له سبا ورکی
دَ فلسفیانو سره ور رنګ ور رنګ ورکی

(*) میله = بیله.

# اے دَ لیونیا نو نیکه

اے دَ لیونیا نو نیکه حسن که وفا ښه ده
برخه دَ مجنون ښه ده ، که برخه دَ لیلیٰ ښه ده
وے اے زما بچیه ، دَ دلبر دَ خُلے هوا ښه ده
یخه نرمه لا ښه ده ، تیزه کړه لا ښه ده
تاو دمخ دَ یارہ لو پته ، سره رنګینه لا ښه ده
زیره ښه ده توره ښه ده ، تکه سپینه لا ښه ده
نو اے زما بچیه حُسن ښه دے هم وفا ښه ده
برخه دَ مجنون ښه ده ، هم برخه دَ لیلیٰ ښه ده
ښه ده فقیری نیکه ، که ښه دیره دنیا ښه ده
ګل صنوبر ښه ښه دے ، که خُله دَ محبوبا ښه ده
وے اے زما بچیه سوره عقاب له دَ غره ښه دے
ګل دِ صنوبر له ښه ، او ګل له صنوبر ښه دے
جام له قلارے ، او سمندر له طوفان خوند که
سترګو له مستی خوند که ، او زړه له ارمان خوند که
نو اے زما بچیه فقیری ښه ده دنیا ښه ده
تخت دَ سلیمان ښه دے جونګړه دَ عیسیٰ ښه ده

آخری

# شهید

اے شهیدٌ! اے عاشقه اے بچیه دَ منصور

په خندا جانان له لاړې، دوب دریاب کښې شوې د نور

نادانان دې پسې ژاړي ماشومان درته مجنون وائي

لیونے درته پیغمبری اے ایرے دَ کوهِ طور

ننګیالیه سرو درکړ د یار خپو کښې دِ لوګے که

اوس یې ګوره مسکے سترګے نښکلې دِ کے دَ غرور

مار او ورے تاله نه دِی د سرو ګلو امیلونه

د جنّت بلبلان څه کی دَ دُنیا دَ باغ ګلونه

تا کړے خپلے سترګے خاورے چه زما پرے شی روښانه

تا قصه زما دَ درد بره یوړه تر آسمانه

ستا دَ وینے څاڅکے څاڅکے چه تا توے کړه دَ آرمانه

ما ته سرے دیوے بلیږی په کوڅه کښې د جانان

دَ دنیا تاجونه خاورشه ستا دَ بخته ستا دَ شانه

د لیلیٰ په ښنګون پروت ئے د مجنون څیرې ګریوانه

مار او ورې تاله نه دی د رامبیلو امیلونه

دَ جنّت بلبلان څه کی دَ دنیا د باغ ګلونه

# منصور

منصور یو لیونئ وُ د معشوق اداب ئې تعمیر کړه
منصور یو لیونئ وُ دَ مستئ شراب ئې دیر کړه

وې مستي دا ځ مانه ده دَ جانان دستر کو نور دے
زما دَ خُلے خبرے هم تورات او هم زبور دے

دا رنګ زما دستر کو نه دی ړنګ دے دَ جانان
دا شرنګ زما سینه کښې دَ خپو شرنګ دے دَ جانان

منصور چرته لیدلے دَ مخ نور و دَ جانان
دا مست چه پرے منصور شو دا سرور و دَ جانان

وې دَ حُسن ارمانی نه یم زه دَ حُسن سمندر یم
زه مست لیونی نه یم ، زه مستي دَ بحر و بر یم

دا رنګ زما دَ ستر کو نه دے رنګ دے دَ جانان
دا شرنګ زما سینه کښې دخپو شرنګ دے دَ جانان

عالمه را شئ وا ورئ چه زه نور او زه رڼا یم
زه ګل یم زه بلبل یم ، زه وصال زه محبوبا یم

منصور خو خپوا ډوب شو دا آتش نور دے دَ جانان
دا نه دے منصور نه دے دا سرور دے دَ جانان

خبر پرے ملیان[*] شو وے منصور خان ته الله وائی

دا کفر دا غرور چه ئے هر چا ته برملا وائی

و نے کا فر ہے شی سنگسار دې پلیت نه شی جهان

بادشاه دَ لیونو ئے زولنو کښی که روان

منصور و ئے خلقه واورئ چه زه نور او زه رڼا یم

زه گل یم زه بلبل یم ، زه وصال زه محبوب یم

منصور خو پخوا ده وب شو داتش نور دے دَ جانان

دا نه دِ منصور نه دے دا سرور دے دَ جانان



---

(*) ملیان : ملایان .



# څه وُ

دا په سترګو د مریم کښې چه ژړا وه که خندا وه
چه ئې سور په صلیب اولید د عیسیٰ د زلفو ول

دا څه او وایه تا ته، چه رحیم ئې که رحمٰن ئې
چه په خاورو کښې کړے خاورے د ګلاب ښکلے اوربل

دا مستي وه که معراج وُ دا جهان ئې چه روښان که
که د نور دیار د سترګو دریابونه بهېدل

چه دا کفر که ایمان وُ، چه دا ژړه ئې لیونے کړم
چه دا غم م په خندا شو که مستے م او ژړل



# پیدائش

او ماخان له ساز که ځپله جوړ

دَ خپل خوب نه دخپل خیال نه

دَ خپل غم نه دَ مستئ نه

دَ خپل تول نه دَ خپل تال نه

او ماخان له یار که ځپله جوړ

دَ خپل سوز نه دارمان نه

دَ خوږونو نه دَ رنګونو نه

دَ ګلونو نه دَ خزان نه

او ماخان له غم که ځپله جوړ

دَ خندا نه خوشحالئ نه

دَ وصال نه دَ خمار نه

دَ بهار نه دلوئے نه

او ما ځان له ژوند که پخپله جوړ

دامید نه دَ رڼا نه

د تیرونه د بنیرونه

دغمونونه دسودانه

او ما ځان له مرګ که پخپله جوړ

دَ ژوندون نه دَ مستئ نه

دَ سپرلی دَ زیرو ګلونونه

دَ لالونونه دَ خوانئ نه



# ګړے وړے

## دا څوک دی؟

دَ چا نه خفه دے او چا ته پقار دے　　په ژمي واوره شي په اوړي انګار دے

پلار نے ژوندے دے خو دے خپله پلار دے　　په ګډه ورځ سفر په نوے آير ګل او ګلزار دے

په بلا نے پيان دے خو په سر نے دستار دے　　په لاس کښ نے تيغ دے، په خله کښ بنامار دے

د شيطان مريد دے خو د خدا آشنا ابدار دے　　خبرې نے يو نه مني، خو هسے يار دے

په جر مست لکه خر، په سر کلک لکه غر

په نړۍ سپے لکه سپے، مرېرا قرېرا

په خوني خوږ لکه کوک، تش ايمانے د پوک

يارانه نے ليقرے لکه سخا ايرېړه

کله ماول د پيشو، کله غپ د خرو　　کله غم د زړګي، کله برېر برېړو

کله شنګ د ليلي، کله رنګ د مُلا　　کله شپول کله زوږ کله ګل د لاله

کله پرېږد سونډه، کله سوېيت د دهش　　د دوشان د حاتم او ايمان د چروس

د دوست د کونلټ مرېرا قرېرا

يارانه نے ليقرے لکه سخا ايرېړه



# لنډے

تو تو تو خړ او تته تته

ارمان زما لنډی له فیرنګ شنه جوړ کړه کته
خبرے اوس پستے کی شمله ئے دوبے بته
یونوے اسلام راغے د خانانو د مالته
چه خوبن ئے دے موتړ که مجرت د جماعته
تیز کړځی په پتړولو کله بره کله بنکته
په بلوه تماچه کرځی یریږی د پنډه ته

او وه تته تته خړه او وه تته تته

ارمان زما لنډی بن په اسلام کړے دِ ننګ
ارمان زما لنډی سخکال (*) کرلی دِی باد رنګ
ارمان زما لنډی کښِ دی چالونه رنګ رنګ
ارمان زما لنډیه کله پلن شے کله تنګ
ارمان زما لنډے وی کله بره کله بنکته

او وه تته تته خړه او وه تته تته

ارمان زما لنډیه لرے خیته دهاتی
په نسل فتح خان او په خویونو جلاتی

---

(*) سخکال: سبز کال.

ارمان زمالنګے زړه کښې زړه کینه ساقي

ارمان زمالنګے نن کې کاروانه خیراتي

زمالنګے حاجي شونه خپیږوي لته

اوه تته تته خرو او تته تته

زمالنګے بنه شوے دے غیرت د مسلمان کښي

مرو له جنت کښي ژوندله دا جهان کښي

زوي له نوکري کښي او خان له پاکستان کښي

د استاد رقیب دلال به نن تاله جانان کښي

په بلبو تماچه کړي، یرینږي د پنلته

اوه تته تته خرو اوه تته تته

ارمان زمالنګے چه پښتون لکه زمرے دے

په لنډه کښې بنه دهرند دے خو ګر بوره کښې نرے دے

په فکر افلاطون دے په اخلاقو بنا پیرے دے

په عقل لږ میخین دے خو په ژبه چیچړے دے

ارمان زمالنګے دے د رک د چل او د حکمته

اوه تته تته خرو اوه تته تنه

الله زمالنګے نن د فیرنګ نه ګټي خان

الله زمالنګے کښي هم مصر ایران

وي نیت م د کعبے دے خو لندن ته دے روان

هندو دې فیرنګو ته خښې نه لګي هندوان

ارمان زما الله ے نه باکوکړے او نه بته

اوه تته تته خرو اوه تته تته

پروں زما الله ے چرته ولاړو په دیران

پرون زما الله ی چرته خوړل پړکی توتان

پرون چه جهان روان (*) وو، و زما الله ے ودان

پرون د چا په دین وو چه دانن شو مسلمان

زما د ښاد ی مشو ستا وی غم کښ کمه پته

اوه تته تته خرو او تته تته

زما الله یه واوره د بونه ئ لګی د خاوړشم

دښمن م د دښمن شه نو زه یار به ستا دیار شم

که ځے د جانان کور ته زه به ستا دخپو غبار شم

ته زار شه په وطن نو زه به ستا د سترګو زار شم

تش منه خوره قسمونه ستا شه توره ژبه تته

اوه تته تته خرو اوه تته تته

ته نوم د اسلام اخلے په اسلام پوهے خندا کړے

مستی همم دومره بویه چه د ے تام پوهے خندا کړے

دعوه د د عاشق ده دیار بام پورے خندا کړے

که سم نه شوے روان چوکه به دی ورمه بنکته

اوه تته تته خرو اوه تته تته

الیکشن ۱۹۳۵ ع



(*) روان = وران.

# مسلمان

مسلمان هغه بنده دے، چه ئې نُښتنه تل مسکے وی
ستر کے د کے دی رنا ئے، د ځلے یو په سل مسکے وی
سپین ایمان ئې لکه تندر، بے د څانه هر څه سیزے
د جانان د د ابرو ئې ترلفی دل په دل مسکے وی
چه ئې زړه د کی د آرام لکه ورځ د سمندر وی
ځله ئې د که د ګلونو لکه باغ د صنوبر
دا سے مست د اسے سرشاره لکه مینه د کافر
اراده کلکه بے کرکے لکه څوکه د خنجر
د وجود هر څا څکے وینه سره په مینه د دلبر
په سینه کښې ئې رڼا وی لکه څرکه د جوهر
په ژړا کښې ئې تاثیر وی په خندا کښې ئې اثر
مت ئې بر په هر څه بر وی لکه مت د سکندر
د زړه نور ئې لکه شمع په اورونه بل مسکے وی
د بلبل د ځلے آوازته د غوټۍ د ګل مسکے وی

# ساقي

دَ ساقي لاس کښې شراب دی، دَ خندا دی که دَ غم دی
چه دَ سوز او که دساز دی، دَ مستئ که د ماتم دی
ساقي ستر مهرباني، خو بې کړې په ستم دی
دَ ساقي شونډو مدهوش کښې خيالونه دَ کرم دی
دا تپوس زمانه مکوه، چه دا ډير دی او که کم دی
دا نشه هم دَ صنم ده، دا شراب هم دَ صنم دی
ميخانه هم دَ صنم ده، مستانه هم دَ صنم دی
زه ئے ځکه ستا په نوم، دَ جملون که د عدم دی
جام په سر سره په سجده يم، يو قطره دَ خمار غواړم
دَ دلدار وصال به کيږي نو تش خيال دَ دلدار غواړم



نه خوشحاله دِ وفا کړم، نه خفا (*) دِ کرم ستم
ژوند يو تال دِ چه عزيزي، کله زير او کله بم
دا يو دوه ګړے ژوندون، په خندا خندي تير که
دا جهان خدائي جنجال دے، کله وران او کله سم

---

(*) خفا: خفه.



# نوے کال

خاوندہ بیا سپرلے شو دنیا یو کال واړو

چا پہ ژړا واړوو، چا پہ وصال واړو

چا د نشتو پہ شان پہ ساګ او دال واړو

چا د صاحب پہ شان د بل پہ مال واړو

څوک پہ سفر لاړل بلخوا ئے مال واړو

چا د جانان پہ سر د خاورو شال واړو

چا د ګنګرو پہ شان پہ شړنګا شرنګ تیرکہ

چا د سپوږمئے پہ شان پہ رڼا رنګ تیرکہ

او غنی دا ھم ہسے لکہ پخوا واړو

څہ ئے پہ خندا واړو څہ ئے پہ ژړا واړو





## زه

زما بخت د شمع بخت دِ یا به مرمه یا به سوځم
یا به ویخ له د دریاب ځم یا به پاس په چپو خوځم

عجب زه عجبه لاره عجیبه کاروان روان دے
مار سوتی پراو له بیائی که زه ځمه او که نه ځم



# سپیرلے خلا صیبری

تاؤ د غرے لاړه ما سپینیے شو — لکه دَ منی یخ باد دَ سینے شو

سره دَ سترګو دیر خود دَ زړه کم شو — او دَ فراق استازے دَ صنم شو

ساز کښې سره نن دَ خاموشئ خیږی

دَ هوش جنګړے په کور دَ بے هوشئ خیږی

دَ شفق سره رنګونه شو لړه توره — بادشاه شو نګے شو دَ خپله کوره

او ستا رکښې شړنګ هغه دَ مابنام نشته دے — سره په سترګو کښې دَ خیام نشته دے

خپے دَ رقاصے سره خو تال ئے هغه نه دے

بانګ دَ بلال هغه بلال ئے هغه نه دے

په جام کښې کوټ کوټ شراب کیږی — سپیرلے خلا صیږی کلاب کیږی

او رڼا دَ شمع کښې د سحر نور راغے — باغ د بلبلو ته نوم د باتور راغے

دَ غمو سترګو له خیال دَ خزان راغے

لړ مستی لاړه او لړ ارمان راغے

او د فراق سورے په وصال پریوته

ستوری راوختل او هلال پریوته

# دجیلخانے خوب

(۱)

خوب وینم عالمه که ئے خوک راکړی معنیٰ

پروت یم سره اینبی دخپل یار په زنګانه

خوب وینم چه پورته په هوا لکه دباز شومه

کیناستم په بام دَ محمود ستر ګے دَ ایاز شومه

پورته دَ خاموش زړګی نه خوږ دَ مینے ساز شومه

خوځه م په حورو کړه د د موزمانه

(۲)

خوب وینم چه ناست یم دَ جیند ی (۱) په غیږ غاړه

شاه م سویلو کښ لکه سره شمع ولاړه

سره شونډ مسکے شو ماته ئے وچه ژاړه وژاړه

څکه دِ دَ زړه وینے دا شراب دی مستانه

خوب وینم عالمه که ئے خوک را کړی معنیٰ

---

(۱) "جینډ ے" دهشتنګر دمینځ هغه سیند دَ چه نامونه

اتمه وارم کلی ئے په غاړه پراته دی . (غنی)

(۳)

خوب وینم چه باغ دے دګلونو او ماښام دے
سرے سترګے ساقی دساقی سره ګوتو کښې جام دے
لاس په ستار پروت لیونے مست لکه خیام دے
اړوئ پرې نرۍ نرۍ د مینے افسانه
خوب وینم عالمه کنه ښوک راکړی معنیٰ

(۴)

خوب وینم چه سپینه سپوږمۍ پاس په خندا راغلله
ماله محبوبا په شرم شرم ترخوا راغلله
شونډو کښې شراب او په کوګۍ کښې قضا راغلله
سُر خمارے راکه پیمانه په پیمانه
خوب وینم عالمه کنه ښوک راکړی معنیٰ

(۵)

خوب وینم چه پټ شوم په نسیم کښې بهر لاړمه
خواله دَ جانان لکه دَ مینے نظر لاړمه
سترګو دَ دلدار له لکه خوب دَ صحرا لاړمه
یو شرنګ کښې مې لوټ کړه دَ عمرونو خزانه
خوب وینم عالمه کنه ښوک راکړی معنیٰ

(٦)

خوب وینم چه زه لکه لولکه په سیل اوړتم

پورته د نرګس نه شوم په خوا د رامبیل اوړتم

ناژد سببے عارے د لیلیٰ په اپیل اوړتم

پته م ورته ووے سلامونه جانانه

خوب وینم عالمه که نے څوک راکړی معنیٰ

(٧)

خوب وینم چه پورته لکه چغه د منصور شومه

یا یو مټے خاوره وم یالونے دریاب د نور شومه

خو بانګ د صحرا او شو زه راوینښ شوم کرو کور شومه

خوب یوره خوبونه راجمد[*] مے شوه زمانه

وی پریوزه لیونیه تیره وه د جیلخانه

غنی

حیدرآباد جیل - ۱۹۳۰ع



(*) جمد کے ، ژوندی ۔

# کږې وږې

واوره فلسفه د ليونتوب د ليونۍ نه
دا آيات خو نه دي خو قرآن کښې ماويلي

مرګ او ژوندګي يوه ده . غم او خوشحالي يوه
ژوند چه چرته نه وي مرګې چا هلته ليدلے دے

زړه لکه د جام د خوشحالۍ غم ئې شراب دي
تږے به خصت شي تا خو غم ته نسکور کړے دے

خوند که ئې جدا دے . دا نشه يوه د دواړو
دواړو کښې خمار لري د ساقي دستر کو تلے دے

مرګ کښې پټ د راز د مرګ ژوندي پے نه پوهيږي
دا آيات خو نه دي خو قرآن کښې ماويلي دے



# قید

دسحر تیل اودال          دماښام داڼ او تیل
نه کوټکۍ په کټ کښې          قلپۍ (۱) دعطرو فلیل

دسحر دوه چپاتي          لکه زړے چیترے
داسے خوارږ او پاسته          لکه دَخرو لغرے
چپاتے لکه یخه سبوروا          په تروے کړے توږ
پیاله دَ زیږو دولچه          اوس راشه خوندے کوږ

بستر دبرګ تړپړی
سوڼ نښے توره کمبل
او یارانے لهٔ دَ شپے
غار به غار به کهتمل

محفل دښکلو خلقو          قول بزرګان شریفان
یا متهیزک کسڼ کپان          یا اجرتي قاتلان
چه نور زیږے شي هیله          ما په پنجره کښې کړې بند

---

(۱) دجیل چکنے کښې دبولو لوښه هسم پروت وي.

لکه مرز په قطار

په بلا ړه کښې کړې بند

تمامه شپه گرزی

دم په دم کی تفتیش

| | |
|---|---|
| ته به وے چرګ یمه زه | یو به م سی پناپیش |
| د بندیدو سره | همه دنیا دَ بهر |
| یو تور م لره شی | کښینی م ان په خُکر |
| دَ جهان قول نمونه | لکه سیلیٔ راشی |
| دَ زړه کی سرله به دِ | لکه کوڼے راشی |
| او چه ارمانونه پکښې | لا د لوڼے راشی |
| لکه د مرې په کور | چه سره د ولڼے راشی |
| او چه دے باغ دَ گلو | ما بنام را یاد شی |
| لا چه دِ ډک دَ مستے | سور جام را یاد شی |
| که دا خدمت وی د قام | زمونږ توبه ده |

دا دال او تیل مضمول

گرانه قصه ده

او لا په دے کښې هم

غنی غزلے وی

د عشق اور دے مزلے

په بلے بلے وی

ولے په تشو اوبو

شاعری کرانه ده

چه تاؤ د اور نه وی زر کړی کرانه ده

قاضی (۱)، صاحب وی قرآن سحر، مابنام، ماز کر

خان لره ئے کینو آواز او ماله ئے خوږ که سر

که میله غږ کوو اوس راته وائی آیات

قهر په مست اوښار رحم په صوم او صلوٰت

خه او کړو صبر به شو

دا د الله نه ده

ولے په تشو اوبو

شاعری کرانه ده

غنیؔ

حیدر آباد جیل ۱۹۴۸ء



---

(۱) قاضی عطاء الله وزیر تعلیم زباد حیدر آباد سنده د جیل مرګړے دے. تاسی ئے د پښتو شعر یو ناپسی شخصیت او لیکوال (۱۹۵۳ ع مړ) قاضی د پښتو تاریخ هم لیکلی چه په خلقو توکو نو چاپ شوے دے.

# خاورے

نه منم نه منم یاره مرګ انجام د مستۍ نه دے
خدا مېدا له شراب په جام کښې اختتام د مستۍ نه دے

چه ماښام د ګمې شپې وي نو د مغې سبا هم وي
چه رڼا وي تیاره وي، چه تیاره وي رڼا هم وي

که یو نه وي بل هم نه وي، او چه وي نو وي به دواړه
دے دریاب له چرته شته د لرې بله یوه غاړه

زر سحره د بهار دي یو ماښام کښې د خزان
شل خمونه د عطرو یو دانه کښې د ریحان

چه یوه غوټۍ شي خاورے تخم وکړي روغ ګلزار له
د خپل رنګ او بوټي پناه ورنه شکرانه یوسي بهار له

دا جهان د نور او سوز، ولې روک شي چه ساز چپ شي؛
چه جانان په مستو سترګو ګوري وروري ستار له

په قبرونو کښې پرتے دي لاس او خپے شونډے او ګوتے
خوک شي تبر جوړوے د دے سرو سترګو خمار له

جام ئې مات شو میخانه کښې لیونے تے غلے پاڅید

زړه مې ډک د رنګه یوړه دے روان کوځے د یار له

ساقي نورے جام را واغښت په سره شونډو کښې مسکے شو

بل عاشق ورته لاس ونیو شکرانه ئې ولي د دلدار له

ملا بے سره سرووه تش کنډول د مرګي یوړه

خاورے خاورو له لاړه کنډه او کنوئے خوار له

غني

حیدرآباد جیل ۱۹۴۸ع



# دخوبونو جهان

زما په ولینه دخوبونو لوی جهانه
په شپه کښې راشي په وخ بیالاړ شي له ما نه
دَ ستورو باغ پیدا دخاورو دانسانه
بښیسته دګلستانه راځه ماله راځه

دا ینې عکسه ولې بل خواته ودریږې؟
سوره لوګیه آسمانونو کښې پټیږې
دصحراسینډ څترټخې کوم خواغیبیږې؟
وچیږه وچیږه راځه ماله راځه

دسیلۍ آسه دآسمانه غور ځول کوې
اول دا روشۍ بیا دَ زړونو ماتول کوې
دَ یو کارنه نې اوبه ماکا رونه سل کوې
وړل کوې وړل کوې راځه ماله راځه



# اَے بادِ صبا

تہ څہ خبرے اَے بادِ صبا — څه دنیا کانے تالاکړے مونږ
هیرېم کړے زلفِ خورے ورے — زلفے جانانے تالا کړے مونږ
هیرم که هغه دَ نور سبا — هیر مستانه لیونے ما بنام
هیرېم کو کئے مینه ناکے کړے — پړتے دے اروے دَ میو جام
کړے دکے زوړلئے دَ نور — څه په خندل مونږ نوستلے دی
سرے صراحی د ربنا او ساز — مونږ په صحرا اروے دی
سترګے چه وے دخمار دکے — مستے دړوند دښکار دکے
پور د شرابو پیالے دَ ناز — ښکلے دسرا او سینګار دکے
روسو هیرسوے خاور شوے — یاد او ارمانے هم خاورے شوے
یا نیے ګلاب او غُنچے څه کړے — غم دخزانے هم خاورے شو
تہ څہ خبرے اَے بادِ صبا — څه دنیا کانے تالاکړے مونږ؟
هیرم[*] کړے زلفے خورے ورے — شوندے جانانے تالاکړے مونږ

غنی

حیدر آباد جیل

---

(*) هیرم : هیرمو .

# مهذب

چې خراب م په سکر تو عـرو پر پوس
او په مس م خرچ کړو دین ایمان ناموس
چه م هیرے د پښتو د ملک قصے کړے
چه په مسلک م کړه بدل د وطن بوس
چه په نوم د پلار نیکه به شرمیدلم
شوم فدا د مس د خولے مرید د برو س
سوځ م واغوست جهالت ته په غضب شوم
ما ورادې بابا اوس نو مهذب شوم

۱۹۳۲ ع



# سوداګر

عجيبه دا سوداګر دے    په لاس تيغ په سر قرآن
شنه قبائے دا مام ده    کلکے ستر کے د شيطان

په خکر لکه چنګيز دے    چلولی لکه ماماان
په خُله خوږ د ګلو باغ دے    په زړه سخا لکه ويران
غرمبيده لکه زمرے کړی    غريده لکه حيوان
پنجے د وبے په سر د وينو    سرے بره په آسمان

ماته وّی چه ځوانه راګه    ستا پښتو توره او ننګ
راته وّی غيرت دے پريږده    شه زما د در ملنګ
وّی سرتيټ کړه کنی کړم به    په تا مسلک د الله تنګ
وّی زه او بنيار لکه ابليس يم    زه خونخوار لکه پلنګ
ته راکوز شه منبکته کينه    ساله زه د يار پالنګ
يا ما خدا ے که سجده او ګه    يا زما او ستا دے جنګ

وی دا توره زما لاس کښ    ستا د ژوند اختيار زما دے
ستا خمار غيرت او مينه    ددے ګوتو ښکار زما دے

داشمله دننګ کړه تیته — دیر تیره غوزار زما دے
د فرعون چنګیز وار تیرشو — اوس را غلے وار زما دے
شه غلام د دے غلام — په ده دیر اتبار زما دے
خاورو ختو کښې پراته دی — چه خوړلے وار زما دے
که زما شوے زما خوانه — ګوره دا دزرو تخت
پاس په دې د پاسه کینه — خوشحالیږه په خپل بخت
داجامونه د شرابو — مسندونه د زر بفت
داسپړدا پیغلے مستے — ستا د سینے خوانی وخت
داجنت د عیش اوزور — بل خوا اور داورو سخت
خوانه زه ساقی له ورشه — کړه داسرو سینه بابت
رته خنکه سوداکړدے — خنک زړه دکرم جهان واخلم
خنک نظر دسترکو ورکرم — او چشمے د مرجان واخلم
خنک بهار او سپوږمۍ ورکوم — دلا لونو دیران واخلم
د کسرو د طوق بدل کښې — خنکه دین او ایمان ورکوم
د دیدار د یرے خنکه — بے خودی او جانان ورکوم
دا د نور او مستۍ ډک سر — په سجده کیږدم غلام ته
د قصاب د چیچړو مینه — خنکه او بنایم خیام ته
خنک د بل د تالی پاتے — کرم چوکه د مستۍ جام ته

خنک دلدار په دنیا ورکړم | رقیب او خېژوم بام ته
د جانان خیشته سر خنګه | د فرعون په بڼو کېږدم؟
نه د لیلے سودا کړه | تا د سرے وینے غوړنګ
په تیټ سر باندِ نه ښائی | دا زما شمله د ننګ
د سرو زرو تخت قربان شه | په آزاد کنډ د ملنګ
تیټو سترګو کښ او ځیږی | د سرو او مستئ رنګ
ستا شراب د زهرو کوټ دے | خلاصول کړی د ایمانه
ستا ساقی د چکلے دمه | په دوه نیمو پیسو ګرانه

---

زه روکیږه سودا کړه | لیونی مونږ د دلداریو
ته ئے اوږے دلالونو | مونږه اوږی ی ځاریو
نه ئے دم نه ئے دار وشته | مونږ په داسے نخ بیاریو
ته مغرور په خپل زور ئے | مونږ په مینه کښ سرشاریو
راشه اوګوره فرعونه | دا دوهم د ملنګانو

په دے خاورو کښ خوردی
کیږی د بادشاهانو

---

غنی
مرګ پور جیل
۱۹۴۷ء

# کوګل

دے کوګل کښې م د ننه — هم دوزخ دے هم جنت
دے کښې قهر او غضب دے — دے کښې رحم او راحت
دے کښې پروت یو سمندر دے — دَ نشے او د خمار
دے کښې پروت یو تهتریں دے — د لمبو او دَ آزار
دے کښې پروت دے دومره رنګ — دَ سپرلی او دَ خندا
چې یو یو ئې نوے جهان کړي — دَ مستۍ او د رڼا
دے کښې پروت دے دومره رنګ — د تیارے او د ژړا
چې یو اُف ئې تور لحد کړي — د خندا ډکه دنیا
دے کښې دومره شجاعت دے — چې د ټول جهان مرګونه
یو نظر کښې تار په تار کړي — لکه باد ورېځې بوسونه
چې په یوه باندې راشي — زړه (*)ښتے غټ دے د مېږي
د اسے رپي د اسے تبستي — د اوبو څاڅکے تے کلک
او چې کلک شي د اسے کلک دے — لکه کاڼے د فولاد
نه پے زور ترے اثر که — نه پے زور کاله فریاد
دے کوګل کښې م د ننه — هم دنیا ده هم قیامت
دا هم لاره هم کاروان دے — هم تدبیر دے هم قسمت

---

(*) ښتے : مرګے

پروت په دې کښې قول داستان دې — د جزا او د سزا

خور په دې کښې لوئے جهان دے — د وصال او د وفا

دا هم باغ دے هم خزان دے — هم بلبل دے هم بهار

دے کښې سره نیازبین ګلونه — او د شنو او بو شرار

دا هم زهر هم زقوم دے — هم ګبین دے هم نبات

دا هم تور د مرګ څادر دے — هم چینه ده د حیات

ده کښې پروت داسے شراب دے — چه یو څاڅکے د مغې

په بد مستۍ او سرشار ئې — کړي دا واړه فرښتې

که چه څښي په بره درومي — شي جبریل ورته حیران

چه په بد و باندې راشي — امان او غواړي شیطان

عجیبه دویم جوړ کړے — اے زما خدایه عجبه

بے د تا نه نور د هر څه — د همه یم مرکبه

دا داور او نور دریاب — دومره لوئے لکه آسمان

دومره روکے لکه څاڅکے — دومره لنډ لکه یو آن

دا قصه د سوز او ساز — ولے ولے څه له څه له؟

خیشت او غم راز و نیاز — ولے ولے څه له څه له؟

غني

حیدرآباد جیلخانه

۲۳/۹/۴۸

# جناب شیخ

زړه دې ړک دے دَخپل جانانه | په کښې خاے نشته دَ یار

دا سے ړک نے د نیکونه | لکه ړک دَ مرو ښار

دوار وستر کے دې ړندې دی | دَ بل بد دَ خان ښه وینی

تل آئینه کښې خا ننه ګوري | د یار نه وینے سینګار

شُنار سے ستا اوزګار ے نه دی | چه صفت دا تښنا وکړے

دخپل نور قصید سے وائے | په کوڅه کښې دَ دلدار

دا سے ته په نیکے مست ئے | لکه دُو فرعون په زور

د ریا ښه دې نه تاو دی | لکه لوئے او تور حصار

چه په بل کښې بدی وینے | خو مرو زړه دې شی خوشحاله

د بل خیشت دې ته غلا ښکاری | ستا د تور تاریک جماله

دا شکور رانده چه وینے | چه دغرګوئ غُرزینی

دا هم ستا په شان روان دی | دا چه پریوزی او پا څیږی

دا چه ته ور پورے خاندے | دا مجنون او دا ملنګ

ستا قبا د شنو ریښمو | او دَ دوی شلیدلے لنګ

دا هم ژوړ دے د آدم
د الله د کوتو جوړ دے

څه که ډوب دے په تیږو کښ
په شرابو کښ شور پوړ دے

دے هم غږ په چغو چغو
دے هم هغلته روان دے

ته چه ئے د کسم په طمعو
هم هغه د ده مکان دے

اے چه ډوب په فضل ډوب ئے
اے چه بره ئے خوشحاله

د ده شور چغے هم واوره
دا هم ځان له وئ هم ناله

دا چه دے د پړپړ غږ پریوزی
تا ته ښیئ تیند ک دَلاړے

دا دے دے سر ماتے ولیا
ځکه ته روان او ښیارے

شیخ چلو دَ نیکو دکه
گنهکار دے ستا اُستاد

ستا دعا دَ ځان د پاره
ناله دے دَ ده فریاد

ستا دَ ښو دیوه بلیږی
په سینه کښ ځان د پاره

د ده سرے لمبے داوُر دی
دَ همه جهان دَ پاره

دے تصویر دے دَ آدم
دَ ختو او پریوتو

او په سوو وزرو نو
دَ پتنګ د الوتو

غنی
حیدرآباد جیل
۱۹۴۹ع



# تاریخ

دخوبانو سره مینه
ده خوراک دزړګی وینه
چه دبانړې دی تندی کښ
تل به یخ وی ماه جبینه
زنګ وهلے توره چرے
توبوی نه سیکے وینه
قتل عام دمغے کار دے
چه خلیږی تا سینه
دخزان رنګ دسړی زرو
دغنی یاره حسینه





# ساز

| | |
|---|---|
| شونډوله خوند | اوسترګو له رنګ |
| پوزے له بوئين | د نرګس د لونګ |
| زړه له اميد او | مستي او ارمان |
| غوږ له سرود او | شنا را او شرنګ |
| ماله سرور او | جمدون او نور |
| دا څو آوازه | د ژوند د رنګ |
| تق تق د اور | تپ تپ د باران |
| آخ آخ د وصال | اُف اُف د ارمان |
| وئ وئ د جنون | وخ وخ د صنم |
| نانا ، او او | هـر وخ د صنم |
| قت قت د خندا | پرق پرق د مستے |
| شرنګ شرنګ د پانزيب | چن چن د لښتئ |

شرشر دا دبو | شغ شغ دَ نسیم
بس بس دَ دِلبر | بر بر دَ غلیم
میں میں دَ ملو | شنگ شنگ دَ کولئے
قر قر دچلم | پر پر دَ لولئے
دُم دُم دَ دوہرے | تنک تنک دَ رباب
غر غر دَ پیالئے | سخ سخ دَ کباب
چپ چپ دَ کوکئے | پس پس دَ دلبر
چر چق دَ تارو | کوکو دَ کمتر (*)
بس بس دا آشنا | بد بد ے روان

ایش ایش دا قلم
ھاں ھاں دا بیان

غنی
حیدرآباد جیل
۱۹۴۸ء



(*) کمتر: کوتر، کبوتر۔

# صاحب

زوړے مِ راغے د یورپ د تربیته
جوړ سنبال لکه دَ ناوے پوته ښکته

تر یو تندی پورې مخ ئے وُو نیولے
تابه وے وُ د لاټانو دَ محلته

دَ ډوډۍ او د فیشن سره ئے شوق وُو
ډیر نفرت ورله ورته دَ جماعته

لګولو د پیسو کښې افلاطون وُو
خو ګټلو کښې غریب وُ بے همّته

نن چه ما ورته په فکر نظر وکړو
خر هم معنه وُ بس نوئے وه کته

١٩٣٠ع



# اور

ګنهګار يم ګنهګار يم　　هم د خدائے هم د دلدار يم
بے وفا په محبت کښ　　نفس پرست او بے اختيار يم

مينه مينه په خوله وايم　　مينه نه لرم حيوان يم
نه م لوظ نه م قسم شته　　نه مين په يو جانان يم
چه کم ځائے ځواني او رنګ وي　　چه کم ځائے د ګنګرو شرنګ وي
چه د چا د تمبل ټنګ وي　　نو زما ورته غوږ ځنګ وي
يو مکه د مسلمان وي　　د کافر يو بت خانه
هره ورځ زه بدله ومه　　نوے نوے ميخانه
هم م مينه ده بے پته　　هم ګناه م بے وفا ده
چه م کمه مخامخ وي　　زه ويم دا خو ما ليلیٰ ده
کله لاړ شمه ځمات ته　　په سجدے په زاړے پريوځم
شل سجدے م کړے نه وي　　بيا د چا په يارے پريوځم
يو سور اور م د کوګل کښ　　ما سوزي دننه بهر
نه د يخ خونه دے کم شو　　چه دا اور دے که سقر
که ساقي د کوه قاف وي　　که شراب وي د شيراز
بس پيکه م تر زړګے شي　　چه معلوم ئے کړمه راز

که ماښام وي که سپوږمۍ وي — که وي راز او که نیاز
روح م تنګ لکه لحد که — که وي سوز او که وي ساز
دا زه څه پسې حیرانه — سرګردان پریشان ګرځم
دا زه کم خواته روانه — په باغچه بیابان ګرځم
ګنهګار یم ګنهګار یم — آدم خور یمه خپل ځان خورم
خپل ښایست خادرے کومه — اژدها یم خپل جانان خورم
دے په زړه د نه اوړم — رو رو تن لوګے لوګے که
د ګهیرے (*) ګړه سڼ ګلونه — شین چمن لوګے لوګے که
دے، دا اور مسے خوراک که — نوے نوے امبار غواړي
نوے رنګ نوے محفل کښ — نوے نوے خمار غواړي
دے دغجن یم دے وغجن یم — دا دَ قسته کوم فریاد
نه یم تنګ زه دَ دے اوره — زه په دے یمه آباد
زه به ده له خاشاک ګورم — که باغچه که بیابان وي
زه به ده ته لوګے کومه — که خواني وي که جانان وي
دادَ ده په شنو لوګو کښې — زه او زړه د دلدار وینم
دادَ ده په لمبو ګوره — زه سپوږمۍ او ګلزار وینم
دے زما په وینه پائي — زه د ده په لمبو پایم
دے زما وجود او ساده — زه د ده وجود او سایم
چه دده پرق او ښنار وي — هلته ژوند هلته انسان وي
چه د ګنې د خاورو توپ وي — پنډ خزله دَ ویران وي

(*) ګهیرے = ایرے

لیونے یم لیونے یم — نه مې سرشته نه سامان

نه په مینه مستے پوهے شم — نه په سود او نه په زیان

عجیبه بے زوره لار ده — عجیبه بے پخی کاروان

که قدم اخلم غوځیږم — که او دریږم مه تاوان

عجیبه غونډ شراب دی — چه نے څکم لا تږے کیږم

عجیبه من او سلوی شتا — چه نے خورم لا وږے کیږم

دا په زړه دننه اور م — که نے وژنمه روکیږم

که نے نه وژنم سوزیږم — لوګے کیږم ایرے کیږم

لکه شمع بد نصیبه — لا به سوزم لا به مرمه

لا به خان تالا کومه — لا به تور دریاب له ځمه

بس دے بس که لیونیه — داد ولے ولے باب

جام که ډک ستړے که پتے — ټنګوه دِ خوږ رباب

ور نږدے شه ور نږدے شه — چه د یار شونډے شکرے

روپه مینه مینه اوکړې — دوه خوږے خوږے خبرے

تورے سترګے بلیږی — لکه شمعے د معراج

دغه سرے شونډے کښې اور دے — اور د غم دا اور علاج

په سرو کوتو کښې جنت دے — که دوزخ دے که بقا ده

وی سوزه سوزه خاندُ خاندُ — ژاړه ژاړه دا دنیا ده

غني

حیدرآباد جیل

۱۹۴۹ ع

# آدم

عجیبه م وجود لا عجب م خکر
څه بے توکه بے توله دا ستړے او سر

یا په بام دحرم دَ مستئ ترانه
یا په شپه دَ وصال دنغلونو بهانه

یا موسیٰ ته قیصے دفرعون دَمحل
یا فرعون ته بیان د ابد دَ اجل

یا دغم د بی بی نه سرور غوښتل
بُت خانه کښې پرقونه د طور غوښتل

کله روح د مجنون اوساقی او پیاله
کله نسر دخیام او ژړا او صحرا

کله خوب دمنصور د رښا دَ وصال
کله شوق دحبشی دکوکے او دَ خیال

کله روب بے پایانه کوے دغم
کله هر و پیاله کښې صنم صنم

یا دَ ژوند کاکوګنښ د مرګ تصویر
یا دَ مرګ ساګوګنښ د ژوند تعبیر
یا پیغام د فراق په خندا کښ دیار
یا امید د وصال په ژړا کښ دیار

یا دَ جیل کوټګۍ کښ خوبونه د کور
او ایرو کښ ارمان د رڼا او دَ اور
دا بیخوده دماغ بے کماله وجود
پچاری د منډ راو شوق دَ درود

هم غلام د بنایست هم مرئے دَ وفا
هم د رباب د تیرے هم مستی او رڼا
بے آرامه ارمان بے قراره نظر
خه بے توکه بے توله دا ستړیکے او سر

یا په بام د حرم دَ مستئے ترانه
یا په شپه د وصال د نفلونو بهانه

غنی
خان پور

# نه کیږی په عقل

سپین ولینبه دِ تاوکه ستو کے څنه ترِ جوړه که
قرض رنګ پرِ توی که قالین جوړ د خپله بوډکه

نه کیږی په عقل تو کـل غوارِی د چرهیا نو
نشــته دے ګلونه په کوڅه کښ دَ ملیانو

دلته سبا نګونه دی تالی دی رکیبئ دی
دلته شــراب نشته پیکوړی او زلوبئ دی

عقل له ســرورکښ سره عقل کښ کورنشـته
داخبرے ماته م رو روکړے آبئ دی

مینه خو یو مینه وی نه سود وی او نه زیان
دلته په کچکول کښ خورے شوے نوابئ دی

لاړه د هوښیار په کنډوکنـډو په دردوه
مینځ دلوړے ژورے د اودکه داسې ده

داسے آواز کوړئ چه نه زیر وی او نه بم وی
خوښه نے رباب کښ خاموشی دمقبرو ده

او بس خوار له یالوړه او صحــرا او دیامهار دو
خوږ د موسیٰ د وور دے خو مین دے په جوار دو

کور د طمع څه دے تور محل د بلا کانو دے
روح نا دے کول په ړوبکي کښې دیریانو دے

تش د کباب خوند له اسمٰعیل حلال دی دا
ما دا اوریدلے په کوڅه کښې درندانو دے

زور او غرور نه لوی عشق صبر او ارمان دے
سُر او سهور نه لوی سهخان دے او جهان دے

رحم نه انصاف دے یو تدبیر دے د دوام
هر څوک نے پکار دے که خیبو دے که خیام۔

شنه وی دنز دے نه او دولکے دلوے لوے
دواړه غزنی یو شان او یو رنګے خبرے

ډک د ظلمه زوره د طاقته د بازپرے
جوړے د مهین او رنګین بوی د ګل وزرے

کومه لار چه اخلے خو مقام نے بس یو دے
دلته زر جُماته دی امام نے بس یو دے

ځکه لیونے دے مرور مستی کلــه کله
بل خواته ورتاو کړی دادے هوش تهقه شله

پرېوزي په پراو کړې تغانه کښې دېوه بله

خپسې سپینې پولۍ طمع تاقتې دَ منزله

تا ته او دسرور دے یومار ولې وړښتې او کښې؛

اے دسپین او تور ماالکه څه مزه ده تور کښې؛

ولې زما لال وي پروت په خُلے کښې دَ بنامار

ولې دے گلاب له نه اوربل او نه بهار

ولې دِ بندي که خاځکے تن کښې دَ ډنډ وکي

غوارے تر چپے دسیند سازونه دَ ابشار

ماله مرګ او ژوند دے تاله تښتَ دَ ځښے ول دے

اورکښې دے بل کړے ولے حُسن الول دے

اورته دے نبولے یم فولاد جوړ ے زمانه

سنه چه زه فولاد شمه نوځه زما جانانه

جسلو فولاد وله جوهـــر وله کمال له

بس خاورے کیږدي روکیږدي دَ دُنیا نه

ولے دِ ورانو لوله جوړ کړے سور محل دے؛

اورکښې دے بل کړے ولے حُسن الول دے؛

ډیرہ اسماعیل خان
۱۹۵۰ء

# اختلافات

پلار مې ورک په خپل وطن
زه د خپل وطن نه ورک

د هغه خوښ دے تعلیم
زما خوښ ساک د پالک

د هغه خوښ دي څوانان
مول د قام په جنګ روان

زما خوښ هر ګلستان
هر چمن د لولو ډک

د هغه وطن جهان
دا بے نوره بیابان

زما ملک ښکلے آسمان
د ښیسته ستورو نه ډک

# لوږه

چه شي خُله د خوږو سپوږ　　　　د دنیا خوارږه همه
نه ملام ملام یادیږي　　　　غونزاخې(*) او تتلمه
چه شي خیته ډیره وږې　　　　د دنیا کُل خوراکونه
نه په سترګو کښې غږیږي　　　　سیخکې او کباپونه
چه شي سترګې ډیرې وږې　　　　د دنیا ښکلونه واړه
ورته ښکلښ ښکلښ کیږي　　　　تورې زلفې سپینه غاړه
چه شي شونډې ډیرې وږې　　　　د جهان همه خوبانې
ورته ورانې ورانې کیږي　　　　سپینې تورې سمې ورانې
چه زړګې د مینې سپوږشي　　　　تیرې نوې خوشحالې
پکښې دننه رپې رپې　　　　لکه ناوې په ډولۍ
او زیم او زیم دا سې وږې　　　　په یوه کوکۍ ورکومه
دا جهان او جنت دواړه　　　　په دوو سرو شونډو خرڅومه
کښېنه کښېنه لیونیه!　　　　دال ختنه وهه کوکارې
دا مزې دې دي نصیب کښې　　　　چه ته زوی د دا سې پلارې

---

(*) غونزاخي: الحجوز

آخر خله به دِ خوړ شی | کښېنه وايه ګړ ګړه
دَ قسمت غا خاور نه کړی | راغوړی کنډ نه ته لوړه
که بهار کښې دی ګلونه | نو ميوے دی په خزان کښې
سبا دغه د نے راوخوت | ستورى ښکارى په آسمان کښې
سره ګلونو شنو اوبوله | بيا به لاړ شے هغه ستا کړته
په نوتوب عزت به ګورے | خوره بستر کو دَ دلبر ته
بيا په غاړه دَ تالاؤ به | دَ سرو ميو ډک کړے جام
بيا به ګرزے په مالتو کښې | دَ سحرا او دَ ماښام
بيا به او ترمے به يوه | برګ او مست هندکی غوايان
بيا به نيسے به جينکی کښې | مار مهى او سره کبان
بيا به شور شغرب دِ ژوندى
د ياړانو ورشتے مستے
چپ چپ شه مخکښې مه ځه
ژړا را غله بستے بستے

غنی
حيدر آباد جيل



# ویش

باغ کښې ځوک ګلاب شي ځوک شي سرې ځوک ورخارې
ځوک د مینې غنچه شي ځوک کېږي د غارې غارې
تاج د چا د زرو د چا تاج شي د غمونو
ویش د بل په لاس دی که ته خاندې او که ژاړې



# دَغم لوُر

لنګه تیاره شوه رڼا ئې راوړه
آدم چه مست شو حوا ئې راوړه

مرګ چه د خپل ژوند تلاش کښې دوت
ژوندون ئې راوړه او سا ئې راوړه

تورې چه چغه د کفر اوکړه
د مال ئې پیدا که قلا ئې راوړه

چه او ښکې سرې شوې شراب ترې جوړ شو
چه غم بابا شو خندا ئې راوړه



# زور

خدائے چې پیدا کړ د خان نه زور
کړل ئې ترې لاندې خېزونه نور

سړے او چت کړ تر نیم آسمانه
بادشاه د هر څه ؤ بے سره زور

الله موسکے شو حسن پیدا شو
طاقت په مزکه پریوت نسکور



# بُت

دا شوندې سرې د ګل غوټې
دا شوندې سرې ورې ورې

دا شوندې سرې قطرې د ناز
دا مجسم مکمل نیاز

تش او وچ ورږېږوته دا
رنګ د مستۍ او ارمان خوری

ما بانده ښې او خوږې لګی
ما ته نقشې د جانان خوری

دا خوږوندوان مست شوندې
مرګ پورې مسخرې کوی

دا خوږ ګلاب خندا نه کړې
بل پسرلی ته اسرې کوی

دا خو د تور مرګی په مخ
رنګ او امید د دنیا خوری

دا خو د مجنون سترګو ته
خیشت او سینګار د الله خوری

پوهې دې دوی د آدم په راز
پوئے په تللو د سوز او ساز

تولې قیصې نے یاد دی
تولې قیصې د راز و نیاز

دا د عیسیٰ د لاس په شان
ژوند او امید او خندا خوری

"بت" ورته څنګه او وایمه
ما ته چه نور او رڼا خوری

# پېژندګلو

هوښيار هغه وي چې ځان ګڼي خر توب ويني
خر هغه وي چې خپل ځان ګڼي هوښيار
عاشق هغه وي چې طمع د څه نه که
په ښرنګار په مخه ځي لکه آبشار
غوث هغه وي چې له ځانه خبر نه وي
خو خبر وي له ژړا د غريب خوار
چې د قام د پاره دانګي اول اور ته
د هغه منم بريتونه کونا، د دار
غني هغه د چې سر دې بې سره
کله خر کله نقلي کله هوښيار



# ولې؟

ګل له بنده خانښت ستر ګو له پسته رڼا

شونډو وکښې دا بېخودي شونډو وکښې نشه نشه

خیشت له د چپل خان پشان نور او سینګار او خمار

یار له د خندا په ځاے سپین د سرو ګلونو خار

مینې له د زور د سمندر زړه د بادشاه ورکه

ساز لره آواز، اثر خانښت، تا دښتنا ورکه

ماله د غمونو ارمانونو جهان را کړه تا

ماله زړه کې پوست او مستۍ او حیران را کړه تا

او ستر کې خمارې د یار د حُسن د آرام ډکې

کله د سپوږمۍ درنا کله د مابنام ډکې

کله د ځوانۍ د امیدنو د ارمان ډکې

کله لیونې ستا دخمار او ستا د شان ډکې

اے دَ دوزخونو قیامت او د حساب رَبہ!
اے دتورو زلفو دلالونو دَ رباب رَبہ!
اے دَ مستو ستر گو د نرگس او د گلاب رَبہ!
اے دَ میینے حسن دځوانۍ او د شباب رَبہ!
اے دَ لولکۍ د حُسن اے د گل د خیال رَبہ!
اے د راز او نیاز او دَ نسیم او د ملال رَبہ!

ولے دے د حسن نہ
جوړ کړہ دا د خاورو ښار
خیشت لہ د پلخان پښان
نور او سینګار او خمار



# باچا

بادشاهي د جهان څه کې؟   ځان له وې زیاتې غم
دانصاف تلل مشکل دي   څه به ډېر کړې څه به کم
خپل غمونه ډېر لالړ دي   د جهان غمونه غواړې
داسې تخت بخښه کړې څه   چې پر شپه او ورځ ژاړې
د تنتوانو به پېغله کښې   غښته تښو مخکښې روان وي
لوئي باچا د ښنا ورو   د همالو لوئي جوان وي
دا دنیا د سپي لکئ ده   نه نیغېږي نه سمېږي
په وجود توره پیشو ده   چې ئې وینځې لا توريږي
بادشاهي هله جوړېږي   چې نیم لګي شي نیم مړه کړي
چې یو کس د بل په غوښو   د خپل کور کوترې ماړه کړي
د دې ژوندانه څه مطلب شو   چې یا مړ یا به بل وژنې
دا میوه ګلاب د څه شو   باغ ساتې او بلبل وژنې

رتبه ماله که دِرا کړه          بادشاهي دکل جهان

زه به نے وغورزوم له کوره          لکه سوتے په ویران

دایو دوه کړي ژوندون زه          په جګړو نشم تېرولے

ددے ظلم په کتونے دے          رتبه بل کیږي د بوغولے

ماله راکړو خو کهلونه          یو نیازبین شا نتے جانان

یو ورو کے غوندے باغ          او په خوانے سینه روان

چه نے زه په غاړه ناست یم          په یخ سوری د خرولے

په مزه مزه لیکمه          د مزے مزے غزلے

کله سوال منت جانان ته          کله بد او رد ملا ته

دساغر ساقي صفت کوم          د تیبرو دک لاله ته

کله کله تا نه رتبه          د ورو په شان کیلے

کله تور جمدے[9] امید          کله سوے اسویلے

کله تنګ کله تکور          کله جام کله دلبر

یو جهان کښې د رنګ دوب          د جهان نه بے خبره

بادشاهي مغوله ورکه          چه زغملے نے شي زور

چه په لاس لکه قصاب وي          په خصلت لکه منګور

چه خپل خان ته شي کولے          قرباني د رورد دینے

هم مفلح هم خورے شي          د غریب د غو نبو پینے

(۹) جمدے = ژوندے

تاج ور لے هغه سرشی — چه وڅل لکه وباکړه

لکه پړانګ د اړل خیل کړه — یړول لکه بلا کړه

تخت هم نه پائی بے زوره — بے د توره دَ جلاّ ده

بادشاهان چه خوږه دین وی — دومره وی دنیا برباده

لوی بادشاه وی لویه ژوره — دے په وینو زوو پائی

بادشاهی لکه دَ اور — په روتو په سوو پائی

رتبه فضل په مونږ اوکه — مونږ ساته ددے آفته

چرته غټ خرته په شاکه — دا دسرولا لونو کته

سفارش ورته دا وکه

صیبَ زمونږه دَ بابته

وے پام کوه نَه دله خره

غنی ونه وے(*) په لتَه

حیدرآباد جیل



---

(*) وے: وهے.

# دوزخ

دَ آدم دَ نظر تول دے    کہ دا تور دے کہ دا سپین

دَ آدم دڅ بے خیال دے    دا سپلمۍ او انګبین

دا آواز زما دَ ګوتو    پوست مړوند ننګے ګھین

دا زما دخکر لوبے    ګل اندامہ او شیرین

دا زما خودے جوړ کړے    دا وبو شراب رنګین

چالہ نجر دَ شرابو    یو قطره ده دَ زمزم

چالہ نجر دزمزم دے    یو غمګین ما بنام دَ غم

چا تہ رو کے سپینہ شمع    دَ سپوږمۍ نمرو روښانہ

څوک پیغام دَ جبریل وا وړي    دَ سرو شونډو ده جانانہ

چا تہ سور پہ وینو تاج شو    چا تہ تور پہ تیرو تخت

چا پہ سر دَ صلیب ولید    چا پہ سور ریښمین بالښت

دَ موسیٰ پشان څوک سیٔ کړي    پہ مړیت کښ مخ دَ یار

څوک تړے جوړیږه ژړا کړي    څوک تر حُسن او خمار

څوک دګل دما شوم مخہ    دَ آشنا شونډے کړي جوړے

چا په خوا د نرگس و منت — چا ازغوکښې د کړو ړے

لوښ نصیبه څوک ولاړه — په خندا غېږ ے د یاره

چا دَ ناوے دجوړے نه — کفن او شلوو د للاړ له

ربّه : ربّه ! زما ربّه ! — لیونے شوم په فکرونو

ځنگه خوږ قهر او غضب کړم — په سپږلی او سېږو کلونو

ځنگه غوږ کېدم ملاته — تورانے بلبله هېره

ځنگه ستا د نور او ښیشت نه — بد رنگی تیاره چاپېره

دَ خندا دَ سپین سبا نه — تورما بنام او لحد جوړ کړم ؟

دَ انسان د مایوسئ نه — سُهر سرو ډابد جوړ کړم ؟

دَ فقیر دَ تلوسو نه — د بادشاه خمار کړم جوړ ؟

دَ دوزخ د اور او زور نه — ستا ښائېشت سینگار کړم جوړ ؟

ځنگه ومنم تا جوړ که — دا جهان او آسمان دے له !

چه خیام روان په زور کړے — طوفانونو دَ کعبے له !

دَ مستئ دا دومره ډک زړه — بس پیدا او وسوسے له ؛

جوړ دِ حسن یارانه کړه — د جزا سزا قصے له ؛

تا کړه جوړ د خپل ښائېشت نه — یو حسین یو نازنین

ستا دَ بنکته بهو سوری — ماها بنام پوست او رنگین

تا خندل چه د گلاب رنگ — دَ لوګے وزد یوړه

ستا په لاس، خیام، په جام کښې
بې خودي او دلبري وړه

خنکه غم غني له ورکړم؟
د قیامت او حسابونو

کر که زړه کښې د بلبلې
د سپرلي او د گلونو

خنکه شال دوینزې خوږکړم
د لیلیٰ په سپین جبین

د حبشي د عشق لیواله
ښا پېرې کړم دماچین

خنکه لاس کښې محبوباله
خنجر ورکړم دغماز؟

خنک دې د یر کوي کښې دوبکم؟
د مینو ستر کو راز

خنک جهان حسن دوبکم؟
په یوځا ځکي د تیرو کښې

او د شمع رڼا ځنګه
کړم بدله په ایرو کښې

ربه! ربه! زما ربه!
لیونے شوم په فکرونو

خنکه خوږ قهر و غضب کړم
په سپرلي او سرو گلونو

خانپور خیل



# لیونی

یو منبارے روان کړے د نوو نوو کوڅو دے
یو خیال ئے روان کړے دَ ژوندُکی د تلو سودے
یو نَے ئے روان کړے ټکے سوز او ټکے ساز
یو عشق د حقیقت جوړ د عشقونو دَ مجاز

یو کوډے روان کړے د خوبونو دَ رنګونو
د تورو تهتړینو کړنګید و نګو شړنګونو
او خاندی لیونی سګړے ډکے دَ مستونه
وحدت ئے روان کړی د لکها بُت پرستونه

او کله لیونتوب فلسفه کړل او صنم وانی
او کله دَ مستی خبرے دیرے په غم وانی
سر ئے پاسے کړل غوړی ئے مخ د شبنم پړے پټوی
او دبل مست خوروی د سترګو غم پړے پټوی



# زه

زه یم زه یم رنګ سپړ او او ښر ګار زه یم
دَ جانان سترګو کښې مړاوے خمار زه یم

دا تعبیر زما د مست زړه د تالا ښ دے
یار زما د زړه ارمان دے دلدار زه یم

دا زما زړه چه د خیښت او رنګ شي ورنے
سپیرے سره کلونه راشي بهار زه یم

دا چه زه شم د مسکو شونډو لیوا له
لیلی جوړه کړم د حُسن معمار زه یم

دا خوزه د خکر سوز په هوا سور کړم
روح، مطلب، معنی، آواز، دستار زه یم

چه زه نه یم بے معنی جنت آسمان دے
دَ جهان د سوز او مینے مختار زه یم

دومره پوی شوم په دے روکی غونډ ژوندکښ
یار زما کمال، کمال دَ دلدار زه یم

خانبرجیل

# اوښ

لکۍ دې دَ خرڅوکۍ او غوږانګه دې د بېتې

کوږ وږ اوږدان ویجاړ او دولس ځیم ګړه اوچتې

په غوږو کښې عربې او په شونډو کښې حبش

که پادوم خوک دراچي ورته ته شغ اخلتې

ډېر زیات بې نوره ښکاري ستا په پوزه کښې مهار

دې دومره اوچت سر کښې د پستې نیستې زنار

نصیب کښې دې چینه شته نه او ربشې نه شولتې

بس لونې درانه بارونه، کجاوې تغرې کتې

ستا سترګې د شاعر دي تله د لچک د نواب

په شکل معتبر، معقول ملک یې د نیستې

خندا دې زړه کښې نشته په ښېرو دې تل خوله توره

بوډا په هغه ورځ شوې چې پیدا اشوې ته د موره

مستي وچې نوره او ځواني دې بې سروره

غوږونه د نیلي، تش د نیلي د خیال غروره

او زړې د خپې دې د دېنګ د توپ او تله بې خبره

دَ قبر په شان ملا دې د سرګي په شان مجبوره

ته تول ناکام ناکام ئې نه رنګ وینې نه خمار
همت او جوش دِ نشته ګرځه اوږے تږے خوار
په خېټه دِ ځان ورکه خکه دِ روب سپک او دود شوے
مین په پیکوړے شوے خکه پاتے د جلوس شوے
جنون خندا دِ ورکړه د زوزانو په بدل کښې
د حُسن بادشاهے کښې د ړوندانو ویرے جاسوس شوے
تا خیشت د ارمان ورکړه بلا نګی کښې د ړوندانو
تا ورکړه په تیپړو فلسفه د افلاطون
ته رور شوے د خرو پړے دِ سبوه روړی دا زمري
تا غوږ د موسیٰ ورکړو په کرخه د سامري
تا لے دیزید وینے وینے نه مرګ د حُسین
په ژبه دِ شراب تراخه خوږه لګی ترے
ته نن په سبانه ورکے ته نه ئې جوارګر
داخکه مهار تیپ که، ستا د تولو اوچت سر
اے اوښه غټه اوښه، ته نے روکے د مېږي نه
لس چنده که زمر شے، خو ډېر ئې دلږی نه
تر مځکے به ډېرېږے، او ژړېږے او کړېږے
تر کومه چه ونه باسے دِ طمع د زړګی نه
د طمع ستانه ډېر اوچت سر و نه کړم را ښکته
د سپینے شهزادګئ په سر خوږے د ړے کته

دا طمع مړي او غځي کاندي سترګې نړې نړې

دا طمع خر خوري بازار کښې شو ناسه ګرځي ګرځي

دا طمع شهزاده کاندي غلام د ګور د ویښې

دا طمع د جنت حور له سترګې کړي بې شهې

دا طمع شهزادګۍ کړي د مرنۍ سره نوکره

دا دیر غمي میرې کړي، کړي کوڼجکه تر ته نه بره

دا جوړه د عقابه کړي د تور ککوري کمتره

دا زړه نه غم راغونا کړي او خندا خواني دړه

دا جوړه د کعبې نه کړي منډې د سودا وزیان

دا ګل خاورې ایرې کړي مستي پرسي د عنبره

دا جوړ کړي د عیسیٰ نه مقتدي د سامري

د دې په خپو خوړ کړي نظر ونه دلبري

اے اوښه خواره اوښه بې بنا اُسته بې جاله

اے اوږنه د زوزانو بې خبره د کماله

ته نه لوږه او تناده نه سرور دې او نه ساز

هم د غه دې داوښ او د آدم د فراق راز



# مرګے

مرګے دِ راشي
چه کله نے وس وي

ګل به مِ لاس کښ وي
او یا به اَس وي

یا به تو پک وي
یا به قلم وي

دوب به خندا کښ
دَ دنیا غم وي

چه څه موبخت وي
دو مره به بس وي

مرګے دِ راشي
چه کله نے وس وي

# کمتره

دجنت مرغئ کمترې | دغم درده بې خبره
که سپرلې وي که خزان | ستا وي مستې بازيګرې
شپه او ورځ په بقبقور کې | دَ آشنا په ننداره
دياړې مستې قيصې کړې | دَ جمات په مناره
دوه دانې کړې چرته پورته | بيا مستي غوټې شروع کړې
دَ پيريانو په کومې کښې | لمغړې دښاپيرو کړې
اې دَ مينې ليونيه! | بې ګناه او بې آزاره
دمحراب دپاسه تاخ کښې | کوګئ اخلې دَ دلداره
خپې دِ مردارې سره وي | هره ورځ په تا اختر دې
تل نشه ئې بې شرابو | مدام خوا کښې دِ دلبر دې
خوش قسمته بې خبره | د دوزخ نه دَ مُلا نه
د نيکو دَ ثوابونو | د شرمونو د ګنا نه
ده کوکوله جوړه شوې | ستا مښوکه بې آزاره
ستا سره نرې نوکونه | ډک دخيشت او د سينګاره

نه د جنګ نه د غم بشته | سوچه مینه بې نفرته
نه د چل نه د دوکه شته | یاري پاکه بې علته
الوته د مسم دسیل دي | د مستۍ د بازیګو
که بادشاه هم پېښې کړي | د ورو ورو کوتو تکو
غونډه ستر کې د معصومې | د رڼا اتباره دې کې
پېمانې د سرو شرابو | د خندا د یاره دې کې

کاش چې زه هم ستا په شان
اې کمتره مستانه وې
چې نه غم وې نه ارمان وې
بس خندا او یارانه وې



# باوېړے

بیا شروع شولے په ما دَ غم چپې
بیا بے خوبه بے آرامه مے شوې شپې

یو خوا رند یو خوا ساقي یو خوا شراب
بل خوا آلوت کښېن زاهد اړوي تسپې

په لوګي دهغه اور دواړه تو دېږي
چه عالم ئے کړو جليا سے تپے تپے

غنی خوبه د ارمان په لمبو سوزي
خوبه وي دا د فراق سرے تپے

دځوانئ اختر دے لاړ نکړېږ څه کړے
سبه به وي چه په دیوال ئے وُ تپے



# میږې

اوږد کاروان ستا — ګرم روان وي
سم په قطار قطار — لکه اوښان وي
په ډله ډله — په منډه منډه
نمر درله او سوړ — لښکره بربنډه
لکه دَ سپي ږمې — خُله کښې اوړه کړې
او دَ پلټنې په شان — په پړیت تلل کړے
د ملېښتي په شان — هم غل هم نرے
په حکم کلک روان — د خپل افسرے
د خپل نظام تابع — لکه انګریزے
په زړه مضبوط مړنے — لکه چنګیزے
ملا لچکداره نرئے — لکه لښتئ لړے
خُله د کلنګ هسے — خپے پټ پتے لړے
وجود دَ درے بنده — او شپږ دِ خپے دی
نرئ نرو چک دی — کږے وږے دی

اولاس دیو نشتہ — دا عجیبہ دہ

خہ بے تولہ غونډ — دِ معاملہ دہ

دَ پیدا کولو آفت — دَ جمع کولو بلا

لکہ د شوم خنبوے — زمکہ کښں واړہ دنیا

پہ هیڅ هیلہ نہ کړے — لږم خورے مار خوړے

تہ دَ مچو د ښېرو — تر سکون اَچار خوړے

د سبا فکر کوے — نوے فاسفی ئے

مستی خندانہ کے — پخو صوفی نے

یو قدم نہ اخلے — تہ بے غرضہ

ربّ دِ مونږ و ساتی — دَ دے مرضہ

بس دخوراک لہ غمہ — لیونے کرخے ملام

تہ نے دحرص بندہ — تہ نے دَ خیټے غلام

ستا طبیعت دَ قارون — دَ خزانو شوقی

مین پہ هر میوہ — د هندوانو شوقی

دا سے پہ دوږ زغلے — لکہ بګی

اَچے دَ چرګے هسے — سینے آګی

دیرا ستکارے تہ — خولا مو کښں نہ وے

پہ سر زمری ورځے — ژوندے ملخ نہ وے

دکل جهان صفائی          ستا به ته کړه دوه

ستا نوکری په ماچین          په امریک

اوړے اوژمے          منز پشکال

ستا دغه لاروی          او دغه خیال

دَ پیلا ایشر نه واخله          تر دَ مرګی

تل دغه پناه لاناه          کوے زویږګی

نه دِ پوره کړه          او نه ته موږ پشوے

اوږے پیلا اوے          او اوږے زوږ پشوے

تاکښ خبرے دیږے          دی زما خوښے

خو هیڅ مستی نه کے          په زړګی سیځے

بس منا وه منا نے          تُل اوکا وانه کے

بے د خوږلو څکلو          بله سودا نه کے

خو زما خوښے په دے          نو بها درنے ته

په ماچک مه لکوه

که زما یارے

الله دِ درکړے

دانے بسیارے

★

# وصیّت

که خازے شنے م په قبروی ولاړے
که غلام مړوُم راځئ توکړئ پرے لاړے
که بچیلو وینونه وډم لمبیدلے
په مامه پلیتوئ دَ جمات غاړے
چه قطرے قطرے م نوځ دَ دښمن نه کا
مورے ما پسے په کوم مخ به ته ژاړے
یا به دا ننګه ملک باغ عدن کړم
یا به کړم دیښتنو کوځے ویجاړے



# ماشے

دَ ماښامه تر سبا      سرېنده کاله سهار
پېنه پېنه پنګه پنګه      هم خوړل کړے مې دنیا
سپک به وخیژې په تول      دوؤ دانو سره غوښتو
خوشحالي ستا دَ ګذاره      خان کړې پټ په خټو خټو
پچکاړې دِ نې تل ډکه      وے هر حاله اغښتن
ته به وې ستا باباجي وو      د نو ښار رسول سرجن
دَ میرزې هوډ کوڼې کښ      ډم خُله ښتنه هم خرم
اوږد دَ خپې دِ دَ جولا دی      نرچوکی وزرد دَ دم
اوږده دوه نګه دوه نبرے      باد دِ ښتنه په لاشه کښی
واړه زهر دِ راغونډ دی      دَ وکیل په شان په خوا کښ
نور همه غلا دَ جهان      وی د مال دِ فصل غله
ته زما دَ ژوند دِ غل سے      زما وینه ستا خواږه
په زړه سخت سے دېزیده      دَ کلاب په شان وږوکے
سر تر خپه سوری سوری کړے      هر سوری کښ آفت پروکے

چه زه دا شمه ستومانه　　په کټ پریوزم بې اختیاره

ته به وې تا ته غورې چا　　د پولاو کینبوه تیاره

تک م او باسې دغوړه　　پوست بالښت ته رسیدې کښې

بیا تمري خپله شروع کړې　　په نړو نړو پړدو کښې

ستا په طمع گذاروکړم　　خان له ست او سوزوومه

ته م شا ته سرېندوې　　زه غوړ ونه کړومه

که رېښمین شان مانام وی　　سور گلزار او شین چمن وی

چه یاران او ده په ولینه　　نشه شوی په دیدن وی

په سر خپو د لیلی کیږدې　　پلیت و زبې د سپی داره

لیلی وخ او ویش شروع کړي　　خوار مجنون پرېږدي ولاړ

که خوک پټ شي په څادر کښې　　ته نې پاس کړې پنگه پنگه

چه آخرې پوزه راوزي　　لکه شکون د چیل سرنگه

ته بې شغ شغ دا بې پیوزې　　لکه بازگینی په زړوکې

حمله پرېږدې په قلارې　　چه جلد تړې نه استړي کې

بندیان لوټي وړوکي ځکې　　هر څه ستانه په آزار دي

غوان، سناړکا، مینې، آسو　　دلکو والو بې آزار دي

دوه خاخکې د دوزخ نې　　که د شرافت مخرنې

خله زما په وینو سره کړې　　بیا پې وینې راته سنا کړې

وی مُلا بابا چه ستایو　　قرنیکه په پاپو شل

د نمرود سپین ږمه کښ لاړ　　غا غا په چل وَل

هغه اورغوریال په زمکه　　ګلک ئے ونیو وله تشی

چه شروع ئے په یو خُل کړه　　هم تیز ونه هم انتو شی

خوګله ئے د ننه ناست ؤ　　د قول به ئے وزرد

هله ئے پرینښو چه ئے ونګه　　دَ غریب نه کچومر

حرام توب کښ د ښکار شو　　چه کړدئی بابا زورے ئے

چلولی لکه لومبړے　　اوږ سمے لکه سپے ئے

لا یوه بله غر ه دے　　د هماو ده عجبه

خان سره کوزے په بله　　ښه تو ده د منی تبه

را د عا دَ لیونی ده

پاکه ربّه که قبلے

که را ښکے په وارو ماشو

تیزه سرّ دَ ضرپیلے(*)



---

(*) ضر: اضار۔

# پیرے

ویره پیرے دے　　　امید د نها ده

دَ شک تیاره کښ　　　ویره بلا ده

که جوړیده دی　　　که ورانیده دی

کاروان روان دے　　　دَ لاړے تله دی

ویره تیاره ده　　　او ورکیده دی

امید ژوندون دی　　　امید لیده دی

دِ وے ویره کفر دِ　　　خدائے نه منل دی

یو تور دریاب کښ　　　غوپه وصل دی

لمبے دَ روح　　　لوګے کیدل دی

په ژوندون ګورته　　　ورکیدل زیدل دی

امید هستی ده　　　امید بقا ده

ویره پیرے دے

ویره بلا ده



آس

# بَدُو

ترپ ئې د هوسئ په شان — زړه ئې د زمري وو

رنګ ئې د غمي په شان — خیال د بنا ییری وو

سترګې د کور کوړې — غونډ غونډ ښکلې ښکلې

تله ئې دَ نرانو — طبیعت ئې دَ بلبلې

تن ئې د طاقت او دَ مستی — او دَ نرانې ډک

روح ئې د همته و — ځیګر ئې د مړانې ډک

خبرې ئې ګړا وه — د ساقي د سپینو خپو په شان

سترګو کښې غمو نه — امید و نه د هوسو په شان

زړه ئې دَ پښتون و نه — په کندو نه په غرایسار

جوش ئې د غازي و نه — په ځان او په سرا یسار

چې خُله آشنا زما — لاړې چرته لاړې ته

چرته د چاکور کښې ئې — چا نه وړې غوا ړې ته

شته هغه دنیا کښې نه — نوکر کړ دِ لا ور په شان

شته هغه دنیا کښې وا نه — شنه دَ هشتنګر په شان

چې خُله آشنا زما — چې خوله وې ټول عمر

---

(۱) بدو: زما عربی آس وو. دِ لا ورې صائیس وو.

اوه چه زه ئې لمې وے تل          اوه چه ته وے تل عمر

دغه وو آشنا زما          دغه وه دَ ژوند قصه

دغه دَ آدم وجود          دغه دَ سمند قصه

ترپ شو او تو پوه نه شو          خوب شو او خوبونه شو

دوه دمستی ورځے شوے          دوه دَ غم کاله نه شو

نه ئے دَ راتلو سبب          نه ئے شته دَ تلو علاج

نه ئے دَ ژړیدو دوا          ئے دَ ولولو علاج

نه ئے دَ کمولو بند          نه ئے دَ زیاتولو شان

نه ئے دَ هیرولو تاب          نه ئے دلیدلو شان

نه ئے دسلګو تپوس          نه ئے دخندا وجه

نه ئے دَ پروان سبب          نه ئے دَ سبا وجه

اے مستہ آشنا زما          لاړے چرته لاړے ته؟

چرته دچاکور کښی ئے؟          چانه ورزی غواړے ته؟

څوک به نوا لے در کی؟

څوک به کوی ستا مدار؟

کوم جهان کښی الوزی

ستا دمستو خپو غبار





# پلوشه

هندوستان کښې دوو تونومندے راغلي

په کښې خلق خرڅوي ایمان په خټو

بابا وے: غنيَ: سرے شه جیل ته لاړ شه

غنيَ وے بابا لنده نه دے دَ خټو

# قارغه

تور دِ مخ دے غل چکیه ۔۔۔ تور دِ زړه تور دِ آواز دے
سپے نے خیته دکول بس ۔۔۔ ستا انجام او ستا آغاز دے
چاتورے که د ماستو وی ۔۔۔ که د بچے دَ کچالانو
که پولاو د خان لاله وی ۔۔۔ وظیفه دَ ملیانو
ستا په هرڅه کښ حصه ده ۔۔۔ تول جاندار دے ستا دپلاره
یا تورنګے وَنے یا تغیږے ۔۔۔ نه آرام کړے نه قرار
غل هم غل نے بے غیرته ۔۔۔ دپوتی چرکوتی غله
نه دِ پرک شته نه دِلته ۔۔۔ ډک د شوره دَ چلوله
موسے خیته کښ دِ پروت ۔۔۔ ډنه د حرص تهترین دے
نه دکیږی نه یخیږی ۔۔۔ عجیبه دکښ مشین دے
که د سوتو مخا ډیران وی ۔۔۔ که اګۍ وی دکړکوړے
که بچے دَ تورانۍ وی ۔۔۔ که وی سخا مردار کپوړے
که غریب وی که ماشوم وی ۔۔۔ که حلال وی که حرام
ورته ستا کیړه کښ دړه دوی ۔۔۔ که سحر وی که ماښام

بل مارغه کښې دومړ پوهه
دومره چل او هنر نشته

خوافسوس قارغه په تاکښې
دعقاب سره وزر نشته

تش په چل سردار نشي
دسرو نه د مارغانو

دا په مینه مستي کیږي
په مور زړه دلیونیانو

ستا لغار دسپي کونګار دے
یوه چغه ده د لوږے

د بلبل په شان نه ئے
دشبنم دڅاڅکي تږے

په هنر که سامري شې
په حکمت بانده لقمان

تل به خورے چیچړے اوسوتے
اے جوړیه د آسمان

سره کلونه د لولي دي
ښنے کمرے دي دکوري

یخ سحر د تورانۍ دے
ماخیګر د تو تکوري

ستا حصه دوه دغه سوتے
دغه شور او دغه منډے

دا کنځل د خدمتګارو
دغه چغے دغه غونډے

خه که تیز لکه وکیل ئے
خپله وائے دبل ناورے
په مارغانو کښې چوړے ئے
که وزرے د رب خاورے



# پلوشه

یاربی مخه مزه کړه
چه د وار وسیال وي

سري هم دومره وي
چه خومرو نے خیال وي

شپه به د جنت خدایه
چه دیار و ال وي

خومره چه زیاد وي ښکلے
دومره نے جمال وي

د قام په مینه مسته
کوخجکه لال وي

دا یو نے به هله
خدایه خوشحال وي

چه لاس او زیاد وي د د
د قارون مال وي

# چرګ

خوراک کوے دَ سپی | او مسئلے دملیانو
بانګونه دَ بلال | او لنګوټے دچنګړیانو
پرتوګ دِ یار نشته | او شمله نیغه دَ خان
شل سے بنځے دِ ساتلے | خو سحر وانے آذان
په جنګ کښی بهادر | او مستانه لکه چنګیز
په مینه کښی بے شرمه | بے پروا لکه انګریز
او ربوز دِ دَ قانی دے | طبیعت دِ دَ هتلر
آواز دِ دپخنو دَ نے | او انداز دَ منسټر

انجام دے تبخے دے
اے مجنونه دَ دیران
یو روځ به روستے بانګ
وکړے دو ډئ به وکړی خان



# بنځې

چاله شراب ورکړي چاله شړې وينې د جام

چاله خربانو د پاره چاله ګل اندام

څوک په اديله بانړے پرې د ماچين واخلي

څوک په چوارنے پسے دنيا کاندي تمامه

چاله ښه خربه خوږه بوځي لکه د ګړے

چاله نخه نخه شيخ رو کړے دابو مړے

چاله د لوکي په شان چسته او رنګينه

چاله د ګوټنګ پشان تورد او مهينه

چاله قتقي کوکاري ګړکه زړه چرګه

چاله غوناړه موناړه مسته تکه سپينه ګرګه

چاله داسې ستغه لکه اوچه بکيانه

چاله دوبه مسته لکه نوے دوک بيانه

چاکره صابره کورودانه درنه مينبه

چاکره سيمه کوترۍ په هر چا چه شو پيښنه

چاکره چلی د چلی　　لوړه بده مکاره

چاکره کمتره چه هم　　ښځه وی هم یاره

چاله زره خره ښځو نده　　بی نوره پواره

چاته لک سروه　　دخندا دکه والاره

چاله ښځه ترسکه نه　　چاله ښځه خوږه حلوا

یوله دنیمبوا چار　　او بل له مربه

یوله خمیره دودی　　پرسمنه پسته نرمه

بل له دمسورو پیتی　　کړکړه کړکړه مه

ورکړه د قسمت دی

چاله دیره چاله کمه

خدای د هغه درکړی

چه وی ستا په شونډو سمه

حیدرآباد جیل



# تیروتے

سقراط[*] دغه ځائے کښ تیروتلے
ایمان دِ واغښت فلسفوله یووړه

د غلته ړک دغلته ړک شوے غنی
زړګے دِ خپل په دو سینوله یووړه

خیام دغه ستا د مرګ دوساعت
چه خپل سرور دِ صراحوله یووړه

منصور خکه خوپه دار او ختے
چه دَ آشنا راز دِ هجروله یووړه

دا ظلم ظلم دے زما جانانه
چه دِ صرګل خاورے کیلُوله یووړه



---

(*) سقراط د افلاطون استاد مشهور یونانی فیلسوف او حکیم

# زبرګ

چه دې وس د باړو نه وي — ښه به ته ښه به دې ښه وي

توبه هله د شرابو — چه شراب در ته پراته وي

چه بله ها شي خاکرېښه — بیا توبه توبه د څه کې ؟

هغه ښه د بد و بد وي — د ناکامه چه ته ښه کې ؟

ملا ناست د تکړو شکور ته — وي رندانو ته خراب

غریب څه وکړي حبات کښې — نه معشوق شته نه شراب

دا چه باغ د ګلو ډک وي — مستانه غونډې ما بنام وي

دا چه سپینې شونډې ساقي دې — په سور لاس نیولې جام وي

دا چه تا ته رسېږي ستړې — غلې ووائي سلام

په مکیز دې زړه کښې بل کړي — د مستۍ دوزخ تمام

او وي راشه راشه یاره — وخت د لږې خبرېږې

بیا دې روښان د اوړنه — پښتې لیمې کړي چاپېرې

څله دِ ځلې ته کوې درپورته    مشو نائسے تو دے بیهوشه

لکه بله ډیوه ږدې    د ځوانۍ مستۍ د جوشه

سینه دروړې سینې له    دَ مخمل هسے ریښمینه

د ارمان او مینې ډکه    د نرګسونه نیاز بینه

او ستا وجود یو سمندر شي    د طاقت او دَ سرور

ذره دِ واخلی هغه اور    چې هم اور دے او هم نور

ته چې دغه وخت او چپ شے

ستے جمات کښې په ژړا

لیونے وائی قسم دے

یاخو غوث نے یا مجرا

غني

حیله آباد جیل

# ګړې وړې

راشه راشه ساقي راشه — ډېرې ډېرې مُلا ډېرې
په ما باندې بدې لګي — ستا نخې پخې خبرې
غټه پګه دِ شه خاورې — عجيبه ته خناورې
ته دَ مينې بې خبره — ته دَ حُسن نه منکرې
دا محفل دے د رندانو — اخوا اخوا لرې لرې
د شرابو دَ شکونه دی — ستا ترخې شونډې ببرې
ورشه دغانته خيرات دے — تالئے تول اپنيې دے لرې
دَ کعبې په شان خوږې که — په مرداره دِ وزرے
ساقي ستړګو کښې مسکے شو — بيائے دَ خيال کېنوے وزرے
په تُل مسته مسته راغله — سرې پاپڼې نې د کمترې
ستا اوږه واړه جنته — دَ دے يو د نازنخرې
ستا خلوينت زره کتابه — ددے دوه خوږې خبرې
ستا ورعے اوږدے دحوږ — دلته سرې شونډې شکرې
تالله قرض زه ادا وُن دېرکرم — دا راکې پرې ملغلرې

ماشوم یم(۰) چه جنت پرېږدم — ستا د سور دوزخ ډېرے

جانانه میخانه درکړم — واخله ستا کنډے دے

مُلا تا خکلے نه دی — نرے سړے ښونه کافرے

ستا په غیږ کښې ناستے نه دی — د کالوړے کمترے

د جمات په چارچوبی کښې — یاده وه پرے د تورسرے

د ګلزار کښې ته ولاړ — په ډیران لکه د خرے

اوږے ستړے اوږے خیټه — بد قسمته بد نصیبه

خیشت او مینے ته شکوره — او په زړه په روح غریبه

راشه راشه لیونی له

جام او چت که مسلمانان شه

د زړه انو په مذهب شه

جنتی په دے جهان شه

حیدر آباد جیل



---

(۰) یم : سیم

# ګلهٔ ورړے

مسلو مِ زړګے درونده یاره ماته ېکتنے شه

نور درد و تو تاب مِ نشته پراته شه چپاتنے شه

دا اوږدے اوږدے خبرے دا واړه وارهٔ فکرونه

دَ ملے هاے دَ کړلو نه یم ماته مې تنې تنې شه

رڼا و ستر ګو د پتنګ نه دَ نورو نو قیصے مه کړه

پتنګ لمرته کتے نه شی دیوګی شه موم پاتی شه

ماته ماشیه؛ قیصے ته دهاتیانو دَ تول مه ک...

بس په دغه خانے نے پریږده بګتنی شه

# عجبه فلسفه

زړه مې واچوه په تال کښې — دَ جمات کوټې له لاړم
دَ مُلا په خپو مې کېښووُ — ما وې دا مې صدقه ده
دا چه خوم روه زه پوهېږم — په "طٰهٰ" او په "یٰسین"
دا چه خوم روه بنګته تلې شي — په سجدو زما جبین
دا چه خوم روه اخلي نور — دا زما خاکي وجود
دا چه خوم روه زما زړه — شي خړکې انګبین
مُلا خو زما نه واوره وو — وې دا څه دې ستا تالي کښې؟
نه پلاو دے نه فرني ده — نه حلوا نه فالوده ده
وې ئې شرع ظاهر ګوري — او ظاهر وته فاسق ئې
دا دَ رب سره دَ مینې — تا را غښتې څه قصه ده
یره یره دَ قهار نه — دَ ایمان اصلي حصه ده
دَ جنون او دَ جانان ستا — څه مهمله فلسفه ده
زړه دې کېږده په سینه کښې — دا لته رنګ او لباس راوړه
ستا شراب دا لته حرام دي — شه بهټ راوړه کلاس راوړه

ما خپل تال ډک د خوبونو — د قاضي دربار لېږونو
روکے لال مې را اوچت که — تار خانے او مار لېوونه
ماوې اے دسبو اوباڼه — اے د تورو سپينو خانه
د داني زما قبوله — په نامه کړه د جانانه
قاضي امينا سته په تخت خپل — په سپين سر ئې دستار کېښود
په يو لاس ئې توبه کېښوده — په بل لاس ئې حصار کېښود
تله ئې پوره ته د منطق کړه — يو خوا دے يو خوا م تال و
يو خوا شوه وو کم زور ئې وے — بل خوا ژړے و ، کمال و
يو خوا عقل و دليل و — نه مستي وه نه جلال و
بل خوا روڼا غوندې تلاش و — ډک بے خوده غوندې خيال و
ماوې دا ليونتوب واخله — او خپل عقل پسے تاله کړه
ماوې دا زما خمار — د خپل عام کتمالة کړه
ماوې اے دا انصاف ته! — دا د ډکو مستان کړه
ماوې اے د تول اميره! — دا بے توله تلل څکوره
قاضي ستړے کوے سپينے — شو نا هسے بندے مخ پرېشانه
وې افسوس زمانه ورک دے — دا چه ته غواړے زمانه
زه خو زوريم د انسان — زه سرور د آدم نه يم
مادي سپين او تورا غښتے — د مستۍ د کاسټانه

زه تور دینم او سپین دینم
بس زما دغه قصه ده
دغه تول زما امید دے
دا تلل هم فلسفه ده

ماخېل زړه لاس کښې راغونډ که
تورے شپے او غم له یووړه
د مابنام تیاره کښې ورک که
د سبا شبنم له یووړه
اوس یو زړه یم یو ارمان دے
د جانان د شان قصه ده
روکے ګل او لوے خزان دے
یو امید، یو تلوسه ده

ماموږکی نه شروع کړے
د ژوندون د خیشت قصه ده
د جنون او د جانان دا
څه عجبه فلسفه ده

بهنګوتر (مزاره)

# د توت بڼاخ

کهٔ دے سر کهٔ سرور — نو دے پانی پهٔ غم
دا رحمت او غضل — زور دَ زور او ستم
مایوسی او مستی — دوا پهٔ شال دَ صنم
دا خندا د یقین — او دا شک دَ ژړا
دا تیاره دَ جانان — دا هلال دَ صنم

بڼاخه دے پیوستار دے
د توت بڼاخ د سیمو تار دے
هنګ او شنګ او ترنګ درد دے
د بل لاس د بل خمار دے
مجلسی چه پهٔ خندا شی
دے بس شور دے او تقار دے
غږونګے چه بلبل وے
دے هم ګل دَ هم بهار دے
چه منصور پهٔ کښے کیږدی — هم دار هم خار دے

عطر تول د بل د خیال دے
دے یو گل دے بھارنہ دے

دے روان کاروان د بل دے
دے ارمان دے دلدارنہ دے

دے مجبور شان مسافر دے
منزل نہ دے اولار نہ دے

د بل خیال د دہ تقدیر دے
دے نصیب دے او نہ تور

ناز او راز، آواز د بل دے
د دہ شرنگ او د دہ شور

شپہ او ورځ د دہ تول
د سبا او ماښام

د دہ هوش جوړ وی
هم ساقی هم خیام

دے نظر دے د کاونہ او نور دی د بل
د دہ سترگے خو خیشتے او سپوږمی د بل

غنی
(پھاڑپور)

دلته مينه تش يو ښکلې سينه کښې د وبيدانه دى

دلته ژوند داستان د غم خند آکله اکمل نه دى

زر لکه معنى که د ملال د دنيا وکړے ته

نشته دے په تا کښې د ملال نخرے يو

زر زره رازونه دے کومى ښکاره شوى دى

نه دے خولے تا ته د ارمان کمترے يو

دلته ډير خوبونه د رنا ليد لے شوى دى

نه دى خولى تا ته خپلے مړے دلبرے يو

ته نيولے نه شے ، ليونتوب ته جلال پريږده

کينه افلاطونه ، فلسفه د سنبال کيږده

تا سره ده تله د سيرونو د مستونو

دلته کښې نجرونه دى او تور او دړانه غرونه

ته نے بيوپارى د عطرو ګرو ، د چرګانو

دلته کښې پرتے دى ولولے او اميدونه

تا له يو قطره شراب ، درياب د تورو زهرو

دلته کښې پراته دى په زرګونو د ګمونه

اے درنا زويه دلته لوړے او خوبونه دى !

ستا له قطرے تلى ، او دلته دريابونه دى

ته د آدم لاس نے د آدم سترګے او سر

ته د دهٔ پوشاک، د دهٔ لباس، د دهٔ بستر

ته د دهٔ وجود، د دهٔ آرام، د دهٔ بهبود

ته د دهٔ قانون، د دهٔ آقا، د دهٔ افسر

دلته ټول تلل دی ستا دَ تلے نه اوچت

غرونه د عقاب دی، دَ بلالے نه اوچت

ستا سترګے روښانهٔ دی خوزنهٔ دِ درڼا وتورے

تاکړه روښانه ستورې نه دی، اوردے، اوردے



لکه غرځ چه د بل ځا په زړو کړي
خیال جانان په ما بنام د وصال سرے

دا دی زهر دا زهر د روح دی
خو نامه ورله ور کړي د مال سرے

دا و بنیار ولاړے م دیرے زده
خو زما د شان دغه لاړ نه ده

زه د زړو صحراو ارمان یمه
زما بخت کښې کوڅه د ګلزار نه ده

زه چینه د ژوندون د خوبونو یمه
لا م موندے سینه د دلدار نه ده

نه یم خادړه خو دیره بے تابه یم
ما موندلے لمحه د قرار نه ده

تالا کړے م ژوند هم غرور دے
داو م ایښے په کور د سرور دے

غنی ـ غرنسر



# الابلا بہ کردن ملا

به کل کښې ولید — چه ته نے نه مومے کتاب کښې

اے ملا: ستا نیم کتاب م — واوریده د رباب کښې

ستا پګړۍ د عقل — زما تاج دلیونتوب په سر

ته نے په غاره ژاړے — زه غوټے وهم دریاب کښې

دے جهان کښې موږ نه شو — د مغه خانے خدائے خبر

ستا نه نبه بنیا شو — ملا تیر وتے حساب کښې

نشته ستا زمزم کښې نشه — واخله سره شراب زما

وایه ملا صاحب ستا خلاصه — څه وائے دے باب کښې

میړه دے کړ منطق کښې — په منیا(*) کښې دے ونه مونده

زه نے مدام وینم — دغمونو په دریاب کښې

حسن د ره نه ورک شو — د کعبے په دیوالونو کښې

ورک دے سمندر کړو — مړلے تندے شوے سراب کښې

زار دے شم لږ بیرے ملا — سوال د لیونی واوره

نوم پرے د کافر مه بده — د دے غزل جواب کښې

---

(*): منیة المصلی

# جلال

چه زه غواړم د هیوونه مستي سره ګلونه جوړ کړم
د سرو اوښکو نه سرې شونډې د ژړا سره جوړې کړم
د خزان تیاره کړم ړوبه د امید په سمندر کښې
د ګنجونه لالونه . د غمو . پلونه جوړ کړم
چه د اروح م په ښکاره وخي د رنګونو د خوبونو
که نور نه وي د تیرو نه . رنګینې نوې جوړې کړم
چه د خیشت شم زه لیواله . د صحرا هره ذره کښې
په زرها و بوستانونه . په لکها ګلونه جوړ کړم
چه زه ورپسې د ارمان شم . د سپیلي په سپین سبا کښې
بې حسابه ماښامونه بې پایان غمونه جوړ کړم
تور او سپین زما د سترګو کاته تول کاله تلل دي
شپه او ورځ زما نظر دے وکړل دي او منل دي
که خندا ده که ژړا ده . دا څکه مشغول ل دي
که وصال دے که فراق دے خیال سره ته ګډ بدل دي

چې زه مست شم د دېوانو سره د خښتو کلونه جوړ کړم

د سرو اوښکو نه سرې ښتنې د ژړا سره به جوړ کړم

چې زه نيت د ګټې وکړم د پرېوتي د شکست نه

د فاتح د شونډو ګېر او د سترګو غرور جوړ کړم

دا چې زه خان او بخت د رنګين بادونه ودان کړم

د غلام امید بدل زه د بادشاه په کال سره وکړم

چې خپل نوم درنه ډېر کړم ترینه ډېر نومونه جوړ کړم

چې زه غواړم د هيوونه مستي سره کلونه جوړ کړم

دا چې نه او واته نه . دا چې ستا مستي رښا ده

دايم زه . دا بس يو زه يم دا زما ژړا خندا ده

د مُلا خبرې پرېږده . ما مله ستا او زما ده

دا داستان د لوړې نه دی دا قصه د عشق او ساد؛

دې زما بې شوره ژوند کښې پټ ستا حُسن او کمال دی

دا زما الم او ژړا ستړې . ستا د زور جاه او جلال دی

بهنګوټر



# پلوشه

یو توره شپه د غم کښې یو څری د رڼا
زرغون په ویرانه کښې ښایسته بوټی د لالا

د ونې تور ځنګل کښې یوه زړکه په خندا
یو څاڅکے د امید د نا امیدۍ په دنیا

رنګین د بوډۍ تال د تورو دښتو په صحرا
مستي ده که ځواني ده که دلبري که الله؟





# پلوشه

جو مات ته لار به میخانه کوره
په زیان کښې سود د شان جانانه کوره

نیته د دولتهٔ او کاروانه دي دی
پوره به نکړې شې خان له بانه کوره



# اراده *

نه م یار شته نه به وشي
او سني یاران دې خوشي

چې حاجت نې دې ته وینه
ستا به پلار نیکه م نه شي

کار چې خلاص شي دې تښتي
ځلیندې نه لکه غشي

چې یارې په شلتالو شي
دا یارې به یارې څه شي

نن خو ډېره یاران ډېر شو
لکه سیند کښې خشې بښي

سخا بادام دې وانې خلې
یو به ډک وي سل به تشي

په فایده دې ظالم خاندي
خو پکښې اوبه اوبه شي

ته په دغه لار مه ځه
غني دا به درله نه شي



---

* د پنځلس کالو په عمر کښې م دا لیکلې وو.

# رښتيا (*)

چې م باغ د ګلونو نه بهار به څه کړم
چې م سترګې د یار نه وي خمار به څه کړم

چې د خولې نه د بلبل و ستائنه وي
که هزار ځله شي خوږ چغار به څه کړم

که پېښې نور د الله نه وي وريدلي
د کعبې د ښکلو ږګ مينار به څه کړم

مقبره د سرو ږګو ترينه ښه ده
د جاهل بې غيرتو ښار به څه کړم

چې زما د خبرو لالي په دې نه رغيږي
ملا! ستا د قصه د نور او نار به څه کړم

چې زما د عشق سازونه پکښې نه وي
د سرو زرو که وي تش سه تار به څه کړم

---

(*) رښتيا د ماشومتيا د زمانې دے.

دَجانان زلفے چه شته روندو زاهده

سنا تسبیح . دبرهمن زنار به څه کړم

چه زما دقام جنګه پرے نه رپیږي

بل چا دغرو په شان حصار به څه کړم

چه ئے تل دَبل به غېږ به خندا وینم

دَ دے یار دَښکلی مخ دیدار به څه کړم

ما ته غوره دَ دلبر دکوڅے کنډے

دَ رقیب دمحل نیغه لار به څه کړم

چه ئے قام دپاره جیب کښ پیسه نه وي

غنیٔ : دا دشنه وغواؤ ګوار به څه کړم



# غمونه

په خندا د سرو غوټو کښې
د خزان سلګۍ پنهان

مستې سرې شونډې مسکۍ زر
کړې خندا او چې په ګريان

يو قطره د مستۍ وډګړه
ښکاره رنګ ښايسته شادان

خو دښمنے آدم جوړ کړ
د غمونو قبرستان

او زما وړوکي زړه کښ
دي غمونه په شان شان

يو دى غم چه د رب خوښ وي
هغه غم دے د ايمان

يو د غم د قام د ننګ
خوشحالي ترې ښه قربان

یو دے غم چه څه غم نه دے | بیا دے په غم د ځان
یو د غم چه سر ئې سپین کړه | هغه غم دے چیل خان
یو د غم چه سینه تور ئې لښته | غم د شان د خاندان
یو د غم چه په زړه ئې کړه | غم د قام د نوم نښان
یو دے غم د شاعرانو | غم د مزکے د آسمان
یو دے غم د بادشاهانو | غم د خوار د بے زبان
یو دے غم د بے غیرتو | په پښتو لګښ د تاوان
خو یو غم تریخ د دښت واوره | د دے اخته زما په ځان

نه په دم نه په عمل ځی
نه ئې دارو شته نه درمان
په خوا ئې غمی کړے مرګے
غم د سترګو د جانان

۱۹۳۰ع - لندن



# تجربه

د رواج چپې مې وسوې
د قانون لښکر مې کېښود

په خندا د رباب له لاره مې
ستا سپېره کوډه مې پرېښود

دا تاوده او یخ بادونه
نوي ساز نوي سرونه

نوی ښایست نوي ګلونه
چه د خیال وزر مې کېښود

کله تاو غولي کښې شمه
بیا څپو کښې ونښلمه

خوږه خمه خمه خمه
غم د خان وزر مې پرېښود

خبر نه یم څه به کېږي
چه څه کېږي ښه به کېږي

که ورکېږي که دوبېږي
پخپل لاس کښې سر مې کېښود

مړ د خپله لاسه ښه یم
خو بې خپل دوزخ کښې یم

نیم پردې جنت کښې نه یم
سوال د بل د دره مې پرېښود

خان مې وپېژند دانا شوم
خپل مالک شوم که باد شاه شوم

تیاره لاړه سپین سبا شوم
د قانون لښکر مې کېښود

۱۹۳۱ء - لندن

# خدایه ولې؟

خدایه! عقل چې وُو ذره دې ولې راکړ!

په یو ملک کښې دوه خو سره بادشاهان

بادشاهي او فقیري دې ولې یو کړه

د ژوندون په هره ساکښې مرګ پنهان

ولې غم لکه آسمان په جهان خور دې

خدایه ولې خوشحالي دې کړه نایابه

ولې جوړ دې کړه ننګې د ګل د پاڼو

خدایه! ولې تشنه بیایې له شرابه!

ولې ښایست او رنګ دې دواړه خور او ورور کړه!

ولې ولې دې جهان کړ دک په رنګ!

ولې کوڼ دې زه پیدا په جهان نکړم!

خدایه! ولې دې آواز پوست کړ د چنګ!

ولې ماته دې عطا کړو فکر خیال؟

ولې ولې په دنیا ورشي خوبونه؟

خدایه! ولې دے ځوانۍ مې چاله ور کړه ؟

خدایه! ولې دے پیدا کړل امید ونه ؟

ولې جوړ دے دَ یار سترګو کښې جنت کړ ؟

ولې ترېخ دے کړ بېلتون او خوږ وصال ؟

خدایه ولې دے سپوږمۍ له رڼا ور کړه

چه زړګے مې دَ مستۍ په مهین تال

ولې جوړ دے کړ ازغی دَ ګل په خوا کښې

ولې زړه مې پاک خو جسم مې ناوړے ؟

ولې ماله دے دَ ولې طاقت را کړ ؟

خدایه ولې، خدایه ولې، خدایه ولې ؟

۱۹۳۰ء، لندن



# بابا ته

دا منم که عقل ډیر دی
که ته منے غنی سیر دے

چه حساب کتاب ته کښینے
ته به وے خان د بونیر دے

دا منم په خیال ماشوم دے
د ملک رو رواج ته هیر دے

خو مے تورغ سرے مغرورہ
دَ خواهش غولي کښې کیر دے

خونے زړه و سپینه بکوه
په یار دوست د سرہ تیر دے

بابا ته مه خفه کیږه
د دے زنګ لا نه شمشیر دے

۱۹۳۱ ع - لندن



# څه د پاره

...ازخان جوړ جهان کړ د عالمو
... د لوړو د ژوړو ورانو سمو

زرغون شوي په امید ژوندے په طمعو
شو پیدا د کومې مور د کوم پلاره

څه د پاره، څه د پاره، څه د پاره

مونږ بر بناله کومے راشو په تش لاس
ولے واغوندو د ننګ شرم لباس؟

ولے جوړ کړو دین ایمان ویره وسواس
په تش لاس کوم خوا ته خو چه ژوند شي خلاص

په کوم ملک په کوم وطن په کومه لاره

دا ویروونه دا غوغا دا شور د څه دے؟
دا چه زه ورته ویم کور دا کور د څه دے؟

اوه، دا سوځي چه عالم دا اور د څه دے
زندګی څه ده، مرګ څه دے ګور د څه دے؟

چا پسے څه پسے څه بے قراره

غربت څه شے، طاقت څه دے، دولت څه وي؟

ولے ماته چه وي سبب بیا ته سبب نه وي؟

څه وي څوک چه جهان نتي عالم نه وي؟

کوم خواتنبتي مروه رنا کوونه سوي؟

یوه روکے سراو دا قیصے بے شماره

څه دپاره، څه دپاره، څه دپاره

۱۹۳۱ع - لندن



# بوډا

بوډا په بریتو لاس راښکه وي مې تنې تنې
لاوڼ دمخه د کله دا دے د لاس پیتی

هینکولی م دخوا ښے اوچه کورے م د نږدی
مازغه دخوان کډ وری اوپیرے د کتهی

په لاس دے جواری په باہ سرہ غوتہ د پیاز
د پاسه پیکو بے پرے دا مال س د سخامتی

کہ دیر پہ زرہ مال لایے دپیسے کو نکری م واخله
بیا خه پہ ترہ سکوات کرہ شروع خپله پیتهی

۱۹۳۰ع - لندن



# پلوشه

زما بخت د شمع بخت دے یا به مړمه یا به سوځم
یا به بیخ له دریاب ځم یا به سر به چپو خوځم

عجب زړه عجیبه لاره عجیبه کاروان روان دے
ما د روستی په اوله بیائی که زه ځمه او که نه ځم



# حال زما

هیڅ د عشق له غمه نه دی برابر غمونه کل
چه د یار فراق دے ووی د غمه دی د خدائے اومل

چه مې زړه دا یو ویر شو د قارون خزانه څه کړم
چه لالی مې خوا کښې نشته څه کړم ګل څه کړم بلبل

چه دنیا مې شي برباده آخرت به مې څوک جوړ کا؟
چه د زړه پښې مې شوې شلې څه به کړم د امید زغل

زه په تمو تمو اوسم په خوانۍ مې خان کړو خاورې
چه هیڅ ازغلی نه شو صفه ما په خان زغمل

بې جانانه جنت څه کړم بې وطنه بادشاه څه وی
یا به خان پسې الهو کړم یا به ئې کړم د پټکي ګل

په جومات کښې مې ونه موند په مکه کښې راته ورک شو
خدائے مې زړه کښې را پیدا شو چه مې مخ د یار کړه بنګل

غنی! بله په زړه انګاری ګني ده به وو جوګړے
په سیلاب دے سوخت د اوبو اباسین دے دیا بل

۱۹۳۴ ع (اتمانزی)

# څه وکړم؟

يو سرک د ګلستان — بل لاره د زندان

مينځ کښ زه ولاړ حيران — چه په دے غم که به دے

يو خوا عيش عشرت سيلونه — بل خوا کندے کندے غرونه

دے خوا ساز اخوا ويرونه — اوس به دے غم که به دے

دلته ښکلے موسکے شونډے — هلته غم فرياد د کونډے

د اخوا خوب هغه خوا منډے — اوس به دے غم که به دے

يو دے ډنډ پټ په شين رنګ — بل دے سيند ډوبي غورځنګ

دے خوا قبر اخوا جنګ — اوس به دے ځے که به دے

يو خوا سوے غم د سکور — بل خوا خاندي سوځي اور

اخوا تاج دے خو سر تور — اوس به دے ځے که به دے

ديخوا څښي د زړه وينے — اخوا سره شراب د مينے

نه روند ئے هلته وينے

اوس به دے ځے که به دے

١٩٣٤ع

# زړه چاودے

ستا زړګے وچوه پښتونه
زړه مې چاودے دے له تا نه

خوے خصلت دے دَ غلام
نشته زیاته له با چا نه

کله سِکه په تا سوریږی
مغولی دے بابا کیږی

بیا په تا په جوتوکیږی
مغلے څوک له کوه دامانه

عقل پس زړه دے ناپاکه
لاس دے ستړے خوله چالاکه

ستا تاریخ دی عبرتناکه
چیرے خلاص نے له خزانه

خپل خیر خواه ته لاس په بلے
سُرسرئ ته زر کړے ووه

مامله دے کړه ووه
خپل خانه دے بے نشانه

تا تو کړے تو کړے خوشحال کړه
دِ بلا! دے جمال کړه

خو امان دے په څه حال کړه
بے وطنه سرګردانه

په دیران ناست ئے خوشحاله
دکونکلت سوتو کښی جاله

بے هنره بے کماله
په هنر دورور پښیمانه

بے ناموسه ستا کارونه
ستا بے کاره ناموسونه

ستا زړګے وچوه پښتونه
زړه مې چاودے دے له تا نه

# کړے وړے

ویل کمتر وایه — خو په هنر وایه
چه ژبه لویه لری — هغه ته خر وایه
غمی په هار کښې یو — خو د ګوهر وایه
ساز د ماښام ښکلی — نمونځ د سحر وایه
چه وی مجرا بد و ته — هغه ته نر وایه
چه دے خدمت کړی مدام — هغه افسر وایه
چه وی په تا شیدا — هغه دلبر وایه
که وی دیار تیکری — ورته سره زر وایه
غوښه د تور تخری — بوی د عنبر وایه
الله الله که نشے — دلبر دلبر وایه
چه په مردی لرشی — هغه ته ببر وایه
بوډا ته خدائے یادوه — خوان هنر وایه
چه ستا نه مخ کښې درومی — هغه رهبر وایه
لګے دے پرے کړه هله — غنی ته خر وایه

# زما محل

دَ سینې دَ سپینو شګونه مې جوړ کړلو محل
دې تو اخر کې جهان ورته حیران کتل

قالین مې پکښې خور کړو دَ سره پانو دَ ګلاب
او چت ئې دېوالونه وو سازونو دَ رباب

بیا رنګ مې ورله ورکړو د خوبونو دَ شباب
هر ګل مې ورله راوسته مالیار مې کړو بلبل
دې تو اخر کې جهان ورته حیران کتل

نرګس مې په غېږه راوړه مې میامه مې کړه امیل
د غانګو د شبنم نه مې ښیسته جوړ کړو امیل

نسیم په خندا راوړل زېړ ګلونه دَ چامبیل
شراب مې ورله ورکړل بیا د اوښکو دَ بلبل
دې تو اخر کې جهان ورته حیران کتل

رڼا مې دَ سپوږمۍ کړه دَ ښاپېرۍ غزلے

خندا ته دَ تنکو ښکلو نږدے کړه پیالے

دَ ستورو مستے سترګے غلا غلا په پیالے

رو رو په مستۍ راغله دَ خدائے اور کړ بل

دے ټول خلګی جهان وته حیران حیران کتل

یواځې دَ بادشاه ومه په سر مې تاج دَ غم

په خوا کښې مې دلبر وو مسکی سترګے پټے نیم

په غاړه ئې امیل ښیسته دَ څاڅکو دَ شبنم

ماشومه نازنینه پاکه ښکلے لکه ګل

دے ټول خلګی جهان وته حیران حیران کتل



# قسمت

ګوره طاؤس ئې کړ ښایسته وزرو
ابلیس برباد کړو علمی خبرو

سپینې ویاله وه د سیند په تل کښ
زړګے ئې وچاؤد سرو ملغلرو

ګلاب خپل رنګ اخپل بوئې ناداکړ
منصور په دار شو چه باخبرو

پتنګ خپل نرم زړګے ستی کړ
مینې برباد کړ خپلو وزرو

غنی پوهیږی خکه ژړیږی
څه ښه به ژوند وکه ژوند د خرو



# اور

زما ختمه چه خوشته کړه
په څه اور ے ابته کړه

چه ئے نه وژنم ورتیږم
چه ئے وژنم لا لمبه کړه

نو رمه ئے دخان جوړ کړم
د شیطان ئے یوه ذره کړه

خو مړا زړا چه ورننزدے ؤم
دوړا غتمه ئے پرده کړه

چه جنت وته روان شوم
دوزخ لوے دروازه کړه

چه دوزخ ته ورننزدے شوم
چاپیرے نعره کړه

خداے د ورکړه د زړه اور
تا د ژوند ورکه مزه کړه

# د چوترانه

خوږ دے ماته ملک زما

خوږ تر کل جهان

زه به خم په جنګ د کام

زه چه شمه خوان

وینه ده توده زما د ګوګونو د ننګ — مه که م قام غواړي زه به نکومه په خنګ

زور دے د ماليار مې د توپ مې د ټوپک — زور م د غيرت دے د همه زورونو خان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه خوان

مه خه د سپي سر ک چپل نه وي په قام — نو خه بنځوني وي چه شیل نه وي په قام

نو پاموس ئے خه وي چه نوم وي د غلام — دا نوم به بد کړم یا به کړم بد جهان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه خوان

زه پښتون بابا د خیلو پيو پیدا کړے — زه پښتنې مور په غیرتي پيو لوئے کړے

مونږ به پلار نیکه د د مړي کار نه کړي — زه به غلام نه شم که غلام شي ټول جهان

زه به خم په جنگ د قام

زه چه شمه خوان

زه به په وجود یمه کوټلې وزیر اَس

کوم به د کاروان خبردارے لکه د اَس

یم به د ظالم سترگو کښې تل د سترگو خس

زه به لکه باز یم د تورتوب سور د میدان

زه به خم په جنگ د قام

زه چه شمه خوان

زه به لوی زړگے لکه شیرشاه د بنگالې لرم

مټ به ابدالي لرم همت به روهیلي لرم

سر به ښکته نه کړم زه که مې کښته لاندي م

ژبه ښکته مه کړې چا ته سر په ته د افغان

زه به خم په جنگ د قام

زه چه شمه خوان



# پلوشه

زړه مې پسې وچاودخواشنام نکړاندې
هغه په موټرکاټ کېن ژړه په ستړې تتوباندې

کوږه نواچار دې په اینبولوتر سکونیږ ی
منبخه مرېه ده چه تاژړه وی مزه کاندی

مالی دوصال په سبارالکرتانپ کوے بل
دومره مهذب او ښایسته ژړاجانان دے

ن چه د مس کوتے د بابا په کور داخل شوم
لسونه ئې تاریخ ورکوږے د وارد غنیخان دے



# مینه

هغې وې مینه یو ګل دے　　　اوس تازه وي اوس فنا شي

ما وې یو ګل چه شي مړاوې　　　سل ګلونه ترې پیدا شي

هغې وې مینه ده اور　　　سړے وسیځي فنا شي

ما وې اور چه چرته بل شي　　　جهان ګوټ شي رڼا شي

هغې وې مینه یو خوب دے　　　چه ترې ویښ شي لا بلا شي

ما وې ګوره ژوندون خوب دے　　　چه سړے ویښ شي شیدا شي

هغې وې مینه غضب دے　　　سړے ړوند شي نابینا شي

ما وې خدائے ته بینا سترګے　　　ټول جهان ته نابینا شي

هغې وې مینه دوزخ دے　　　ماشومان پکښې جلیا شي

ما وې بنه دے دوزخ بنه دے　　　له ګناه وجود صفا شي

هغې وې مینه تیاره ده　　　پکښې خان ورک شي تالا شي

ما وې بنه ده تیاره بنه ده　　　پکښې پټه سخا دَ نیا شي

هغې وې خوږه دلبره　　　کاشکې ستا عقل زما شي

غني وې ماشومه کمه!　　　ستا دَ سر دے فدا شي

# تماشه

خبنتک دَ پښتون شلېږی باچا خان وړته کېنډے دمې
گاندی لیونے شوے دے سنډا اته سرېنډے دمې
خټمېنے مراوے وچ خوراک مرچ تتمنی نے کور
زړګی نے روکی روکی سخا زړوکی اوړه بوړتور
دهنډ دا بنیادم نه لری دم نه لری زور
په ښخه هیخ بد نه ګڼی پیسے پیسے تنډے دمې
گاندی لیونے شوے دے سنډا اته سرپینډے دمې
دَ عوزپ نه تادکری تار نو بیا کری ښاد کوخی لوړته
د صوتی په خټ را واړی توره خته گاندی پوړته
صم دو مولوی وی چه خی آواز نے کوړته
وختی سحر چه پا خی خوله کښ چخی دو بنډے دمې
گاندی لیونے شوے دے سنډا اته سرپینډے دمې

تل لا پے دَ تهذیب کا دَ تهــذیب نه بے خبره

په خوله سوړ مزری وی خاله به ښکته کړی خان بره

چه وخت دعمل راشی بل ته وائی دانــه کړه:

په خپله په تل تبتی الله : تُــل خه کړنــدے دمی

کاندی لیونے شوے دے ســنا اته سرپندے دمی

خار به او مرغن نے لیا رانــ دی مالیدلی

وښکو کښې نے لعاب ښایسته دَ پان وی بهیدلی

په ستیج کوی گفتار لکه سالار تو ره و یستلے

که باو پړے چاغړے کړے تبتی خان پسے جرندوی (٭)

کاندی لیونے شوے دے ســنا اته سرپندے دمی



(٭) جرند سے : جلدی سے

# پلوشه

ورو دا ظلم و ناروا او دا ایږدا      په خندا نے زغمه مه کوه فریاد

کوه تل د لوی مکان د کانو زور

وی به سر باندے د کټے د بنیاد

چه تکلیف او غم سهی خوږ دانا کا

دوم پوهه بنووده نه شی هیڅ استاد

طوره د ختو کانو جوړیږی نګه غرو

چه ایرے شو تورے شوے په جهان یاد

شین زمری ځنګل نرتوب توره یادیږی

کمے تن د زړه درے کاندی صیاد

اور ځنګله سوځی خکه سوځول کا

دانه خاورے شی سپېږی کاندی آباد

د مظلوم د درد او ښکو پاک سیلاب

په لکهاو ښارونے کاندی برباد

غنی: چپ شه د بزګر خبر مکړه      ما آواز ستا خو توب ښو را په یاد

# زړه نوې

زوړ اشنا زین کړې اَس دے　　　د زوړ کور لکه جنت

زوړ دلبر نوے پرستن　　　نن د والہ نے راحت

زوړ نوکر سو چه قالین دے　　　بے بها دے بیش قیمت

نوے دوست ته چه زوړ پرېږدے　　　بے غیرت دے بے غیرت

په کمکو باندے زیات شی　　　زوړ خاړنې نوے شهرت

یا نے بنه په چپه خرابه　　　یا پوره پرېږده سنت

یا کچه خبرے مه کړه　　　هم زنا هم عبادت

بنې زوړ خیال نوے جامه کښې　　　دغنی دے دا صفت

# پلوشه

مړه م شین کړ خوند م پرېښود

تمهید م کېښود د لیدو دی

خوزوه م هغے د مستے نا ورې

تبه م کیږی نوے نوے

# ګډې وډې

چې خلاصېږي بېوفا عمر زما — د جهان د ښاخه څې ثمر زما
تور لړه د مرګ چې شي راپورته — چې پټېږي د عزرائیل ډسه زما
زه به شېن د سرو شرابو جام څښلې کړم — د جنت باغچه به شي بستر زما
په ژړا او په سجدو چې شیخ ونه لید — ما به پیو کوټ ولید آ دلبر زما
مرګ په خوب دی یو نشه د بېهوشۍ ده — په دې واړه دي بلد خکر زما
ته د روح په کوتک نه وهې زاهده: — روح او زړه زما یو یو افسر زما
نابینا عقل مې مست زړګي ته پیښوید — اوس تیاره کړې د غم شو د صبر زما
د غني د همه لاپې ګډې وډې — خان سړی بې سړه لوکا سر زما

# پلوشه

چا ته نه بنایست ورکړو غمګین
چا ته نه غم ورکړو بنایسته
زه نه مست او نه هوښیار کړم
هم نه په تخت کړم هم په تخته

# مخ دَجانان

کله مخ زه په قبله کړم کله کړم مخ وجانان ته
هیڅ په فرق ئے پوه نه شوم رښه! خیرم کړے ایمان ته

هغه ورځ چه خلق پیدا شو دَخالق په تجلی شو
زه دم پروت مخمور مشکور یم په سجدهٔ مخ دجانان ته

اوس زما په بیکسی کښ دمستی لمغرے وینے
زه دَ مرز کے قابل نه وم ولے تا بوتلم آسمان ته

دَخبرو خوږے نشته خان سره غنی کوینږی
لیونے ئے هله بولی چه ئے وګوری جانان ته



# یو جام

دلته هوا نن الوځي ما بنام کښې
واخله دوب کړه تول غمونه په یو جام کښې
څه که شوې چشتي ملنګ څه که امیر شوې
کور کښې فرق نه وي آقا او په غلام کښې
تور ښکاري مرګي ټوله دي لاس نیولې
خانه خانه ونن بیا نشي خنده دام کښې



# هغه دغه

تښتو دوست کړه سنډا یار کا — خر کړه خپل مطلب پرې بار کا

خوار لوهار(*) ته لا لا وایه — چه تېره درله سپاړه کا

سرکار مرګ له چه خوګ بیائي — یو کپتان بل صوبېدار کا

د مستۍ چه خر شي پاتې — دښمنۍ چوغه اختیار کا

چه نرې رنځ ور شروع شي — خان حاجي کا پرهېزګار کا

چه مېږې ته خدائې په قار شي — دوه وزر ورله تیار کا

چه پښتون ته خدائې په قهر شي — لوئې ملک نه د سهکار کا

خان او خردي سکه رونه — مست په جر زنا په جار کا

پښتون هغه وي چه مړ شي — خپل پردي ورته آزار کا

خره ډېرې لوئې په جهان نه وي — چه په زېږه اعتبار کا

زړه کړه زهر خوله خوږه کړه — خره را شه خان هوښیار کا

یو دیار شونډې خوږې دي
یو مزه غوښه د ښکار کا



---

(*) لوهار: آهنګر.

# ولې (*)

ځوک دے ماته ووائی　　　ځرنګے شیدا شی ځوک ؟
ځوک چه چاته وخاندی　　　ولے په خندا شی ځوک ؟
ستو ہے دَ غرهٔ څر کے ته　　　غـالی شان بنکاره وے
مینے په ژړا وو ے　　　حسن په خندا وو ے
ماته موسکو سترګو کښ　　　ښکلی دلربا او وے
و لے ځوک زره وبایلی؟　　　ځرنګے شیدا شی ځوک؟

ځوک چه چاته وخاندی
ولے په خندا شی ځوک؟

سترګو د مجنون وو ے　　　او ښکو دَ لیلیٰ وو ے
او وے په نشه خوائی　　　غم وړو په سودا وو ے
ماته موسکو سترګو کښ　　　ښکلی دلربا او وے
و لے ځوک زره و بایلی؟　　　ځرنګے شیدا شی ځوک؟

ځوک چه چاته وخاندی
و لے په خندا شی ځوک ؟

---

(*) دا ما ۱۹۳۹ ع کښ د دادو په شپه لیکلے وو.

# یو جام

مستانه ساقي راشه یو جام جام راوړه
موسکۍ شه په خندا شه یو جام جام راوړه
پیاله کښېږده شیرینه خواني دځوانئے وینه
رنګ رنګ مستي رنګینه حسینه نازنینه
مجنون یمه لیلیٰ شه
یو جام یو جام راوړه
یو ګل یم ژړیدلے یو باغ یم سوځیدلے
یو ساز د ژړا یم یو آه د بلبلے
ژوندون شه زما ساشه
یو جام جام راوړه
ګل فامه ساقي راشه
یو جام جام راوړه
یو راګ یمه خاموشه نغمه یم فراموشه
خواني م په غم بایله مستي راوړه بے هوشه

د دې ... زما شه

يو جام جام را وړه

موسکۍ شه په خندا شه

يو جام جام را وړه

مست مست راکړه خوبونه چه پټ کړم پرې غمونه

شروع کړه د ژوند تال ته نازک د بنيست سرونه

دلبر شه دلربا شه

يو جام جام را وړه

مستانه ساقي را شه

يو جام جام را وړه



# کډے وړے

عقل ترینه ږیره وخوړه — خېټے ترے ایمان وخوړه

کوره په وربشو ګېنس — خره لال دَ بدخشان وخوړه

کوډے نه خرخښېږی — خوار لاله دَ غمخان وخوړه

قبض شو دَ صیب — ډیرے هندوستان وخوړه

خار شم دَ لیلهٔ دکولمو — خېټه ئے د بنګالو لوده

چامهار چا او بښ وخوړه — اوده وه کاروان وخوړه

کوڼ ملا شهید دے — په مزار ئے ډیوه بله کړه

مړی وو کم شوی خوار — دَ لوږے نه قرآن وخوړه

څه دَ لیونی دَ مرض

خوشی دارو مه کوه

غم دَ مرګ غوږ څنګ دَ زړه

سترګو دَ جانان وخوړه



# کله وے

بلبل په هیضه مړ شو ډیرے خوښ وو شاتوتان
لاله م سالار نه شو اوس نے بدیشی هندوان
وه ناسته په آسمان کښ د تقدیر لوبه لوه
یو خرے روان کړے وو شا خیل نصرت الله له
فرمان پرے را نازل شو د قادر و ذوالجلاله
کولائے تادي[1] وکړو بشر چړ کړه د یوخان
بلبل په هیضه مړ شو ډیرے خوښ وو شاتوتان
اوږ بوزنے خره ته سم کړه او هم پرے کړو تړے لکی
تندی کښ ورله کینبوه د غضب یوه تکی
مغزو کښ ورله واچوه مرض د ملکی
شمله ورله کړه نیغه که راجوړی په جهان
الله لاله م وخوړه هم بلبل هم شاتوتان
اوس څه به ساقی خاک په لکنهو کښ نوابان
اوس څه رنګ به لیکی د عشق غزلے شاعران
یا الله تیری شان

---

۱ په تادي: تعدي

# بنی آدم ته

# قصیده

لوے شے کوړ اکیه او تورو پو نو نه دِ ځار شم

اے دګنده دکه دَ عطلو نو نه دِ ځار شم

جوړ کړے دچا کوتو شو لے جوړ بخه دَ پاره

ځار دِ دَ قلمه دَ حرفو نو نه دِ ځار شم

یو یو کے د باد نے څه د رنګ او جنګ خبر کړے

اے دَ سحر خوبه دَ خوبو نو نه دِ ځار شم

حسن دے ایجاد کړو مشغولا دِ ځان لجړ کړه

ځار دے دَ مستئ نه دَ سازو نو نه دِ ځار شم

علم دے دَ خیال د خوب او خوب د خیال دے

دوړه غټو غټو کتابو نو نه دِ ځار شم

پوه په سودا او زیان د سو او زیان بچ ته نشے

ځار دِ دَ خندا نه دَ ویرو نو نه دِ ځار شم

دوه کوڅې ژوندون له دې څو قسمه خبرې جوړې کړې

ښار دې د مسجد د تکبیرونو نه دي ښار ښم

ستورو او سپوږمۍ سره د راز او نیاز خبرې کړې

اې د خاورو کلمه! د رنګونو نه دي ښار ښم

کوم د تیارو کور ته مسافره! سپېځې ستورګې ځانې

ښار دې د ماښو، د محلونو نه دي ښار ښم

کوټې دې آسمان ته او پاڼۍ دې دوبې ختو کښې

لوښې شې کودا کېږه: د تتو پونونه دي ښار ښم



# خیال

آئینې د خیال کښې دا دنیا ده
بادشاهي او فقیري د زړه سودا ده

زما خیال دے پورته کوڅے ښبیسته کړے
که مکه که مدینه له دلربا ده

عاشقي د خوب دننه یو مست خوب دے
د دے خوب د ملک سپوږمۍ مې محبوبا ده

وخت دریاب یو بے پایانه او بے کنار دے
بے چپے او بے لنگر کشتۍ زما ده

گل غوټۍ وي شي گلاب او بیا خاورے شي
د پښتونولاند ے مې خوږ خاوره زما ده

یوه ناسته مې په خوا کښې موسکۍ شوندے
یوه ناسته مې سپوږمۍ کښې دلربا ده

یوه خاندې د گلونو په خندا کښې
یوه ناسته په تیارو کښې د صحرا ده

# دوه سترګې

کله ګورم ښخکې ته او کله ګورم ستورو ته
او کله ګلستان کښې د قبرونو خازو تورو ته

ګورم بتخانه کښې ستا د حسن تجلی کله
کله په سجده د کعبه کښې وینم خلق نورو ته

لویه هنرمنده د هنر کمال دې ګوره
د غنچو خبرو ته او دې شونډو کمزورو ته

زه چې ګورم څه وینم ته ګوره ته ګوره
دې نړۍ جهان ته او زما سترګو شکورو ته

واوره شهزاده زما: غلام دې ګیله مند دې
خلق د غمونو قیصې کړي سترګو غم خورو ته

تا ته یو ساعت یوه لحظه کښې سرې ووائي
هغه چې کلونو کښې ویلی نه شي نورو ته

څه خوم لوبه په وکړه چې ژوندانه د جهان وړي
خاڅکي د نور او لېږي لړې د لړ په تورو تورو ته

نه دې تاب د بنیست لرم او نه دې د خبرو
ما ته به ووائې ته ووایه دې ستورو ته

دوه سترګې م دوه ړنګه هر رنګ د جهان وینې

ګورې یوه مزګوته او بله ګورې ستوروته

په یوه کښې سرور وې مستي وې خندا

په بله کښې سوزا سلویې او ژړا

په یوه کښې دنیا سر سینګار د دنیا

په یوه کښې ستم غم آزار د دنیا

په یوه کښې ژوندون د ژوندون بې خودي

په یوه کښې افسوس او ارمان په ژوندي

په یوه کښې جنون دے نشه ده افسون

په یوه کښې کافر دي فاسق دي مجنون

په یوه کښې پسرلي دي سپوږمۍ او جانان

او بله کښې ښایان تول داشان دانسان

| | |
|---|---|
| د دوو سترګو خه ضرور وو | چه یوه وي ښه بینا وے |
| خو مره ښه به ستا آدم وو | خومره ښکلې به حوا وے |
| چه یا غم وي د کلونو | او یا غم د جنتونو |
| او مجنون ته په کعبه کښې | موسکې سترګې د لیلي وے |
| تا پرېخپل کمال ښکاره کړو | او غوبل دې ما کښې جوړ کړو |
| په ژړا الیوفې تا ته | خکه بانګ کښې د سباوے |
| خلق د غمونو قیصے کړي | سترګو غمخوروته |
| ما ته به نے وواني | ته وواېه د ستوري ته |

# ورو

ورو يې غوټۍ د ګلاب ورو ماته وړه — اورې له قصه داود اشنا شه د ايوه

ما ليدلي خوب ګڼې د رڼاګانو بهار ستوري دي — شپه ګڼې م ليدلي د جانان د نو ستوري دي

ښکاري خليدلو د سبا په منارو

ورو ورو يې چپې د نسيم اوې ماته وړه

ستوري خوره پاک خليږي شپه ګڼې د تيارو

زه يم د بهار سلام د ښيست د زړه دعا

زه د مجنون ساز او بويس د زلفو د ليلى

وې بام د عشق او چت د د کعبې د منارو

ورو ورو د سبا ستوري سحر وړې ماته وړه

ګل خوب د بهار دى نغمه شپه ګڼې د تيارو

زه د سحر خوب د شپې اميد يم د وصال — زه د چا د مستې نيغې يم د خيال

لمر ديوه د يار جوړه د شغلو زړه دړو — لمر د زړه د لمر د ياب د ياب غاټکي

بام د عشق او چت دى

د کعبې له منارو

# شان دانه

—زمالور—

او یوه ذره د نور ده
شوه دریاب کښې د نیست ډوبه

په خوبونو د خوانۍ کښې
یوه شعله د نور پیلې

دا نړۍ د هلال شونډې
دا د دوو ستورو رڼا ده

دا د معنه خوب تعبیر دے
چه وو ما او تا لیدلے

دا هم زه یمه هم ته یې
هم زما او ستا خوبونه

دا هم ګل دے هم بورا دے
هم سازونه د بلبلې

دا چه ستا نیازبینو کوتو
دا ازل ښائسته ته لاس کړو

دا ګلاب ترے راوا خیست
په نورونو لمبید لے

دا چه زه په پټو سترګو
مستئ دریاب کښې ډوب شوم

دا م لال تاله دلبرے
د تیارو راخیژولے

دا چه ما غمګینے سترګے
په ژړا کړے بروپوته

دا زما د غم خواب کښې
سپوږمۍ ګل د رالیږلے

دا او به د دوو چینو دی
د دریاب په طمع درومي

ز به جوړه ترے اباسین کړم
په کلونو کښې بیا له

# راشه ورو دیار غمه

راشه ورو دیار غمه
پریوځه په سینه زما

ګل غمه ګلزار غمه — اے د ګلو بنار غمه
خوږ لکه دلدار غمه — اے دستور هار غمه

راشه ورو دیار غمه
پریوځه په سینه زما

غم کښې چه امید وی — خه پسته نشه لری
د ګرو دکښې دا ارمان — خنکه پلوشه لری
دا مستی او دا ژړا — سره ستا دستار غمه

راشه ورو دیار غمه
پریوځه په سینه زما

راشه اے د زړه خوږه — ولښن کړه د اجهان ستا
ولبنوا وبه لوزاني کړه — سور ګلستان ستا
رنګ زیړ د خزان ستا — بوی دے د بهار غمه

راشه ورو د یار غمه

پریوځه په سینه زما

مستا په تورو لړو کښې — لږه زما ډیره شی

اور او رکښې ستوری شی — حسن دې ترڅا پیره شی

اے د لیونو نشے — مست دے دستا خمار غمه

راشه ورو دیار غمه

پریوځه په سینه زما

ته د مودو یار زما — نښه د دلدار زما

ته م د وفا ګواه — ته ئے نوم دیار زما

خوږ لکه دلدار غمه — ای دستور دهار غمه

راشه ورو دیار غمه

پریوځه په سینه زما



# شاعر

پرَچه د شهباز لرے او ستر ګے دَ عقاب
زړه پوست دَ بلبل خوږ ے خبرے دَ بنا رو
سر ډک د خوبونو لکه مینه دَ قارون
ستر ګے مینه ناکے مستے ستر ګے دَ مجنون
چل دَ سامری او پا کے ګوتے دَ موسیٰ
تور دَ غم صلیب په سپینو لو د عیسیٰ
تن ئے سرے باب چه دَ قسمت ګوتو کښ هنګ کوی
خوله ئے د ګونګر چه د جانان په پښو کښ ترنګ کوی
دی دَ ګوتے پو ته کړی نامه د دیار ولیکی
څه چه قلم نه لیکی هغه دے خمار ولیکی



# تنظیم په نظم

# دَ

# عبدالاکبر خان

غنی کړے ستر پټے ستا تصویرے ولیدہ
چیرلږ خ په لوټه وخاته کشمیر ولیدۀ

چا ولید په ژړا جانان چا ولید په خندا
چا ولید په خوبونو کښې یو خوب دَ دلربا

چا ولید په سجده وکښې چا مستۍ کښې دلیلی
عیسیٰ ورته موسیٰ شو چه شمشیرے ولیدہ

چیرلږ خ په لوټه وخاته کشمیرے ولیدہ
چا ولید په سپوږمۍ کښې چا د شپے توروتیارو کښې

چا د وب د غم دریاب کښې چا د حسن ننداړو کښې
چا ولیدۀ پیالی په مستونړو نړو کښې

او اولید لیونی چه خپل تقدیر ئے ولیدو

چیناخ په لوته وخاته کشمیر ئے ولیده

اے لویه سمناه! او د حسنونو د مستو

رنګین د رنګ جهانه د رنګینو تنستو

چه بخت د لمر خاته دی که قسمت د پریوتو

او عیسی ولے موسکے شو چه شمشیر ئے ولید (۵)



---

(۵) عبدالاکبرخان اکبر په ۱۹۰۰ ع کال د چارسدې په عمرزو کې پیدا شوی دی د صوبه سرحد مشهور سیاسي مبارز او د پښتو ژبې خدمتګار، لیکوال او شاعر دی، خوارو تراخه، جوګړه، سفرنامه، روبایات، د مثنوي پښتو ترجمه او نور یې مشهور آثار دي.

مړ په ۱۳۵۶ هـ ش کال ومړ.

# اَے ډَلیو نیا نو نیکه

اے ډلیو نیا نو نیکه لمونځ ښه که مستي ښه ده ؟
حسن جوړيدل ښه دي که حسن پرستي ښه ده ؟
وے ښه ده مستي ښه ده خو ځکه پاک لکه آئینه غواړي
دا دریاب ضمول دَ سمندر ځمره سینه غواړي
حسن جوړیدل دَ ښکلا عشق د کمال دے
تور دغم دریاب کښې سور خمار د وصال دے
او اے زما ښچیه ! دَ جانان ئې مینه لا ښه ده
نوم ئې ښکلے لا ښه دے جلوه ئې رنګینه لا ښه ده
اے ډَلیو نیا نو نیکه مار ښه که مُلا ښه دے ؟
تن مِ ډک له زهرو که زړه ډک مِ دَ بلا ښه دے ؟

اے زما بچیه ویرانے ورانه لره انکار ښه دے

مزے له پیشو ښه دے چینجے له بنا مار ښه دے

تاله لیونتوب ښه دے مستي ښه ده صحرا ښه ده

چاله طاعون ښه دے چاله سوړے دموږا ښه دے

دا د دنیا رنګ دے دا دنیا رنګینه لا ښه ده

زیړه ښه ده توره ښه ده تکه سپینه لا ښه ده

اے دلیونو نیکه حُسن که وفا ښه ده؟

برخه د مجنون ښه ده که برخه د لیلیٰ ښه ده؟

وے اے زما بچیه: د دلبر د خولے هوا ښه ده

یخه نرمه لا ښه ده او تیزه ګرمه لا ښه ده

تاو دغه دیار لوپټه سره رنګینه لا ښه ده

زیړه ښه ده توره ښه ده تکه سپینه لا ښه ده

(نو) اے زما بچیه: حسن ښه دے هم وفا ښه ده

برخه د مجنون ښه ده هم برخه د لیلیٰ ښه ده

ښه ده فقیري نیکه که ښه ډیره دنیا ښه ده

ګل د صنوبر ښه دے که قلا د محبوبا ښه ده

وے اے زما بچیه: سور عقاب له دغره سر ښه دے

ګل د صنوبر له ښه او ګل له صنوبر ښه دے

جام له قلاره اوسمندره نه توفان خوندکوي

ستر ګو له مستی خوند کړي او زړه له ارمان خوند کوي

انو، اے زما بچيه! فقيري ښه ده دنيا ښه ده

تخت دسليمان ښه دے جونګړه دعيسىٰ ښه ده

مشره ليونيه وزيري که جيلخانه ښه ده

ښه م خپل لوږ وګي دي که قرض توتخانه ښه ده

اے زما بچيه! يار ژړ لوله صحرا ښه ده

تخت د رقيب نه دے ښه تکورے د ليلىٰ ښه دے

دوست د يزيد ښه نه دے شهيد د کربلا ښه دے

واک چه ئې د بل وي د دے نه زنانه ښه ده

او اے زما بچيه وزيري نه جيلخانه ښه ده





# دځوروښکار

یو عاشق د ګلونو دځورو په ښکار لاړ
او دجانان د کوڅو په توبه او استغفار لاړ

ورکے دجانان ښیست یو خوب و خیال دے
ورکے دامستئ بے خودئ زما وبال دے

وے پروني ښاپیرئ نن تورے خاورے دی
د ډنډ بوټینا کے او په پروني واورے دی

ورکے دجانان پښتو سجده روانه ده
د مسلمان سترګو له نشه روانه ده

سپوږمۍ چې واوریده وسرېږه خپل یووړه
رنګ ئې دسترګو نه غوټکۍ د ګل یووړه

دماښام لوړے لهٔ دزړه ارمان لاړ
په پسرلي شپے لۀ ئې د مستۍ شان لاړ

ارمان چې لاړ خواني هم لاړه
خمار هم لاړ مستي هم لاړه

او د جنت په طمع جنت نه خوار لاړ
یو عاشق د ګلو نه چې د حورو په ښکار لاړ



# کړے وړے

مستي چه چاکښ ډېر شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا ډم شي یا شاعر شي
نیستي چه بونیرے وُ وي ‏ ‏ ‏ ‏ ملا دَ هشتنغر شي
چه صبر چاکښ ډېر شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا ملنګ شي یا بادشاه شي
چه کبر چاکښ ډېر شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا فرعون یا ډنګا چا شي
چه اَس دَ تهتو زوے شي ‏ ‏ ‏ ‏ قدغنے بلخشانے شي
چه ډم وي په کابل کښ ‏ ‏ ‏ ‏ خالصه کښ درانے شي
په چا چه کینه ډېره شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا تخت شي یا تخته شي
په چا چه نفل ډېر شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا تهتو یا فرښته شي
خواني چه چاکښ ډېر شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا غل شي یا ولي شي
چه زور په چاکښ ډېر شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا یزید شي یا علیؓ شي
د چا چه بخت راوینښ شي ‏ ‏ ‏ ‏ یا مجنون شي یا لیلیٰ شي
په چا چه تهذیب ډېر شي ‏ ‏ ‏ ‏ ملوے یا ملولا شي

بنهیا چه دیر سخی شي — یا پیتی شي یا پالک شي

مهمند چه معتبر شي — بې غیرته شي ملک شي

چه مینه چاکښ زیاته شي — نبی یا لیونے شي

چه دم وي په کابل کښ — - خالصه .کښ درانی شي

چه علم چاکښ دیر شي — یا شیطان شي یا فقیر شي

چه وس د وسه ووځي — یا نصیب شي یا تقدیر شي

چه وخت د توله وځي — یا قیامت شي یا وصال شي

چه سر د خوده وځي — (نو) یا شرنګ شي او یا تال شي

پښتون چه غیرتي شي — یا خان صیب یا خان بادر شي

نیستي چه بونیري ووځي
ملا د هشنغر شي



# ځوانه

سوے باغ تالا گلشن دے — مړاوے گل خاورے چمن دے
نه بلبل نه لولکئ ښته — نه نرگس نه یاسمن دے
د اګلاب دے ایرے شوے — که په اور سوے ختن دے
اے پښتونه! ستا وطن دے — اے پښتونه! ستا وطن دے
د دے باغ خاورے را واخله — تر سرے نوے بوستان جوړ کړه
اے د سوي باغ مالیا ره — د نور رو نو جهان جوړ کړه
اے چه ښکته ښکته گورے — نن پښے ابله سره تورے
ته خبر نه یے چه ته څوک وے — ته د مینځ آسمان وی ستورے
ستا شمله چه به شوه پورته — شوے به ښکته شملے نورے
په مستئ اورنگ به سر وے — ستا د تیغے سترگے تورے
اے د تیغو سترگو ځوانه — پا ځه هغه جهان جوړ کړه
د دے باغ خاورے را واخله — تر ینه نوے بوستان جوړ کړه

اې د وران خپه ميرنې — اې د ورنې ښځې پلاره!

بې دړه که سر کړدانه — اې د سوي باغ ماليا!

اې چه نن برېښنا ځي ستا — د خوراک په کشاله دي

ستا د لاس ما ني ولاړې — په دهلي په بنګاله دي

اې د بل د درمسرېدو! — پاڅه هغه د وران جوړ کړه

ددې باغ خاورې راواخله — ترېنه نوي بوستان جوړ کړه

اې په غړه په سر د دړه کښې — په باغونو په ميرو کښې

په جنډول کښې په تيرا کښې — زما لال پټ په ايرو کښې

اې د زرکو په خندا کښې — د تنزرو په نارو کښې

د شيرشاه نازبينه زويه — ته نې پروت تورو تيارو کښې

کړه د غم تيارې راغونډې
ترې د مينې داستان جوړ کړه
ددې باغ خاور راواخله
ترې نه نوې بوستان جوړ کړه



# دُعا

اے د حسن او نور دریابه! ماله یو څپې دَ نور را

ستړې دې د خندا شونډې دې دَ سرور را

زه دې خپل وړوکي ژوندي له یوه نندارې دیدار غواړم

اے د حسن او نور دریابه ماله یو څپې دَ نور را

دے تک تور د غم محل ته یو ځغرې د رڼا را

ستړې دې د خندا شونډې دې دَ سرور را

دے مستۍ او د ارمان له یو تصویر د جانان راکړه

ستا په مینه نازېدل را ستا په ښکلا غرور را

دے دَ خود سوي باغچې له یوه وعده دَ بهار غواړم

زه دا نه وایم چه جنت را زه دا نه وایم چه طور را

د دې خوب د سا او وخت اشاره د تعبیر نه کړه

ماله نه د بادشاهانو او سینه د فقیر را کړه



# مینه

رتبه دا سے لیونے شوم په یو خیال بانده مین شوم
خُم د وبیزه م سمندله کښ په یو لال بانده مین شوم

رتبه : دا څنګه مستی ده چه جانان م پکښے ورک کړ
که په غږ دیار د ستر ګو په دلال بانده مین شوم

زه د سیند د څنبلو نه ووم یوه لپه م ګډه پوره
زه دلبر د مینے نه ووم په هلال بانده مین شوم

چه م نه ځانید سینه کښ پښو بونو کښ م ځا ے کړ
غږ م ګړ و غږ د جانان ته په یو خال بانده مین شوم

دا مستی نه ده ځوانی ده نه مستی ده د شرابو
دا خوزه د یار د سترګو په یو خیال بانده مین شوم

دا م بانګ د لیلیٰ وا ورید که ستاینه د بلال؟
که دیار د پایلو شرنګ کښ په یو تال بانده مین شوم

پتنګ پروت وو په تیاره کښ په نامه د شمعے مست شو
که دا زه د یار د سترګو په یو خیال بانده مین شوم

ملغ سوړے دلبر ولید په یو ځاځکی د شبنم کښ
که صنم ماته موسکے شو په خوبونو د صنم کښ

# مړه شمع

ما ته نسیمه مه وایه — مه وایه: یار به سبا راځي
ته د مستۍ خبرې کړه — ماله ژړا ژړا راځي

اے د رند و مستو ملا! — اے د اوږدو سلسلو ملا!
ستا په دې راز و نیاز پورې — ماله خندا خندا راځي

ما هم یو خوب لیدلے وو — ما هم یو باغ کړلے وو
ته چه قیصې د کلونو کړې — ماله ژړا ژړا راځي

زه هم یو شان د ځوانۍ وم — زه د مستۍ یو تصویر وم
اوس یو ذره د ایرو یم — څه که بیګاه سباه راځي

زه لکه مړه شمع ورکه شوم — ورکه په طمع د سوز شمه
کله په لاس د ساقي راځي — کله به اور او رڼا راځي

تلے ځوانۍ چه لاړه شي — چرته به بیرته بیا راځي
ته د مستۍ خبرې کړه — ماله ژړا ژړا راځي

---

اوږد بند مثال لکه د خس دي
تود شي لوګے وګرې رڼا کړي جوړه
لمبه شي وسوځي خاورې ایرے شي
بوره ابۍ پرے ژړا کړي جوړه

# بنده

بنده بدلیږي داسې بدلیږي
لکه بدل شي چه وخت دَ کال
کله سپرلے شي کله خزان شي
کله مستي شي کله وصال
کله پوحسن شي یو سوز او خوب شي
کله مجنون شي یو لیونتوب شي
کله فرهاد سلګۍ، کله نرتوب شي
کله سینه دسقراط کله خرتوب شي

کله ارمان دَ سینې او کله لال
کله مستي شي کله وصال

مینه مستي ده داسې مستي ده
لکه مست وي دَ بنګړي تال
کله سودګل شي دَ سپرلي شپه شي
کله منصور شي کله بلال

کله یو غم شي ساز او ستار شي
یاد غوټۍ ارمان د ګلو هار شي
کله سره و د سوز کله چغار شي
کله قصه د بنایست کله دلدار شي

کله سینې د حور واو کله خیال
کله مستي شي کله وصال

غم یو نشه ده داسې نشه ده
لکه نشه شي په بانګ بلال
داغو یو نقش دي د عاشق زړه کښې
د یار د سترګو د خط او خال
کله شراب شي مست او سرشار شي
کله د زړه جام شو نړې دې یار شي
خو کئې تسپې کړي د چا زنار شي
کله قسمت شي او کله اختیار شي
کله ماښام شي کله هلال
کله مستي شي کله وصال

وخو... بند بدلیږي داسې بدلیږي
لکه بدل شي چې وخت د کال
ورځ ئې ارمان شي هیر جانان شي
هیرې مستي شي هیرې وصال

# سلام

نه ساز شو نه سوز شو — بس هسې ژوند تمام شو
نه خوب شو نه شرنګ شو — نه یار ګلندام شو
د اتوړه توره شپه راغله — نه ستوری نه سپوږمۍ شی
خواني وه لاړه لاړه — یو کوټ او خالي جام شو
یو ستوری د سباوُ لاړ — سور ګل یو د لاله و لاړ
سوړ لمر زیړې زیړې شولو — نرې نرې ماښام شو
قصه د حسن هیره شوه — مزه د مینې تېره شوه
مُلا بانګ د سبا وے — اخر په سول خیام شو
مستي بې پروائي وړه — په خود کښې بې خودي وه

او څوره لیونے هم نن
بادشاه ته په سلام شو

---



# د ژمی ماښام

اوس نن د ژمی ماښام     د جړۍ شپه ده
پوست شبنمي باران     بهر وریږي
غاړه د اور او خیام     شروع قصه ده
د شاعر سره استاد     مهین غږیږي
تنګ او تکور د ژوند     ناز او مستي د جانان
شرنګ د ځوانۍ کنړیت     شاتار د غم وهي
خندا مستي د ساقي     بت پرستي د ساقي
ستیندي د مرګ سره     د کونګرو شرنګ وهي
اوس نن د ژمی ماښام     د جړۍ شپه ده
پوست شبنمي باران     بهر وریږي
یار شروع کړي ماته     د غم قصه ده

کله موسکی شي
کله ژړیږي

# مست

چې مې زړه مست وو دنیا وه مسته
ګلونه مست وو لیلئ وه مسته

چې مې زړه ډوب شو دنیا بوډۍ شوه
ګلونه مړاوي شو لیلئ بوډۍ شوه

چې مې زړه مست وو شونډې تودې وې
د زهرو شونډې به هم خوږې خوږې وې

چې مې زړه ډوب شو شونډې مړې شوې
یخې د داورو په شان د حورو خُلې شوې

چې مې زړه مست وو سترګې مې سرې وې
مدام سپوږمۍ وه د سپرلي شپې وې

چې مې زړه ډوب شو سترګې هوښیار
خزان مې مل شو په نیمه لاره

خدایږو ژوندون بس ځواني مستي ده
دا نور ژوندون نه دی یو ګرېږه دی

سترګے چه غټے شي رټب دے کوي پټے

چه مستي نه وسیږے دا غمه لیاږدي

اوما بناسے یاره ورو راروان دے

سبا به چونګ خاورے وي تن غنچان دے

جانانه: شونډے ماته نژدے کړه

چه ژړه م مست شي دنیا شي مسته

چه بیا سپړلي شي ګلونه سره شي

چه خوانی ؤ دانګي خندا شي مسته



# نور او سینګار او خمار

کال د بنډ ښایست سترګو له پسته رڼا
شو نه کښې دا بېخودي شو نه کښې نشه

ښیست له د خپل خان په شان نور او سنګار او خمار
یار د خندا په ځای سپین مې کړ کالو نه ما

مینې له د ګزور د سمندر، زړه د باچا ور کړو
ساز لوی آواز او ښایست تا د ښار وور کړو

ما له د غمو ارمانونو جهان راکړ تا
ما له زړګی پوست مستي او حیران راکړ تا

او، ستړی مستا دیار د حسن د آرام د کې
کله د سپوږمۍ د رڼا کله د مابنام د کې

کله د ځوانۍ د امید و نو د ارمان د کې
کله خمار ستا د خمار او ستا د شان د کې

ای د دوږخونو د قیامت او د حساب ربه!

ای د تورو زلفو د لالونو دریاب ربه!

ای د مینې حسن د ځوانۍ او د شباب ربه!

ای د مستو سترګو د نرګس او د ګلاب ربه!

ای د لوګي د مینې ای د کل د خیال ربه!

ای د ساز او نیاز او د نسیم او د هلال ربه!

ولې دې د حسن جور کړو دا د خاورو ښار

ښیست له د خپل خان په شان نور او سینګار او خمار

# عقل مې حیرانه

زړه مې بیقراره بې آرامه مې دې خیال
عقل مې حیرانه او فکرونه مې جنجال
پوهه مې ده نښتې لکه لومه کښې سرخکه
روح مې دې تیاروکښې لکه لړه کښې هلال
رتبه: زما رتبه: د جانان دا خط وخال
دا زړینې زلفې کچه خوله وروخې هلال
دا سترګې نیاز بینې داپښتې سترګې رنګینې
پاکې د نرګس نه د لولګې نه وریښمینې
سرې سترګې مستانې د مزې سترګې حیرانې
دکې د جنت او د دنیا سترګې جانانې
کله د ماښام لړې کله د رڼا دکې
کله د پروان د نبکه کله د سبا دکې
وینم پکښې زه واره دنیا د جام جم په شان
او ښکې نه دي پاکې پاکونکي د زمزم په شان

دوب پکښې پراته د ساز او حسن جهانونه دي
دوې لیلی زر لکه سپرلي او خزانونه دي
دوې کښې د مستۍ او بیخودۍ ډکې خانو قصې
دوې کښې د مرګونو د ژوندونو دخوانو قصې
دا به تور څنجی شي او څنجی به تورې خاورې شي
دوبه به د ښاپیرو کښې د غرورونو ډیرې او رې شي
خنکه به څنجي د ماښام سوز ساز د سباوخوږې
خنکه به څنجي د سپرلي شپه دلمر رڼا خوږې
څه شو دایاز د زړه مستي د محمود سوی څه شو
څه شو د زلیخا د مخې ښکلی ګودا کې څه شو
زړه مې بې قراره بې آرامه مې دې خیال
عقل مې حیرانه او فکرونه مې جنجال



# ژوند

ژوند م لوئے دریاب دے ورو ورو خورشو سمندر کښې
څاڅکی ورک دریاب کښې شو په طمع د ساحل

بخت کښې د سیلاب دی په مستۍ په چپو تلل
نه ورځي دریاب له غونډیدل او او دریدل

دے لهر د ساز له تله ژوندون و دریدو مړ کړدی
زیرے دما بنام وی د مصر را خلیدل

کله دے د چپے کړه د ابد مستانه تال ته
وکړنگوه سازنے تارخانو کښې د ازل

لاړ لیونی لار چرته د لمر شغلو کښې ډوب شو
څاڅکی ورک دریاب کښې شو په تمه د ساحل



# اَرِنِيْ

خان لهٔ څه بهانه زهٔ دَ بېګاه او سبا ګورمه
خاوره کښې دې ګل لهٔ د ګلونو دنيا ګورمه

ستړې مې لټي چې ترهٔ صحراګانو منارو ېوه
شونډې مې لټي دُعاګانې بندګانو ناارو ېوه

ګورخم ما بنا مې کښې د زهر ني هلال شغلې لټوم
زهٔ د شبنم څاڅکي لهٔ اڅپاوې او سيلابې لټوم

خان لهٔ بهانه د خندا وجه د ارمان لټوم
شپې لهٔ د سبا زيرې او مينې لهٔ جانان لټوم

څکه کله ګل کله پسرلي کله هلال اخلم
پورې ترې رڼا لټوم په وازو سترګو جال اخلم

کله دریاب کله کومه دَ خيام تيبوس
کومه د غمونو تالو سونه دَ آرام تيبوس

ځان له څه معنی زه د بېګاه او سبا ګورمه

خاورو کښې ګل له د ګلونو دنیا ګورمه

زړه : د ځوانۍ او د مستۍ خوب له تعبیر لټوم

دے د لمر ذرو له زړه تو لوله زنځیر لټوم

زړه : زه ژوندون له او مرګی له یارانه ګورم

دے لیونی سره د منلو افسانه ګورم

ځان له جهانه زه د بیګاه او سبا ګورمه

خاورو کښې دے ګاله د ګلونو دنیا ګورمه



# ساز

ورکړه شرنګ دے ستار له یاره! نوے دَ منی ماښام دے
نوے سپوږمۍ را خته لے ده نوے سرورکښ خیام دے
او دَ زړه تار خانو ته دے ګوتے دساز وربښکته کړے
وئی: د محمود خبګرته ښن ستر ګے آیاز ور ښکته کړے
ستر ګے مینے په غم ډکے ډکے د سرا و صنم ډکے
ستر ګے ښتے د شبنم ډکے خنګه په ناز ور ښکته کړے
او دے دَ خاورو ستارګښ تا خنګ د ابد قصه جوړه کړه
او دیو شرنګ او تهنګ نه دے ماله مستی نشه جوړه کړه
تا دَ ګلونو دَ رنګ نه ماله دَ یار تصویر کړ جوړ
تا دَ تارونو د شرنګ نه ماله یو خوب او تعبیر کړ جوړ
تا دَ سرور او غورځنګ نه ماله باده منیر کړ جوړ
تا دَ غمونو دَ رنګ نه ماله دَ غم اکسیر کړ جوړ

تا دَ غرور او ارمان نه — ما تہ بہار او خزان کړې چې

تا دَ ترانې دَ آواز نه — ما له تصویر دَ جانان کړې چې

تا دَ نرګس دَ دوه پا نو نه

ما له بہار او ګل کړې چې

تا دَ نسیم دَ خبرو نه

ما له فریاد دَ بلبل کړې چې

ورکړه شرنګ دَ ستارے له یاره

ورکړه رنګ دَ خمار له یاره

ورکړه سلام ګلونو له

ورکړه دعا دَ یار له یاره

بیا انست او ارمان را وسپه

ما له ترنے ګل او خزان کړه چې

او دَ نسیم دَ خبرو نه

ما له تصویر دَ جانان کړه چې



# زک خیال

یو خیشته غوندې ماشوم و. که یو خیال که یو خمار و

یو مُسکې شان تا نې وکړو د ازل د تار خانو نه

زما خواله غاړ اغې لکه یوست قیام دیار

که یو ستوری ستړې والی چرته لوړ نه د تیارو نه

که د تور په کوټې ور کښې شاهزادګۍ د نور ولاړه

د ما سترګو کښې غمونو. ښکلې شونډه د کښې خندل

د جانان په حرکت و. که یو رنګ د تخیل و

که د تال ګنګرو په خپو کښې م خوبونه ګډیدل

لکه روڼ صوبې باغ کښې په هیڅ شي نه یقین نه وی

چرته پټ په کښې یو خوب وی د صحرا او د ځنګل

ما د مینې لاس خوار وکړو. څه دعا وه څه ارمان

ما وینې آس رنګینه نوره. راشه مست که دا جهان

زه به ځان ځه د ستا وجود کړم چې ته ستا سترګو ته ښکاره شې

خپل احساس به د جامه کړم چې یو ښیست یونډ آره شې

ستا مستې له اخاره به د ځان سرور درکړم

ستا امید او مشغلا له. به خوبونه د طور درکړم

زه به خپل ژوند ته جهان کړم ستا د ژوند د کتابونو
زما کوټې به ستا رڼې ځي . ستا د شنه رنګ ستا د سترګو
یو قدم مې که را پورته . هم راته هم پیریده
د صحرا عادت هوسئې ؤ به ګلزار کښ تېرېدو
ماخپل زړه ستړګو کښ خوږ که . ډیر په مینه ور روان شوم
عجیبه جهان ته لاړم هم عاشق شوم هم جانان شوم
خو چې زه نے ور تلم خوا له . نو چا چغه کړه چې خان،
ګیږ شپوله اغلی . د رڼے خاورې د ړله د دوستان
یو نظر مې چې تے وارو . نو د نور بنا چاپیرسے نه ؤ
چار چاپیره په تیاره کښ نه نے نوم ؤ نه نشان
اے زما ماشومه زویه . ته به ګرځې نے کم صحرا کښ
د تیاره په شپه کښ ژړه . ستا خوږ ورد به دنیا کښ
ولے لاړے یو زړګ خوب شوے د ازل روکه دنیا کښ
ستا خاشت کښ زما ژوند دے . ستا جهان دے زما سا کښ
یو نظر کښ که دے ماته سور ګلشن تور بیابان
لیونے . لیونے ګرځم د سے زړګ شوے مې جانان
را شه را شه په خندا شه لکه ستورے په سبا کښ
د تیاره په شپه کښ ژړه . ستا خوږ ورد په دنیا کښ



# یوه قصه

ښوک په ساز کښې ښوک په خوږ بیسوي رباب کښې
ښوک په مسته ترانه کښې یو تمپه بل افسانه کښې
هر وخت هره زمانه کښې په فراق په یارانه کښې
بس د خپل جهان قصه ده په هر مخ د دې کتاب کښې
ښوک نې وي په لاس وستوکو ښوک په مست نګین رباب کښې

ښوک د تال او حرکت نه کړي ژړا او خندا جوړه
تول وجود یې یو ارمان شي چه د غم کړي کړا جوړه
لاس او خپې د کالو ښانګې د بوډې تال په حساب کښې
د اخښيت داسې رنګونه نشته نشته په ګلاب کښې
خو هم هغه یو ارمان دې د دې تال او ښه نګ د رباب کښې
هم هغه یوه قصه ده په هر مخ د دې کتاب کښې

ښوک نې ساتګی را اوخلي په خپل اور سره لمبه کړي
یو مستي سره ورته جوړه کړي په جانان یې صدقه کړي
کله دوب په خپل خمار کړي د دې هم خان سره نشه کړي

کله تور غمګين ماښام کښې — دومره په غم کې يې تياره وي

يو بې وسه مايوسي شي — نااميده او ډک ماتم شي

يو بې نومه اضطراب شي — سوځي لوګي چې آدم شي

د سرو جام د ميخانې کښې — د جمات په سپين محراب کښې

د صوفي په پټ سرور کښې — د عاشق د عشق شراب کښې

د شاعر د لاس کمال کښې — په جنون په اضطراب کښې

بس يو رنګ دی چه ځليږي — هم جانان کښې هم ګلاب کښې

هم په ساز هم تال کښې — هم په خوږ سوګي رباب کښې

يو خوا تور مغروره مرګ دی — بل خوا ژوند يو رنګين خوب

يو خوا غم درد او تياره ده — بل خوا مست شان ليونتوب

يو خوا ژوند يو بې وسي ده — لويه توره مقبره ده

بل خوا ژوند يو مستي ده — د اميد ارمان نشه ده

په دې سوال د هم پوهه نه کړم — د ژوندون په لوی کتاب کښې

دغه سوال بس دغه سوال دی — هم په رقص هم په رباب کښې

عاشق مينه کښې سرور کښې — شاعر غم او اضطراب کښې

هم هغه يوه قصه ده

په هر مخ د دې کتاب کښې



# د مدون یادونې
# او
# څرګندونې

د پښتو د اوسنی ادب د تر ټولو ستر شاعر خان عبدالغني خان له نامه سره به د افغانستان او برصغیر په علمی، فرهنګی او سیاسی حلقو کښې ډیر لږ خلق بلد نه وی. خان له پښتونخوا او افغانستان او برصغیر سربیره په نوره دنیا کښې هم د نامه خاوند دے او په خاص ډول د پښتو ادب خارجی محققین او له انګریزانو سره د لرو پښتو د آزادئ د جګړو مورخین او مطالعین د ده له نامه او ژوند، کردار او کلام سره آشنا دی. او هم لږ و ډیر په دغه مقام هم واقف دی چه زمونږ دغه لوئ شاعر د پښتو په معاصر ادب کښې لری.

سربیره پر دے د پښتو ادبیاتو په معاصرو تذکرو (۱) کښې هم خان عبدالغني خان زمونږ مشرانو ادیبانو پر مونږ پیژندلے دے او ښودلے ئے

(۱) پښتانه لیکوال د ب. غلام حبیب ... جلد ص ۱۰-۱۹ د ۱۹۵۹ ع کښې د پښتو ټولنې چاپ. او ... [illegible] د ... د ۱۳۳۶ هـ ... [illegible] چاپ.

نو هم خینې نخې تحقیقي او علمي مقالې د ده په ژوند او فن کښل شوې دي (۲)، مګر داچه اوس د کلام یوه عمده برخه د (کلیات) په نامه د چاپ ز کړه راوتې . نو بیا چه د کلیات له لوستونکو سره د مرستې په خاطر د ده په شرح حال او ژوند او هنرمندۍ هم څه وکښل شي . چه له ابتدایي لوستونکو سره د رهنما په دود مرسته وکا ، البته منتهیان خود خان له ژوند او هنرو سره تر هر چا ډیر بلد دي .

نو زه به په همدې نیامت خپله لیکنه د ده د شرح حال له کښنې پیل کړم او بیا به په ترتیب سره پر بحث وړ موضوعاتو نورې خبرې هم وکړم .

## کورنۍ او د ژوند ابتدایي حالات :

د پښتو ژبې د غه د غرځنګ نو د شاعر خان عبدالغني خان پلار د پښتنو ستر مشر خان عبدالغفار خان دے او مور یې د رحیم د خانانو دیار محمد خان لور وه . چه له باچا خان سره په ۱۹۱۲ع کال واده شوې وه (۳)

د غو دوو خاخیلو له پښتنه په ۱۹۱۴ع کال (۴)، د شمال مغربي سرحدي صوبې د هشنغر د اتمان زو (۵) په کلي کښې د پښتو ژبې د غه نومیالي او ننګیالي

---

(۲) کتاب سال انیس ، د مرحوم استاد بینوا مقاله ص ۱۰۹-۱۲۹ ، ۱۳۴۶ هـ ش کال د کابل چاپ .
(۳) زما ژوند او جدوجهد ، د خان عبدالغفار خان ص ۷۰ د ۱۳۶۲ هـ ش د کابل چاپ .
(۴) په پښتو لغتنامه ص ۹ ، لیکل شوي د غني خان د زیږیدنې د ۱۹۱۶ع کال خبره شوې ده .
(۵) په کتاب سال انیس ص ۱۰۹ کې مرحوم بینوا د غني خان د پیدایښت ځای د هشنغر د وزیره ښودلی دی .

شاعر وزیر ید . پلار یې د عبد الغنی نوم کښښود .

عبدالغنی د مور و پلار لوم نی اولاد او د دوی ډیر نیازبین و. استاد بینوا مرحوم دده د یوه دوست په حواله کښلی دی چه : " غنی په کوچنیوالی کښې ډیر ښکلی او د مور و پلار ډیر نازولی و. په غاړه به یې د سرو زرو ډنډ او ډبی وه او په نبی غوږ به یې د سرو زرو والی وه . په مره به یې نیله داره ډیوبند ویوه که توپی او په توپی کښې به یې یوه زرینه جوړه تومیلې وه چه د جوړغی نه چارچاپیره بدو دی د نظرمات تاویزونه تاوشوی وو. "

مگر د غه نیازبین توب ډیر پایښتی نه و. ځکه ننګیالی پلار یې هغه مهال د وطن او خلکو د خلاصون لپاره د انګریزانو پر ضد مبارزه پیل کړې وه او په خپل کور کښې آرام نه و ناست . له بله پلوه د غنی مور هم دده په ښځه کلنی له دنیاستر ګې پټې کړې او نازولی غنی د مورنیو ګیز ځې محروم شو.

د غنی د مور د مړینې واقعه د پښتنولو ملی مشر د غنی پلار باچاخان داسې کښلې ده : " د جنګ په وجه په دنیا کښې سخته وبا راغله . په جنګ کښې دومره کسان نه وو مړ شوی . لکه په دې وبا کښې چه مړه شول . په هندوستان کښې هم دې وبا ډیر خلک ووژل . پښتانه هم ډیر پکښې مړه شول . دا داسې عجیبه وبا وه اکثر به یې ځوانان . جینکۍ او هلکان وهل او مړه کول او چه یو کوټه یو ځل ننوته بیا به یې یو هم نه پرېښود .... په دې مرض د تولونه اول زه پر یوتې وم خو هسې خدای جوړ کړم .... زما ورسته غنی چه د ښځو کالو و ناروغه شو.

غني ډېر ښکلې وه. د مور ورسره ډېره مينه وه. ډېر به يې ورته ژړل ما به منع کوله او د صبر تلقين به مې ورته کولو خو د هغې زړه به نه صبرېدو. يو ورځ د غني رنځوري سخته شوه. مور يې ورته د کټ سرته ناسته وه د ده سر يې په غېږ کښې اېښې و. ما د ماښام لمونځ کړې و په مصلىٰ ناست وم. دعا مې کوله غني ته مې کتل چه بې هوښه پروت دې چه ناڅاپه مور يې پاڅېده د زوې سر يې د خپل ورانه نه په بالښت کښېښوده او د زوله کټه چاپېره وګرځېده او سرته يې ودرېده او لاسونه يې په دعا پورته کړل او په ژړا يې دويل چه اې خدايه د ده مرض په ما کښېږده او دې ماشوم ته شفا ورکړې. د خداې يوه عجيبه حکمت و. په سباله دانا جوړه شوه. د ده مرض ورځ په ورځ زياتېدو او د غني مرض به ورځ په ورځ کمېدو غني جوړ شو. او مور يې خرانيم که شوه. ماشومان يې راته پاتې شو. دغه وخت غني د پنځو کالو. ولي د درېو کالو او خور يې د يو کال وه. (٦١)

د مور تر مرګ پسې ورپسته د عبدالغني خان روزنه د ده د انا د پاچا خان د مور په غاړه وه. مګر د هغې هم د ژوند ډېرې ورځې نه وې پاتې. په دا وخت کښې چه باچاخان د ډېره غازي خان په جېل کښې قيد و. مور يې هم وفات شوه (١) او د غني دې پالونکې او مهربانې هم له دنيا سترګې پټې کړې. غني بې سرپرسته پاتې شو. لنډه دا چه په غني د ماشومتوب په دوره کښې د ژوند د ناورين چپې راغلې مګر ورو ورو د دغه حالات مخ په ښه کېدو شول. خان کاکاجي غني د ملا شو

(٦١) زما ژوند او جدوجهد ص ١٣١ - ١٣٢ .
(١) همدغه کتاب ص ٢١٩ .

او ښوونځيونه لاړ ، دده په شخصي ژوند کښې هم تبديلي راغله .

## زده کړه ، روزنه او فرهنګي محيط :

د پښتو د اوسني ادب دغه نوميالي شاعر هغه وخت د مډل ته رسېدلی

ډنګ شو چې باچاخان او نورو مبارزو او ښکيلو پښتنو په همت په پښتنو کښې د عصري تعليم د شروع کولو او عامولو جد و جهد جاري وو . او دد وی په همت او ميړانه په ۱۹۲۱ ع کال د اتمانزو آزاد سکول جوړ شوی وو ، خو د لرو پښتنو په چاپېر چل کښې په عام ډول د تعليم څه شوق نه وو . او د پېرنګي اجنټانو په د عصري تعليم د مخنيوي لپاره په خلکو کښې ډول ډول غلطې پروپاګنډې خپرولې او خلک يې له عصري تعليمه لېرې ساتل . په قبايلي او کليوالي سيمو کښې د سبقونو عام دود په جوماتونو کښې هماغه ديني نصاب وو ، چې له غوانه تر اوسه لا په ځينو ځايونو کښې چلېږي .

غني خان په داسې شرايطو کښې د ښوونځي شو ، او ميړني پلار يې د اتمانزو په آزاد سکول کښې شامل کړ .

استاد بېنوا مرحوم په دې باب کښلي دي : " د غني خان ابتدايي زده کړه په هغه آزاد قومي ښوونځي کښې شروع شوه چې باچاخان او د هغه دوستانو د غريبو هلکانو د پاره په " اتمانزو کښې جوړ کړی وو ، او زده کړه يې کښې ورباوه .

باچاخان خپل زامن د غريبانو ښوونځي ته واستول چې خلک

ونه وايي چه: باچاخان د خپلو او نورو د زامنو تر منځ توپير کوي. خپل زامن
معتبرو ښوونځيو ته بيايي او د نورو زامن د غريبانو ښوونځيو ته استوي (۸).
د لسم ټولګي تر پاس کولو وروسته د ده هغه په جامعه مليه کښې
شامل شو. په ۱۹۲۹ع کال باچاخان ډيوه مرام لپاره بيرته هغه ته راوغوښت
او څه موده وروسته يې د تحصيل لپاره لندن ته وليږه. او د ۱۹۲۹ع کال
د جولای په ۲۳ نيټه د څورلسو کالو په عمر د لندن په نيت په بمبئ کښې د اوبو جهاز
کښې سور شو.

استاد بينوا د ده د لندن د سفر په باب ليکي: "غني خان لندن ته
ولاړ او هلته يې د باچاخان په مشوره دوه نيم کاله د يو لوي پادري په کور کښې
تير کړه، وايي چه په دې کښې د باچاخان مطلب دا و چه غني خان که د پرنګيانو په ډيره
او چت خاندان کښې عمر تير کړي نو د پرنګيانو د عظمت په راز به پوه شي....
د انګلستان آزاد ماحول کښې د غني ناياب ښايست د هغه د پاره يو لوے
مصيبت شو. چه چيرته به تې پرنګيانۍ جينکۍ به ورپسې وې او سبق ته به يې
نه پريښود. خو په آخره کښې د لندن يوه د فلم ستاره يې پر مينه شوه چه ډيره
بے بها ښکلے وه. د ده نورو ملګرو ته ويره پيدا شوه چه غني يې په نکاح
وانغلي، نو يو کس پکښې باچاخان ته خط وليکه او د ټولے قصے نه يې
خبر کړو، باچاخان د تار په ذريعه حکم وکړو چه فوراً امريکے ته لوم کالج لاړ شه (۹).

---

(۸) اوسني ليکوال ح ۳ ص ۹۷۰
(۹) همدغه اثر ص ۹۷۱

دغه خبر: خاے خاے دغني خان په شاعري کښې هم خان بنکاره کوي

چه دلندن د پیرنګو جونو ښایست به زړه اثر کړے و ... دلندن معشوقې»

ترمه لیک د دوی یو تو ته د وچه داسې پیل کیږي :

دلته خواته ازغي دي     بل خوا ځانګې د نرګس

د هنر علم سایه کښې     ګرځي ګل لبانه مس (۱۰)

غني خان د پلار په حکم له لندن نه امریکې ته ورلاړ . او دلویزیانا د ایالت د بورې

او شکرے جوړولو په یو کورس کښې شامل شو . اما دوه نیم کاله وروسته چه

باچا خان بیا قید شو . نو غني خان ته ژوند ترخ شو ، ځکه خرڅ نه

وررسیدو او پوره اته میاشتے پیسه خرڅ هم نه وورسیدلے . بالاخره یے

یو خیلوان دوه وخته قلاره د ورلیږل چه د یے بیرے له امریکې هندوستان ته

راواپس شي .

باچا خان هم د غني موضوع ته دا اشاره کړے ده :« مشر عبد الغني دے د چه هغه

د ترو کمسترۍ د تعلیم د پاره امریکې ته لیږلے و . خو چه زه فیرنګیانو په ۱۹۳۱ ع

کال کښې جیل ته ولیږلم او زما جایداد یے ګډ وړ کړو نو هغه د پیسو د نشت په وجه

سر ته ونه رسولو او واپس راغے » (۱۱)

کله چه عبد الغني خان له امریکې راغے نو باچا خان د هندوستان د بهار

د ایالت د هزاري باغ په جیل کښې و ، چه د غني ورسره ملاقات وشو . او بیا د جواهر لال نهرو

(۱۰) پانوس ص ۱۱۶ ، ۱۹۷۸ ع کال د پیښور چاپ .

(۱۱) زما ژوند او جد وجهد ص ۲ .

فضیل (۱۸۸۹-۱۹۶۴ع) په مشوره ئې د ے، آله اباد ته ولیږل او هلته د جواهر لال نهرو

د پلار موتي لال نهرو په کور کښې دیره شو، او اته میاشتې د جواهر لال نهرو

میرمنې کملا د خپل بچي په شان وناز اوه خو کله چه په هغې پسې ډګر قتا ږي

انګریزي پولیس راغلل . نو دے او خپله لور اندرا (۱۹۱۷-۱۹۸۴ع) یې د ټاګور

بین الاقوامي یونیورسټۍ ته ولیږل . د چه د غني یونیورسټۍ ته لاړ . لږ موده

پس د محصلینو د اتحاد یې رئیس شو .

د غني د منظم تحصیل دوران هم له واقعاتو سره مل روان و کله به یو څه

پیښ وو ، او کله به بل څه .

د دے د تحصیل په جریان کښې د ده له خپلې مورنۍ ژبې سره پره عربي ، فارسي

اردو او انګریزي ژبې د خبرو کولو مطالعے او په ځینو کښې د څه کښلو

ترسره حده زده کړے .

په اوسني لیکوال کښې د ده د عربي دانۍ او د اسلامي علومو

د تحصیل او مطالعے په باب راغلي دي : " د باچا خان دا خیال و چه د غني به

یو لوی اسلامي عالم جوړ کړي ، نو ځکه غني خان او ه کاله د عربي مروج

علوم ولوستل په تیره بیا د قرآن تفسیرونه او د احادیثو کتابونه ( مسلم ، بخاري )

احسن المسائل او بلوغ المرام تقریباً ټول په یاد وو او عربي ژبه یې د خپلې

ژبې پښتو په شان روانه ویله " (۱۲) وایي چه یو ځل د هند د دیوبند د اسلامي

---

(۱۲) اوسني لیکوال ج ۳ ص ۷۹۰

ملا صیب مولانا داتمانزو آزاد سکول ته راغلے و، غنی خان د تولو شاگردانو مخکښے ولاړ شو او ښل دقیقے یے په روانه او فصیحه عربی ژبه وینا وکړه مولانا پوښتنه وکړه چه دا هلک عرب دے؟ باچاخان په جواب کښے ووئیل چه نه دا زما زوے دے.

دغسے چه باچاخان په غنی باندے د عربی د زده کړے باعث شو دغے ترڅنګه یے د پارسی ژبے د زده کړے سپارښت هم ورته کاوه، باچاخان په خپل یوه لیک کښے غنی خان ته کښلی دی: "عربی او فارسی طرف ته هم څه نه څه توجه وکړه او د دے مطالعے د پاره هم څه نه څه وخت وباسه ما تا ته د دے متعلق اول هم لیکلی وو لیکن تا یے په خپل خط کښ څه خاص ذکر نه دے کړے" (۱۳)

## ملازمت:

بناغلی همیش خلیل کښلی دی کله چه غنی خان په ۱۹۳۳ع کال پیښور ته واپس راغلو څه موده دے د تخت بهایی په شوګرمیل کښے ملازمت وکړو (۱۴)

استاد بینوا لیکلی دی: "غنی خان هلته د بوره جوړولو په یوه کارخانه کښے د میاشتے په سلو ښل کلدارو نوکر شو، په لومړی سر کښے یو معمولی نوکر و، خو په دے کاله کښے د ننه د ننه د خپل نظری استعداد او لیاقت په وجه د کارخانے د تولو نه لوے او غټ افسر شو... څه موده وروسته یے د تخت بهایی په سیمه کښے د بورے جوړولو کارخانه جوړه کړه، کارخانه په چلیدو راغله، خو داهغه وخت وچه دده د پلار

(۱۳) د باچاخان لیکونه (۱۴) پښتانه لیکوال ص ۱۷

(باچاخان) او پرنګیانو تر منځ بیا جګړه توده شوه او د غني خان قول څپلوان د انګریزانو
له خوا د استعمار زندانونو ته بوتلې شول. غني خان ته باچاخان حکم کړی و چه خان
به قید ته نه ورکوي، او د مفوي د جایداد سرپرستي او انتظام به کوي. غني خان
هم د خپل جایداد په یوه کلي کښې ځانله سمه کور جوړ کړ... کرمه زمینداری ئې
شروع کړه او په مزه کښېناست» (۱۵)

استاد بینوا په اول وار کښې د ده د ملازمت خبره د سبووالي او دوم
والي چه: غني خان هلته د بورجوړولو په یوه کارخانه کښې.... نوکر شو. ځکه چه
دا بحث په هندوستان کښې د ده له ژوند سره اړه لري، نو د ملازمت د غه
دوره به یې هندوستان کښې وي، خو په اوسني لیکوال کښې د غنې خانه د معلوم.

اما په بلوشې (۱۶) کښې چه د میا جعفرشاه په نامه د عبدالغني خان کوم منظوم
لیک چاپ شوې دے، په یوه بیت کښې یې راغلي دي:

چرته نرم ریښمین تار چرته میزرے
چرته زه چرته «ګوله» چرته شکرے

د محمد منظوم لیک په حاشیه کښې لیکلي دي: ګوله: ګوګرناته د هندوستان
په (یو. پي) ولایت کښې یو ځای دے غني ځلته د بورې په کارخانه کښې افسر ؤ.

نو استاد بینوا چه په هندوستان کښې د خان د ملازمت کوم بیان راوړے
دے دا به بنایي هماغه ګوله کښې وي.

(۱۵) اوسني لیکوال ص ۶۰۲
(۱۶) بلوشے ص ۳۶ د ۱۳۲۹ هـ ش کال د کابل چاپ - پښتو ټولنه.

## واده :

او سنی لیکوال کښې راغلی دی : " .... او هغه وخت چه د بمبئی په ښار کښې یې د خپل یو دوست کره د حیدرآباد د نواب رستم جنګ کشر لور ولیده نو د لیدو سره سم ستی یې زړه پرې بایلود ... " بیا لیکی : " او تراوده کالو منلو وروسته یې د نواب صاحب لور ترکړه او د خپل ژوند ملګرتوب ارزو تعمیر سیده. "

عبدالغنی خان د خپلې د ملګرې په باب داسې نظر لری :

| | |
|---|---|
| یو خوب د شاعر په جامه انسانی | یو ساز د دور دراز ښکی خوږ آسمانی |
| یو ګل د جنت په خصلت جهانی | یو جسم نازکی یو زړه ګی نورانی |
| شو له دا پیدا د غنی دلبرا | په غیرت بیتننه په ښا ایرا بهشتنی (۱۷) |

## سیاسی میدان :

که څه هم استاد بینوا کښلی چه غنی په ۱۹۴۵ ع کال د سیاست د ډګر خواته هغه وکړه ، خو زما خپله رایه او نور شواهد دادی چه د عبدالغنی ژوند له ماشومتوب څخه په یوه سیاسی ماحول کښې تیر شوی دے .

خان په داسې یوه کورنۍ کښې زوکړې چه هغه خپله یوه لویه سیاسی ملنه وه ، باچاخان نه یوازې د خپلې سیمې په سیاسی حلقو کښې محشور ‌کړې و بلکه د سیمې په سیاست کښې داخل شخصیت دے .

عبدالغنی په دغسې یوه کورنۍ کښې دنیاته سترګې پرانیستی ، د هغه وخت

---

(۱۷) د خبرې ښکارد ص ۳ . د ۱۹۵۶ ع کال له چاپ ، پیښور ، د څرګند ښکار په ۱۹۵۶ ع کښې جنوری میاشت ... په ۱۹۵۰ ع کال د خپل واده د ... کال پیښور دی . نو ښکاره چه خان به په ۱۹۲۹ ع کال کښې واده کړی وی .

ټول سياسي جريانونه او واقعات دد: په فکر، نظر او عمل لحاظ ئې او مؤثر وو.

زه په خپله د ع. الغني خان د سياسي فعاليت زمانه او په سياست کښې دده ګډون له هغه وخته راپيل کوم، چه د پرنګي د ښوونيا تو په نتيجه کښې په افغانستان کښې د غازي امان الله خان (۱۹۱۹-۱۹۲۹ع) پر ضد بغاوت وشو او بچه سقاو د ...نه شو، زموږ په ټول هيواد کښې د حق او باطل ترمنځ يوه جګړه روانه شوه. او ټول وطن د پرنګي په لمسه په اور کښې سوځيد. زموږ ټولنو وروڼو د دغه مصيبت برداشت نشو کولاي. او له موږ سره غني خان په دغه غم کښې شريک ؤ. باچاخان او دده ملګرو د خلکو د پوهولو لپاره جلسې کولې او د امان الله خان په ګټه يې تبليغونه کول چندې يې ټولولې (۱۹)

او د جنګ د زخميانو د ما. د لپاره يې افغانستان ته د يو طبي وفد د ليږلو کوښښ شروع کړې و. غني خان هم د باچاخان له خوا د غه وفد ته معرفي شوی و، لکه چه او سني ليکوال کښې راغلي دي: " باچاخان پنځه زره روپۍ او يو هم غني د غه وفد ته وباخښه" غني خان د غه وخت په جامعه مليه دهلي کښې سبق وايه، په غني پسې ټيلګرام لاړ او هغه په دوه ورځ راورسيد.. خان ته يې د رضا کارانو خرڅ جامې جوړې کړې او د ډاکټر خان صاحب (۱۹۵۶ع شهيد) له کمپوډر څخه يې د پټۍ تړلو چل زده کړ. خو پرنګي د دغې ډلې له تلو سره موافقه ونه کړه او د ... وی پاسپورټونه يې ترې وخستل

(۱۹) مرحوم راحت زاخيلي (۱۹۰۴-۱۹۶۳ع) هم په د غه باب ... په ... کښې د نجيانو ... س ۳۰ د زلمي هيواد مل په ... د ۱۳۶۳ ... ل ... پ)

چه امان الله خان له پاچهۍ لاس وکېښ.

خنګه چه د باچاخان د غني فیصلې ته پرنګیانو په ښه نظر نه کتل او بلمه یې غوښتله چه د غني ګرفتار کړي، نو غني یې له ګرفتارۍ څخه د ژغورلو په خاطر د تحصیل لپاره انګلستان ته ولېږه (۱۹۲۹ع). دا و د سیاسي مبارزې په ډګر کښې د غني لومړی ګام او د پرنګي د اعمالو پر ضد یو پاڅون.

وروسته تر دې چه غني له اروپا او امریکا څخه بېرته هندوستان ته راوګرځېد، د هند په سیاسي حلقو کښې محشور شو. له ګاندهي جي (۱۸۶۹-۱۹۴۸ع) او د هند له نورو سیاسي لیډرانو سره یې د پلار په وسیله ناسته پاسته وه. لکه چه باچاخان په خپل یو لیک کښې عبدالغني خان ته کښلي دي: «غني جانه! دا خو ډېره د خوشحالۍ خبره ده چه د ګاندهي جي په صلاح او مشورې سره بنګال ته روان یې زه به تا نه ډېر خوشحاله یم که چېرې ته د ګاندهي جي په صلاح سره کار کوې د هغه تا سره ډېره مینه ده ....» (۱۹)

استاد بېنوا لیکلي دي: «عبدالغني خان په ۱۹۴۵ع کال د دوستانو په سپارښتنه د هغه وخت په مرکزي پارلمنټ (برتانوي هندوستان) کښې د انتخاباتو د پاره ودرېد، خان یې کاندید کړ (۲۰) د ده په مقابل کښې که څه هم د هغه وخت د درې سیاسي ډلې لکه خاکسار، مسلم لیګ او هندو مهاسبها

(۱۹) د باچاخان لیکونه ص ۲۰
(۲۰) د پښتانه لیکوال په ۱۷۰مخ کښې یې کښلي دي: «کوم وخت چه خان عبدالقیوم خان د کانګرس مستعفي شو نو غني خان د هغه په ځای د دوه کاله د مشترکه هندوستان د سنټرل اسمبلۍ ممبر پاتې شو.»

ولاړے وُ، خو غني خان هغوئ ته ماتے ورکړه او د هند په مرکزي پارلمنټ کښے ونا کامه شو نو ډهلي ته ولاړ. د هند په مرکزي پارلمنټ کښے بنا غلي غني د خپل مستعد دماغ په برکت ډير زر ښه مقام ومونده او د هغه وخت د هندوستان په دريو بهترينو مقررينو کښے يو هم غني خان و، که څه هم دے د پارلمنټ نه تلو ته غوږ کښے و، خو چه ده به تقرير شروع کړو نو بيا د هم به چارچاپيره د پارلمان غړي په منډه منډه د پارلمان سالون ته راتلل.... سره د دے چه عمر ئے لږ و، بيا هم د مرکزي وزيرانو سره ډير ورلسو سلا کار وُ کميټو غړے و يو ځل نيم هم داره پا بين الملي کنفرانسونو ته ليږلے شوے و." (۲۱)

هم دغه مهال په شمال مغربي صوبه سرحد کښے د مسلم ليګيانو د راني د خدائي خدمتګارو په وړاندے زياتے شوے وے، نو هم دغه وخت چه عبدالغني خان د خدائي خدمتګارو د محافظت لپاره د زلمي پښتون ډله جوړه کړه او ډير وطنپرست پښتانه زلميان ئے پکښے منظم کړل، د دغه تحريک سره له دے چه شپږ مياشتے وچليد، خو د اتيا زرو په شاوخوا کښے پښتانه زلميان ورسره وو.

فخر افغان د دغه تحريک په باب کښلي دي: "څه وخت چه زمونږ خلک د ميجر خورشيد د دے اراد ے او سيکم نه خبر شول نو هغوي د خدائي خدمتګارو د حفاظت د پاره نوے جماعت د غني په مشرئ کښے جوړ کړو، نوم ئے (زلمي پښتون) و او په دے کښے هغه ځوانان شريک شول چه د چا عقيده په عدم تشدد باندے نه وه

(۲۱) او سني ليکوال، ص ۹۰۲

ولې چې ځنې په دې غرض دغه جماعت جوړ کړې و، چې خدائي خدمتګار
خو تشدد نه کوي، د دوی عقیده په عدم تشدد د ده د دوی په خلاف د تشدد
سازشونه کیږي، نو دوی اعلان وکړو چې دا جماعت فی الحال د خدائي خدمتګارو
د حفاظت د پاره دې. د دې په مقابل کښې مسلم لیګو د غازي پښتون په نوم یو
جماعت جوړ کړو لیکن پښتون قوم زلمي پښتون پسې و، او مسلم لیګ کښې
چه کوم خانان د برټانیا نو تالي څټ وو، ځنو په دې نتیجه ورسیدل چې قوم
خدائي خدمتګارو سره دې نو که د زلمي پښتون او غازي پښتون جګړه شي
نو مونږ مسلم لیګو کښې به یو کس هم ژوندې پاتې نه شي..... (۲۲)

د هندوستان تر ویش وروسته د ۱۹۴۸ع کال د جولائي په څلرمه
نیټه د شپې په یوه بجه غني خان د مسلم لیګي حکومت له خوا ګرفتار شو او
د همغې شپې په سبا پېښور ته بوتلې شو، او له مرحوم ماسټر عبدالکریم سره
یو ځاې جیل ته ولیږل شو. د هرې پور او پاکستان د نورو جیلونو په تورو
او سپینزو پنجرو کښې یې شپږ کاله تیر کړل او په ۱۹۵۴ع کال کښې له بنده
آزاد شو.

داوه د ده سیاسي ژوند او په سیاسي میدان کښې د ده د فعالیتونو
او مبارزو لنډه قصه. اما تر دې وروسته هم که ظاهراً خان په رواني سیاست
کښې لاس وهل نه لري، مګر بیا هم د محیط او خپلې کورنۍ د سیاسي مرکز میو

(۲۲) زما ژوند او جد و جهد ص ۶۹۲ - ۶۹۹

لہ چپو پہ امان کښې نہ شي پاتې کېدې او دغہ سیاسي جریانات د دہ پہ ژوند اغیز کوي او د دہ زړونہ مل ورسرہ تېرېږي .

## د ادب میدان :

ویلې شي چې خان عبدالغني خان چپل لومړنی شعر د ۱۹۲۹ ع کال د جولاي پہ ۲۲ نېټہ د عمر پہ خورلسم کال ویلي دي ، او دغہ شعر یو بیت دا دی :

د تهمت نہ بہ جهان کښې څوک خلاص نہ شي
چې آسمان وي کلہ کلہ وي وریځې

عبدالغني خان لہ همدغہ وخته د ادب پہ میدان کښې لومړي قدم کېښود ، مگر دغہ قدم یې ډېر پوخ او محکم کېښود چې ان تر دې دمہ پہ دې لار روان دی ، او ادب یې د زړہ همدم ایسي .

خان لہ ۱۹۲۹ - ۱۹۸۰ ع کال پورې پہ دې شپېتو پنځوس کالو کښې چپلې ژبې او چپل فرهنگ تہ ډېرښہ ورکړې دي . چې دغہ ادبي کارنامې بہ یې نوم تر ډېرو زړونو وساتي .

## پښتو ادب تہ د غني خان بخښنې :

د پښتو ادب پہ اوسني دور کښې پہ سلگونو شاعرانو او ادیبانو لوا ور پښتو ژبې تہ پہ نظم او نثر کښې ډېرې بخښلې دي ، چې پہ دغو والیو کښې د ځینو هغوئ مرغلرو سرہ برابر دي ، او د ځینو لا پہ کوم څنگہ نہ ارزي .

د عبدالغني خان بخښنې پہ لومړي قطار کښې ځاي نیسي ، دہ چې څہ

خپلې ژبې او ادب ته غښتلې دي ډېر برخه يې د پښتو شاعرۍ په اوسني دور کښې خپل بل ساری نه لري، او پوازدے په خپله ژبه کښې د دغسې بکر و اوناویلو شوو مضامینو مبتکر دے.

زه به دلته ليکنې په دې برخه کښې لومړی هغه څه در وپيژنم چه د ده پښتو ادب ته ورکړي دي.

## ۱- د پنجرے چغار:

دا د خان د منظوم کلام اولنی شایع شوی مجموعه ده، او له اختتامیه ليکنې يې ښکاري چه دغه مجموعه خان په جيل کښې تنظيم او بشپړه کړې ده د ده خپله ليکنه په دې خصوص کښې دا ده: "نن په ۲۲ تاريخ د اکتوبر ۱۹۵۲ء په هريپور جيل کښې دا کتاب ليکل ختم شو." (۲۲)

دغه مجموعه ۲۱۵ مخه په ۱۹۵۶ء کال پېښور کښې د يونيورسټي بک ايجنسي له خوا چاپ شوې ده. د کتاب پېژندګلو د مرحوم ماسټر عبدالکريم په قلم کښل شوې، او په پيل کښې يې د غني خان منسوره ليکنه هم چاپ شوې دي.

## ۲- د غني پلوشې:

دا د عبدالغني خان د کلام دويمه مجموعه ده چه په ۱۳۲۹ هـ ش کال په کابل کښې د پښتو ټولنې له خوا ۲۳۶ مخه چاپ شوې ده. د دې مجموعې د پيل په ۱۲۳ مخونو کښې د خان نوي کلام چاپ شوی دے او وروسته يې د پنجرے چغار

---

(۲۲) د پنجرے چغار ص ۲۱۵ - خان د دې اثر په بربل خای کښې کښلي دي: "هريپور - ۱۵ اکتوبر ۱۹۵۰ کښې دا کتاب شروع کوم - غني

نظمونه اخیستی دی.

د دې مجموعې په پیل کښې د مرحوم استاد الفت یو یادښت او په پای کښې یې د غني خان یو یادښت چاپ شوی دی چې د مړپور په جیل کښې کښل شوی او تاریخ یې ۱۹۴۹ ع کال د جولائي د شلمې نیټې دی. د غني په دې یادښت کښې راغلي دي: "کتاب خلاص شو خو شعرونه ډیر پاتې شو. خیر بیا به چرته څه غم وکړو. ژوند عجب شی دی. د کتاب کښې اول شعر د اوبو په جهاز کښې په بحر هند کښې ویل شوی او آخري د مړپور جیل د کوارټر په یوه چکۍ کښې په دې مځ کښې چې څه مستي، خوشحالي، غم، ارمان، امید، وغیره. خندا او ژړا په ما راغلي دي. نو د دې کتاب په دې پاڼو کښې موجود دي. و افسوس د چې ژبه مې د زړه هومره طاقت نه لري بیان د احساس نه کمزوری دی. خو هر څه چې دي حاضر دي. ما د څه پښتو لوکو ښېښ نه دی کړی. بلکه د ښکاره کولو خواری مې کړې ده."

دا زما د خان تصویر دی. ډیر نا مکمل او مات ګوډ دی ولې دا زړه ښه په خوشحاله ضمیر وایم چې د دې کښې هر څه دي زما دي. دا زما د دې بې ښکاره او بې مطلبه ژوند یوه خواره ډالۍ ده چې ما خپل قام او ملک له جوړه کړې ده. کاش چې د دې کښې د ژبې د ښایست او په مې د کمال د پاڼو ما د ک بهولي وې ولې څه وکړم چې هومره مې وس و. او بیا د خپله وسه زیاتي په هیڅ نه دی پر. که په دې خیال تو کښې دوه مړه حسن وي، چې له ما نه پس هم

ژوندي پاتې شي نوزه به وايم چه واقعي ماد آب حيات چينه وموند له، اوس دوي ماژوندي کړي دي، اوبيا به دوي ماژوندي کوي. ،، غني ،، (۲۴)

## ۳- پانوس :

د عبدالغني خان د شايع شوي کلام دريمه مجموعه پانوس نومي چه په ۱۹۷۸ع کال دقامي مکتبه پيښورله خوا په پنجاب آرټ پريس ۱! هوی کښي ۲۹۲ مخه چاپ شوي ده. په دې مجموعه کښي دخان له نويونظمونو سربيره د پنجرې چغار او پلوشې انتخابات هم ليدل کيږي. دد مجموعې په پيل کښي يويو مخيز يادښت هم چاپ شوي دے.

## ۴- دغني ليکونه :

غني خان دخپل سياسي او ادبي ژوند په دوران کښي دلرې او بر پښتونخوا او برصغير اديبانو، شاعرانو او سياسي خلکو او مشرانو ته په اردو انګريزئ او پښتو کښې منظوم او منثور ليکونه هم کښلي دي، چه زه دخان دغه ليکونه دده يو ځانته ميل اثر بولم.

که څه هم دده د پښتو منظومو او منثورو ليکونو ځينے برخې د سرحد په اخبا راتو، رسالواو هم دده په کتابونو کښے شايع شوي دي، خود هغو ټولو او خوندي کول په کار دي، ځکه دغه ليکونه دخپل ادبي او هنري لطفه سره ځينے ډير مهم نکات او تاريخي وقايع هم رانغاړي، چه دغني خان

---

(۲۴) پلوشے ص ۲۳۶

د ملي، سياسي او ادبي سټيج په څېړنه او همدا رنګه د ټولنيزو حالاتو او وخت د مطالعې په دوران کښې د ځينو نورو سره ډېره مرسته کوي. زه په ځان کښې د هغه له زړه پوري رسالو څخه د دوو منثورو او يو منظوم ليک د نمونې په ډول را اخلم.

دارالامان

۲۰/۱/۵۹

ګرانه مهدي:

ستا دواړه خطونه را رسيدلي دي. معافي غواړم چې اول مې جواب درنکړو. خوږه داوړي نه ځکه ناجوړ يم او نن سبا خو همېشه د خپله خانه او ټولې دنيانه مرور شوی يم. تا ته دا هم معلومه ده چې کلونه او شو چې ما خلاص شوی نه د ليکلې تير شوي خرم کښې چې زه په هسپتال کښې وم. نو په امام حسين مرثيه ليکلې ده. هغه د ليږم، هغه هم رانه ورکه شوې ده. خو که بيا مې کوم او را ياد وه. زه ستا ډېر مشکور يم چې کله نا کله زما شعرونه رهبر کښې چاپ کړې زه مې ډېر غواړي چې هره هفته دلته څه ناڅه ليکم ولې ډېر پريشانه او زوړ ستړی يم او صحت کار نه مې د کړي نه ناي (۲۵). غني.

لاندې يو منظوم ليک را اوړم چې عبدالغني خان د ۱۹۵۱ع کال د جون په ۲۵ په جيل کښې ماسټر عبدالکريم ته ليږلی و:

---

(۲۵) رهبر کاليز نمبر ۱۲ فروري ۱۹۵۹ع الف مخ.

غني ته نه سړی وې — نه سړی شوې نه به شې
بې تکه د خبرې — بې مطلبه د نشې
بې تولې د دماغ دې — بې لباسه د بیان
دا سړی د سنډا دې — نه سود پېژنې نه زیان
تالو کښې الوته وینې — بق بق آسمان ته ګورې
قسمت د ته ناړې وي — ته نې ناست او خاندې ګورې

* * *

جوړې کړې محلونه — د خندا او د هوا نه
په خاوره لږې خاورې کړې — دا ښایسته دنیا ورانه
دا د که د عیشونو — کښلو جونو او نهانه
په خاندې مقبرې کړې — تکه توره ورانه ورانه
دا څه غوارې د بل نه — خاندې څه غوارې د خدا نه
دا څه بلا جوړې — د دې ښایسته دنیا نه

* * *

نرګس دې دې کړلي په باغ کښې د جوارو — رامبېل دې لګولي په باغچه کښې دانا رو
دنیا کښې ترقي په خوشامندو د دله ده — تا جوړې په سلام دې کړې او تختونه په منت
دنیا واړه کمزوره ده خواره دی دروغ خواره ده — چې څه د بل ښاونې د هغه کېږي صفت
بادشاه د دنیا زر دی او یا زور د بل نشته — مطلب د ژوندانه یا خاندې او یا ګور د بل نشته

خو ته اینې خانه نه سړې وې نه به شې — کله نوا او کله نوا، خندانه وې شمشې

د خالق نظر کښې خانان خیال نه دې — ته تول پارښنګ یاران زحل تو نه دې

ته تول منصور منصور زره د تودو سره دې — خان تاله حکم د بهلول نه دې

منم چه ګل و نو ابشار و نو سپرلو یار دې — خو تاله دوزخ خالق دا ښوشیو نه دې

په دې ته چه د ګل ورد نسیم ساقي راز دار دې — چه تاله بل څملول او خاخیتو نه دې

همیش به د شغلې یوا تا خیږي په صحرا کښې — په ګو کښې د غو چه خان باول نه دې

رښا له دیړا او کې په د تشه رښا څه — داو د خیښتي خان په د تشه خندا څه

* * *

ته حسن څه شکې د لوګي هوا محل دې — انصاف انصاف د څه دې هوښیار شان اکل دې

ایمان ایمان د خړ وړي هوښیار غم کړي د سبا

ا ت با ر د هوښیار تیا داکو ایمان د عقل غل دې

رښتینې د مرچې وهي په زولنو کښې

نن بره د چاې دوموره او بره روان چل دې

په بیه شرافت د نوم او ښځې په لیلام

یا هې په کرایه ښه سرتوب په بدل دې

خټک کښې ډیر یا نو لتهو ته بنا پیري — ته لیږ کړ پښتو په دسته خزان د سامري

په شمعو کښې لتې د لوو سرو پلوشې — غني ته نه سې و نه شې نه به شې (۲۶)

(د پس ستا ورغني)

---

(۲۶) رهبر، ۲۹ فروري ۱۹۶۱ ع ص ۱۱۴ - ۱۱۵

لهٔ د آثارو سره يوځای د خان متفرق اشعار او نظمونه، ليکونه او نور مضمونونه ليکلي، د پښتو په ډيرو ملي رسالو او اخبارونو کښې شايع شوي دي چه ټولول او خوندي کول يې په کار دي، ځکه د ده هر ليکنه او هر نظم د پښتو ادب يوه قيمتي پانګه ده. او بويه چه زمونږ لرني پچپل قوم او ژبه مين ورونه دغه کار وکړي.

د غني خان د آثارو په لړ کښې ادب پوهانو په انګريزي کښې د "پټانز" په نوم د ده ديوه اثر يادونه هم کړې ده. چه خپړ افغان ته اهدا شوې دے وايي چه دغه اثر د ده ځله چاپ او شايع شوي دے. يو ځل په بمبئی کښې او بل ځل په ۱۹۵۰ء کال په پيښور کښې. ما خپله د خان دغه کتاب نهٔ دے ليدلے.

## د غني د کلام شکلي خوا:

د خان د کلام کومه مطالعه چه ما غزيبه ته ميسره شوې ده چه هغو کښې زيا تره برخه د داسې شعري سکښت لري چه زمونږ لرني ورونه يې "نظم" بولي او د شعري قالبونو د ټولو ځانګړو قاعدو او اصولو ډير تابع نهٔ دي. له دغو نظمونو سره سره د ده په کلام کښې غزل، رباعي، قطعه او يوه نيمه مثنوي هم ليدے شي.

د عبدالغني خان په کلام کښې څه داسې نظمونه هم ځان ښکاره کوي چه مونږ ورته دلته په کابل کښې "آزاد نظم" او يا نوے شعر وايو دغه ډول نظمونه هم خان په خاص ادبي مهارت ويلي دي چه فکري خوا و سره سره هنري مزيت هم لري او د پښتو د نوي شعر د مطالعې په دوران کښې په خاص ډول د يادونے وړ دي، دلته زهٔ د ده د دغه ډول نظمونو يوه نمونه وړاندې کوم:

ځوک د زړه غولولو نښته
ځان له زړه غولوم پخپله
ځان له ناست یمه خپل غم ته
د خپل غم وایم بدله
چرته لرے تیر محفل له
د مستئ او خندا ځمه
چرته مرو شمع را اخلم
خپل مشال پرے لګومه
دے تورتم غم او افسوس کښے
زه په یاد د مینے پایم
سوی زړه ته قصے دیرے
د ځوانئ رنګینے وایم (۲۷)

دخان د آزادو نظمونو ډیر نمونې په پانوس کښے خوندی دی. په مجموعه کښے یو ځائیم د علامه اقبال (۱۸۷۳ - ۱۹۳۸ع) د کلام ترجمې لیدے شی او هم د پښتو د اولسی شعرونو نمونے هم.

## دخان د شاعرئ مضامین او فکری ارزښتونه:

دخان د کلام له مطالعے هر چا ځانله خوند اخیستے دے او لیکوالو او محققینو هر یو د خپل برداشت سره سم څه پرے لیکلی دی. مګر زما په عقیده تر هر چا د مخه او تر هر څه د مخه باید سړے د شاعرئ په باب دخان پخپله رایه پوهه شی چه د دے په باب څه نظر لرے. عبدالغنی خان استاد بینوا مرحوم ته په یو لیک کښے په دے باب دا سے لیکلی ""..... زما خیال دے چه ډرونډ کښے دیو شاعر مرام او هدف دیو مبلغ او ملا څخه بیخی جلا او بل شان دے او دا ځکه چه انسان په اساسی او بنیادی توګه یو خناور دے

(۲۷) رهبر جون ۱۹۶۹ع ص ۱۲

هغه خوړاک، څښاک، جنسي ارتیاوو او استراحت ته ضرورت لري او نور هیڅ ته نه. دا زموږ د شاعرانو وظیفه ده چې د انسان توجه او پاملرنه د هغه د ژوند او هستئ دې لوړو مرکزونو ته ور وګرځوي، چېرته چې هغه ممکنه ده، د خپل تکامل انعکاس وویني، او د خپلې ابدي معشوقې د ښکلا او ښایست دیدن وکړي.

زما خیال دی چې یو شاعر باید د فکر او خیال، قول او عمل په ذریعه د ښکلا او ښایست عبادت وکړي او انسان دې ته مجبور کاندي چې هغه د خپلو خواهشاتو له ګند کیږ څخه خپل مخ د خپل باغ عدن خواته واړوي. دا کار په پند و نصیحت نه شي کېدای. زما هغه خلک بد ایسي چې ما ته نصیحتونه کوي.

که چېرې موږ د ژوند له کومې د ښکلا او ښایست د قدر، داني لیاره خان راپیدا کړو، ترکومه چې په ژوند کښې د عذاب او مصیبت، درد او غم تعلق دی نو زما خیال دی چې موږ ته د ښکلا ښایست د تخلیق د پاره د هغې قیمت اداکول لازم دي. هر یو آرټسټ دا بوګنو ونکې قیمت اداکوي، او په دې کښې یو څو کسان خوشبخته وي چې د ښکلا، ښایست او دلربائي یو ښاخکی راپیدا کړي.

د آرټ، ښکلا او ښایست او دلربائي مخې ته د راوستو د پاره ته باید چې د ژوند، درد و غم ته مخامخ شې..

د غني خان له دې څرګندونو ښکاري چې د دوی د شاعرۍ مقصدیت هم په اوږو خبرو کښې نغښتې دی، او د دوی کلام کمال او جمال هم دغه دی چې غني خان چېله بیان کړل

د خان د کلام زیاته برخه فکري محتوی لري چه د ملي او قومي مسایلو له بیان څخه نیولې تر ټیټلو فلسفي مسایلو پورې خبرې او د ټولنې ضروریات په خپل کلام کښې رانغاړي.

د خان اکثر فکري آثار د طنز او مزاح په ډول په داسې طنزي انداز کښې بیان شوي دي چه د ټولنې او معاشرې ډېر ناوړه اړخونه په ډېره خوږه وطنزونو او ټوکو نظمونو کښې بیانوي. او د پښتو په معاصر ادب کښې ډېر لږ شاعران د غني طنزونه لري، یا خو به د غه ډول طنزونه ډېر لږ وي که وي نو صفه به هم د غني الفت چه غني بیان کړي دي نه وي. په همدې اساس دلته د پښتو ادبي محققینو لیکي چه په اوسني دور کښې طنز و مزاح ته په پښتو شاعرۍ کښې لیوني فلسفي عبدالغني خان خاصه ځلا ورکړه (۲۱)

د غني په شاعرۍ کښې له وطن او قوم سره مینه په داسې انداز کښې بیان شوې چه هیڅ ډول تفنن او تصنع نه پکې لیدل کیږي او د دوی د قوم پرستۍ او وطن پرستۍ د واقعي احساساتو ترجماني کوي. او په ټولنه کښې مسلط اجتماعي او سیاسي نظام هم د ده د اوږدې ژبې او د انتقاد له لخوکې خلاص نه دی. د زیاتو باسي چه د جامعې فسادونه په داسې طنزیه او مزاحیه ټوټو کښې انتقاد کړي چه په ظاهر کښې ډېر سطحي او بیش پا افتاده ښکاري. خو که یې مطلب ته ورسي، نو هلته د خان په فکور مغز آفرین ووایي.

---

(۲۱) اټک کښې اسپار ص ۱۰۶ طبع لوشنه ادب لاهور.

# عبدالغني خان او د ده کلام د شاعرانو، ادیبانو او محققینو له نظره :

د خان د پیژندګلۍ او د ده د آثارو او افکارو په باب چه کوم بحثونه شول د هغو تکمیل لپاره لازمه ایسي چه د هغو ادیبانو او شاعرانو آراوې هم راوړل شي چه د غني او د ده د آثارو په باب څرګندونې او نظریات لري :

۱- مرحوم ماسټر عبدالکریم (۱۹۰۸-۱۹۶۱ ع) د پنجرې چغار په دیباچه کښې کښلي دي: "... د غني د شاعرۍ درې دورې دي: اول دور د ملکوانه شاعرۍ دی ... دویم دور د غني شاعرۍ هغه وخت لپاسي شي څه وخت چه غني له یورپ، امریکې طواف په هم زیاته کړې وه ... د دور کښې د غني په تخیل کښې پراخوالې موندل شي. دا ته غني د خیال په نیلي سپرې خورا ګې پخپل قابو کښې کړي یو آواز د چه سوز او ساز لري، یو سرور د چه د مستۍ او مستانه خمار لري د دور کښې غني خان که خپل مسلک هم لري، وایي چه غالب او ټیګور په لاره روان وو غني مخې له ورغې دواړه یو بل ته وکتل. دغه د غني د دریم دور شاعري ده او چه د خیام مستي له یې د غالب بیباکي او د ټیګور رنګیني ورکړه ..." (د پنجرې چغار مقدمه ص د-)

۲- د پښتو ژبې نومیالي لیکوال همیش خلیل لیکلي دي: " د دغه نوم نه وړاندې ادبي دنیا کښې غني خان په لیوني فلسفي پیژندلے شو. او د خپلو مزاحیه شعرونو له لکبه چه اکثر به په اوږو ورځني پښتون کښې شایع کیدل. هم د دغه مجلې په ذریعه لیوني فلسفي نه صرف په خپل ماحول کښې بلکه ترلرې لرې مشهور شو..."
(پښتانه لیکوال ص ۱۰)

۳- مرحوم استاد گل پاچا الفت (۱۳۵۶ هـ . ش مړ) د غني شاعري د اسې ستايي: " د غني خان په اشعارو کښې چې څه شے زما د پېرخوښېږي، هغه د فکر او خيال آزادي او د تقليد له تلقيناتو څخه سرکښي ده.

د ده رندانه مقام ته څوک نشي رسيدے او هغه څه چې د ده په دخپل سناغلي ليونتوب له برکته ويلي شي د نورو خولې پرې سوځي.

غني د شعر او شاعرۍ په دنيا کښې رښتيا غني دے او ډېر څه يې په څېر رسيدلي دي. د ده په اشعارو کښې عشق او محبت، پښتو او پښتونولي، رندي او خيامي فلسفه. توکے او مسخرې هر څه شته له کارغانو او مارغانو سره يې هم په شاعرانه ژبه ډېرې د خوندخبرې کړې دي.

د ده په مستانه ليونتوب کښې شاعرانه هوښيارۍ او بيدارۍ پټې دي او په ملنډو کښې يې د مقصد لکۍ نغښتي دي. نو ځکه ورته ليونے فلسفي هم وايي." (پلوشې - الف. ب مخونه)

۴- استاد بېنوا (۱۳۳ هـ . ش مړ) بيا وايي: " ... ظاهر بين خلکو ورته د ماشوم په نظر وکتل خو د قدرت په نظر کښې هغه د پښتنې ادب پر آسمان يو ځليد ونکے ستورے و، چې له غيبه رابنکاږه شو.

هو! هغه وخت څوک پوهيدل چې دا ماشوم به يو ورځ د پښتو ادب غني او مستعد دماغ شي چې د سپيڅلي طبيعت له الهامه، د حقيقي انسانيت له نوره، د سرمست احساس له جامه د رندۍ او شوخۍ له خمه

دلیونې مینې له سوز و سازه او د ژوند د ژورو فلسفې له تله په پښتنې ادب دا مې
نوې خلا، نوې رنګینې، نوې روح او نوې خوند وبخښې چه د پښتو زوړ
ادب لږ و ډیر ورسره اشنا و. » ( اوسنی لیکوال، ج ۳ ص ۹۶۹ )

د. شیرزوی پوه. ګ. ف. ګیرس بیا د غنی شاعرۍ له تحلیل څخه د اسې راوباسي،

« د ژوند اند د پښتنو د ترسیم له پاره د غنی خپل مخصوص سبک او اسلوب انتخاب کړی
طنز، ټوکې او ټکالې کوي، او هغه څه چه د شعر په ذکر کښې د ده مخې ته ورغلي
دي هم دا سې ورته نه دي پاتې شوي او ګوزار یې وربانده کړې دی. حتی انګلیسان
ملایان، وطن دوستان، اولسي بې سوادان او عتیقه پرستان د ده ظرافت
لاندې راغلي دي. تیز او مهم موضوعات په دارنګ تعبیر سره بیانول په طبیعي
ډول د اشعارو څخه سموي. برسیره پر دې د غني خان د آثارو نه معلومیږي چه
د اولس په ورورسته پاتې کید او کښې خپله اولس ملامت دی. » ( ۲۹ )

۶. استاد اجمل خټک د غني په نامه یو یارکې لري چه یوه برخه یې
دلته را اخلو:

| | |
|---|---|
| د غني په نامه لیکم څو شعرونه | په نخرو کښې یا دوم تازه ګلونه |
| د هغه سره به نکونه د قلم دي | زه لوم په څو ساره ساړه آهونه |
| د هغه خوله کښې د خوند ډک ځیغارې | زما زړه کښې دي د درد ډک داغونه |
| هغه خیال، فن او ښکلا سره لوبیږي | زه لګیا یم لوبوم د اغلي زړونه |

(۲۹) د پاڼي اولس ادبیات. صد محقق معتمد شیروازي ترجمه.

سیلاني هغه د نوې دنیاګۍ دے — بلوم زه د کوډلو مشالونه

د هغه احساس د حسن تازه ګل دے — زه جذبات یم په پاټل دی سره اوروونه

هغه مینه ده، غیرت د ولولې دی — زه وفا یم، پښتو یم، ننګونه (۳۰)

۷- د پانوس په دیباچه کوټے کښے اغلي دي: "غني خان چه خپله د آرټ دیوے ماهر سے حیثیت لري د هغه د افکارو سره پوره پوره انصاف وکړے شي . . . . . غني خان د خپلې پاڼچې د کالو خانګے نه پریکړي. چه د هغه په خیال په پوپښتون باغ کښې د ګلاب بوټے خپلې فطري ارتقا ته پرېښودل په کار دي."

۸- پروفیسور ولي محمد خان سیال کاکړ یې بیا داسې ستاینه کوي :

چه پیدا په هشنغر کښې غني خان سو
بخت بیدار په رښتیا د لوے افغان سو
شاعر نه د فیلسوف د زمانے دے
په خپل شعر کښې د پښتون چه ترجمان سو
د لیوني اشعار چه لولي لیونیان سي
پس له لوسته هر سړے خبر په خان سي (۳۱)

---

(۳۰) د وخت چیغه ص ۲۴۲ د ۱۳۵۶ هـ ش کال . د کابل چاپ .

(۳۱) منظومه تذکره ص ۲۷ د ۱۹۹۲ ع کال د کوټې چاپ .

۹ - صاحبزاده محمد ادریس پخپل یو نظم کښې دغني او مفتون مداحیه داسې کړې ده :

فرق څه دی په غني او په مفتون کښې — کوم چې وینې لیونتوب او په جنون کښې

سترګو دانه که دی یو بل نا قـــلاره — اضطراب کوره د دواړو په خون کښې

د احساس درد کمی په شرابو نو — بیا وتیږي د شرابو په بیلتون کښې

بیهوشي کښې اروی خوابه د سرونه — فرق نه وینم د دواړو په قانون کښې

یو د خیال بل د جذباتو په تال زانګي — وریږه د خیال لیــلا د مجنون کښې

سر پټنو په او مستي په زړه وجابل دي — سبقیان دواړه د عشق په پوهنتون کښې

دغني د خیال نیلی په آسمان ګـــرځي — وریږه د مفتون آس وي په ګردون کښې

سر پورته چه د مینې کړي بر سیره — مستي راولي د عقل افلاطون کښې (۱)

۱۰ - ژمونږ نومیالی استاد پوهاند رښتین د غني د هنر او فن تجزیه داسې کړېده :

« د غني په اشعارو کښې یا په بله ژبه د ده د فکر په بلوشو کښې عشق او مینـــه او محبت پښتو او پښتونولي رندي او مستي، تنقید او کره کتنه، آزاد خیالي او بې باکي د بې باکي فلسفه او نور هر رنګ لذتونه او خوندونه شته او په دې میدان کښې غني د خوشحال د لارې پوخ ملګرې دی خو په تګو او ملنګو کښې تر هغه هم وړاندې دی. » (۲)

---

(۱) د سپرلي ستوري ص ۶۱ - ۶۲ د ۱۹۵۷ ع کال د پښتو ټولنې اداره اشاعت سرحد.

(۲) وږمه د ۱۳۵۶ هـ ش کال ګڼه ص ۱۴۰

۱۴- حامد کښلي دي: «شعر غني بازتابي از زندګی محیط و درګیري های سیاسی زمان اوست وهمین مسایل است که انګیزه های بازسازي دنیای نګري او را می سازد شعر درست او خامه یي است که با آن افکار فلسفي، آزادیخواهي وحب وطن را باتمام ابعادش ترسیم میکند. ...... در شعر او فضای زیبا و پرشکوهي تبلور یافته است. همین ویژګي شعر اوست که او را در ردیف شاعران ممتاز وبرازنده زبان پښتو قرار میدهد.» (*)

## غني او اخورګري:

په ادبي خېړنو کښې راغلي دي، چه غني خان انځورګر (مصور) هم دی. د ده ځینې انځورونه په بعضې کتابو کښې شایع شوي هم دي. ویلې شي چه ډېر وخت یې په بین الاقوامي یونیورسټي کښې غني د خپلې استوګنې په زمانه کښې د هلکانو د تیوري تصویرونو جوړول شروع کړل اما د غه تصویرونو چه د کالج پرنسپل او ډېرو (۱۹۶۱-۱۹۴۱ع) ولیدل نو ډېر زیات خوشحاله او حیران شول.

بناغلي هم لیکلي دي: «غني خان د پښتو شاعر علاوه پر بهترین مصور هم دی او د پېښور خانه د تصویرونو نمایشونه شوي دي.» (پښتانه لیکوال ۱۰ مخ.)

---

(*) حقیقت، دمی دریاڅې، ډو حامد ټیکه د ۱۳۶۴ کال د اسد ۱۷ مخ ګڼه.

# د غني د کلام د غه مجموعه:

کله چې د پښتو ژبې نوموړي شاعر او لیکوال سلیمان لایق ماته د غني د کلیاتو د چاپ سپارښتنه وکړه. نوموړي کار له پانوسو پیل کړ. پانوس کټ شو او کاتب ته د لیکلو د پاره وسپارل شو. ترڅو وروسته مو د پنجرې چغار ته کار ورسید نو ونیول شو چې نظمونه یې په پانوس کښې راغلي وو. هغه تر لیرې ګوټه شول او باقي برخې ولیکل شوې او کاتب ته حواله شوې. بیا مې پلټنې وکړې. د دې مجموعې ټول هغه نظمونه چې په پانوس او پنجرې چغار کښې راغلي وو هغه تر لیرې کړای شول. او پاتې نظمونه یې ولیکل شول.

البته کیدی شي چې یو نیم داسې نظم [illegible] تول نظمونه د پلټنې او پانوس له راجمع کړه خو د دې لپاره چې د عبدالغني د کلام د مجموعې خپل هویت هم ساتل شوی وي دغه برخې لپاره جلا جلا سرلیکونه ورکړل.

د شعر په کلیاتو کښې راغلو د نظمونو په املا کښې ډیر لږ بدلون راوړل شوی دی ترڅو زیات زیار وړیوست چې املا د [illegible] پښتو خپله املا ته ورته وي. هغه کلمات چې خان په مشغرۍ لهجه کښې یا ویلي وو هم سم کړل او په مروجه املا مو ولیکل خو هغه برخې چې د خان د لهجې مطابق پاتې شول. البته دا خبره باید هیره نشي چې د پنجرې چغار او پلټنې کوم نظمونه چې په پانوس کښې راوړل دي. په هغه کښې لاس نه دی وړل شوی او ما د متن د ترتیب د [illegible] ولیکلې هغه د نوي شکل په کلیاتو کښې اخیستي دي.

---

☆ له بده مرغه ځینې تکرار نظمونه هم په مجموعه کې راغلي او زه داسې وخت ورته متوجه شوم چې ایستل یې ګران وو.

زه دا دے لیکلے پہ پاۍ کښے دخان عبد الغنی خان یوه خوږه غزله تاسو ته
وړاندے کوم چه زما له دے بحث سره ډیر نږدے اړه لری. او دده د ژوند په مطالعه کښے
ارزښت مند ایسی.

## غنی غنی ته

ماو غنی یار غمه بے اندازه غوندے یے
ادب دے کښے کم زبان دراز غوندے یے
قصه دے کړه وړه نه سم خاشونه توتی شوے
خو ته دے دو پیاز و کښے خه ده پیازه غوند ے یے
پتی دے وران ویجاړه دی او کړے ورته دے پولے
کړے پکښے کلونه حسن سازه غوندے یے
لیده دے ماته کړی او شه ل ماهل دے غښتی
خو غزاره دے پسا لکی تیر اندازه غوندے یے
دولت دے کړه صفت دے کړه ناموس دے کړه شهرت
په ورته خیته مور او بے نیازه غوندے یے
که زنگ دے کړه تراش وی که چار بیته که بدله
په خپله لار روان یے بی استازه غوندے یے
په مینه یے مین او خدائے ته پلار او جانان وایے
دا خکه خوبے تو له بے اندازه غوندے یے

---

پښتو مجله ۱۹۸۳ ع ( فرورۍ - مارچ ) ۴۰ مخ
رحمن الفیاض
خادم العلماء مرتب و مدون ۵.۲۰۰۰